# خطباتِ ربانی

از افادات

فصیح اللسان لذیذ البیان

علامہ عبد الحق ربانی صاحب حفظہ اللہ

جلد اول

پسند فرمودہ

قائد انقلاب قرآنی شیخ القرآن والحدیث حضرت

العلامہ مولانا محمد طیب طاہری صاحب

واکابرین اشاعت التوحید والسنہ حفظہم اللہ

مرتب

محمد یعقوب جلسوی عفی عنہ

الناشر دار التوحید والسنۃ

محلہ توحید آباد، جلسی، صوابی

رابطہ نمبر: 0315-9487699




# Maktaba Tul Ishaat



تمام فنون کے کتب ہمارے ویب سائٹ اور پلے سٹور سے فری ڈاون لوڈ کریں۔ ہم روزانہ کی بنیاد پر اس میں مزید نئے کتب شامل کر رہے ہیں نئے شامل شدہ کتب لیے روزانہ ہمارے پلے سٹور اور ویب سائٹ کو باقاعدگی سے چیک کیا کریں۔

## اپنی کتاب کو ہمارے ویب سائٹ پر شائع کرنے کے لیے رابطہ کریں

| | | |
|---|---|---|
| تفاسیر | خطبات | منطق |
| احادیث | سیرت | معانی |
| فقہ | تاریخ | تصوف |
| سوانح حیات | صرف | تقابل ادیان |
| درس نظامی | نحو | تجوید |
| لغت | فلسفہ | نعت |
| فتاوی | حکمت | تراجم |
| اصلاحی | بلاغت | تبلیغ ودعوت |
| آڈیو دروس | مناظرے | تمام فنون |

Contact Us: maktaba.tul.ishaatofficial.com

# خطباتِ ربانی

از افادات

فصیح اللسان لذیذ البیان

علامہ عبد الحق ربانی صاحب حفظہ اللہ

جلد اول

پسند فرمودہ

شاہ اقلیم قرآن شیخ القرآن والحدیث حضرت

العلامہ مولانا محمد طیب طاہری صاحب

واکابرین اشاعۃ التوحید والسنۃ حفظہم اللہ

مرتب

محمد یعقوب جلسوی عفی عنہ

الناشر دار التوحید والسنۃ

محلہ توحید آباد، جلسی، صوابی

رابطہ نمبر: 0315-9487699

وَمَا عَلَيْنَا إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِيْنُ (سورة يس: 17)



دَ كتاب نوم : **خطباتِ ربّاني**

از افادات : فصيح اللسان لذيذ البيان علّامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

مرتب : محمد يعقوب جلسوي عفي عنه

کمپوزنګ وسټينګ : ابو عبد الله ضياءالرحمٰن الحنفي (مردان)

جلد نمبر : اول

صفحات : 449

طبع : اول 2020ء بمطابق : ١٤٤٢هـ

## استاکسټ

دارُ التَّوحِيْدِ والسُّنَّه (محلّه تُوحيد آباد، جَلسيء، صَوابي) [رابطه نمبر: 0315-9487699]

## دَ ميلاويدو نور ځايونه

1- اسلامي کتب خانه عبد الرحمن پلازه، صوابي

2- مکتبه حسينيه شيوه اډه، صوابي

# د مضامینو فهرست

| صفحه | | مضمون |
|---|---|---|

## زنا ګناهِ کبيره ده.... 38

## سود گناهِ کبیره ده.... 60

## شراب څكل ګناه كبيره ده.... 82

## په قيامت کښې ارمان.... 104

## سحر او جادو.... 125

## نبی ﷺ سره د صحابو مینه.... 151



## د ګاونډي حقوق.... 167

## داولادتربيت.... 186



## قطع تعلق.... 199

## د صحابه کرامو حالات.... 217



## د جنت نعمتونه.... 239

## دقرآن کریم مقام.... 322

## د قبر پخول حرام دي... 338



## سلام اچول سنت دي... 364

## د کامیابۍ لار... 394



## د قرآن کریم نه د مخ اړولو سزا.... 414



# پیش لفظ

الحمد لله الذي خلق الإنسان علمه البيان، والصلاة والسلام على رسوله المبعوث إلى الإنس والجان.

أما بعد!

زهٔ بنده عاجز پهٔ 2003ء کښې پهٔ مسجد عمر فاروق رضي الله عنه ضلع صوابي، تحصيل چهوټا لاهور، جلسئ کلي کښې پيش امام او خطيب مقرر شوم. نو دَ جمعة المبارکة پهٔ ورځ دَ تقرير اوريدلو دپاره به ډير زيات خلق را تلل نو ما دَ عوامو دَ اصلاح دپاره به هر جمعه باندې مستقل پهٔ يَو موضوع بيان کوو. خو هغه بيان به صرف هغه چا اوريدو چه کوم کسان به حاضر وو، څهٔ خاص انتظام دَ ريکارډ کولو نهٔ وو.

بيا څهٔ وخت بعد زمونږه خوږ ورور جناب حکيم اسد الله صاحب (ساکن تورډهير) چه هغه وخت کښې دَ هغهٔ دَ اسلامي کيسټو دوکان وو، هرې جمعې ته به راتلو او هغه بيان به ئې پهٔ کيسټ کښې ريکارډ کولو، نو کوم کسان چې رارسيدے نهٔ شو هغوي به دَ کيسټو نه استفاده کوله، تردې چې دَ کيسټو دَ بيانونو کافي ذخيره جناب اسد الله صاحب سره جمع شوه، بيا هغهٔ پخپله او جناب انور شير صاحب (صوابي، مانيري) هغه بيانونه ميموري کارډ ته واړول نوره هم آسانه شوه او فائده ئې زياته شوه بيا ډيرو ملګرو ځان دپاره دَ کيسټونه بيانونه جمع کول او د هغې نه به ئې جمعه کښې بيانونه کول.

نو هر يَو تن ته دغه کار ګران وو نو څهٔ ملګرو دا مطالبه شروع کړه چه دې

خطباتو ته كتابي شكل ورکړے شي نو دا به ډېر ښه او فائده به نوره هم زياته شي.
خو دَ زياتو مصروفياتو دَ وجې ما دغه کار نۀ شو کولے، نو ډيرو ملګرو زما نه اجازت اوغوښتو چه هغوي به ئې را جمع کړي، خو ما هغوي ته اجازت ور نۀ کړو؛ ځکه زما خيال دا وو چه خطبات ډېر زيات چهاپ شوي دي زما دَ خطباتو ته ضرورت نشته؛ ځکه زمونږ علم او تجربه ډيره كمزورې ده پۀ نسبت دَ هغوي.
خو زمونږ برادر محترم طالب العلم محمد يعقوب جلسوي صاحب پۀ خپل شوق سره يَو جلد را جمع کړےوو، نو ما ته ئې اوخودو او مطالبه دَ چهاپ کولو ئې کوله نو ما دَ هغۀ کړاؤ او محنت ته اوکتل نو زۀ خفه شوم او دَ هغۀ دَ زړۀ دپاره مې هغۀ ته دَ چهاپ کولو اجازت ورکړو؛ ځکه ډېر تکليف ئې برداشت کړے وو.
اګر چه بيانونو کښې دَ ترتيب لحاظ نۀ دے ساتلے شوے، بهتره دا وه چې اول عقيده بيا رد بدعاتو بيا مونځ، زكوٰة، روژه او حج وغيره او اوامر او نواهي وو. خو اميد دے پۀ باقي جلدونو کښې دَ ترتيب لحاظ وساتلے شي.
ما عاجز خو دَ خپل وس او علم مطابق دَ موضوعي او منكرت رواياتو او قصو نه اجتناب او ډډه کړي ده.
البته! کۀ بعض روايات سندًا ضعيف به پکښې وي خو –إن شاء الله- ضعف شديد به نۀ وي چه دَ هغې بيانول بالكل جائز نه وي. او محدثين ذكر كوي چه فضائلو کښې ضعيف حديث پۀ څو شرائطو سره بيانول جائز دي.
لکه امام نووي او امام سيوطي رحمهما الله ذكركوي:
(ويجوز عند أهل الحديث وغيرهم التساهل في الأسانيد) الضعيفة (ورواية ما سوى الموضوع من الضعيف والعمل به من غير بيان ضعفه في غير صفات الله تعالى)، وما يجوز ويستحيل عليه، وتفسير كلامه، (والأحكام كالحلال والحرام)

وغيرهما، وذلك كالقصص وفضائل الأعمال والمواعظ، وغيرها (مما لا تعلق له بالعقائد والأحكام). في الحلال والحرام شددنا، وإذا روينا في الفضائل ونحوها تساهلنا.

تنبيه: لم يذكر ابن الصلاح والمصنف هنا، وفي سائر كتبه لما ذكر سوى هذا الشرط، وهو كونه في الفضائل ونحوها، وذكر شيخ الإسلام له ثلاثة شروط:

أحدها: أن يكون الضعف غير شديد، فيخرج من انفرد من الكذابين والمتهمين بالكذب، ومن فحش غلطه، نقل العلائي الاتفاق عليه.

الثاني: أن يندرج تحت أصل معمول به.

الثالث: أن لا يعتقد عند العمل به ثبوته، بل يعتقد الاحتياط.[1]

دارنكه امام ابو عمرو عثمان بن عبد الرحمن الشهرزوري المتوفى: (643هـ) ليكي:

يجوز عند أهل الحديث وغيرهم التساهل في الأسانيد ورواية ما سوى الموضوع من أنواع الأحاديث الضعيفة من غير اهتمام ببيان ضعفها فيما سوى صفات الله تعالى وأحكام الشريعة من الحلال والحرام وغيرها. وذلك كالمواعظ، والقصص، وفضائل الأعمال، وسائر فنون الترغيب والترهيب، وسائر ما لا تعلق له بالأحكام والعقائد. وممن روينا عنه التنصيص على التساهل في نحو ذلك عبد الرحمن بن مهدي، وأحمد بن حنبل رضي الله عنهما.[2]

او لاندې پۀ حاشيه باندې ليكي:

قال الزركشي في النكت (245-246) إن الضعيف لا يحتج به في العقائد والأحكام، ويجوز روايته، والعمل به في غير ذلك: كالقصص، وفضائل الأعمال،

---

(1) [تدريب الراوي: 263-264، طبع: قديمي كتب خانه كراتشي].

(2) [مقدمة ابن الصلاح: 134، طبع: دار الحديث القاهره].

والترغيب والترهيب. ونقل ذلك عن ابن مهدي وأحمد بن حنبل. وروى البيهقي في المدخل: عن عبد الرحمن ابن مهدي أنه قال: إذا روينا عن النبي ﷺ في الحلال والحرام والأحكام شددنا في الأسانيد، وانتقدنا في الرجال، وإذا روينا في فضائل الأعمال، والثواب، والعقاب، سهلنا في الأسانيد، وتسامحنا في الرجال.[1]

دغه شان ډیرو کتابونو لیکلي دي خو مونږه پهٔ دې اکتفاء کوو.

لیکن بیا هم چونکه دَ بیان انداز جُدا وي او دَ کتابت انداز جدا وي. کهٔ معنی کښې تقدیم وتاخیر شوے وي یا یَوه خبره غیر مناسبه وي نو ملګري دَ هغې نه تسامح کوئ، او کهٔ غلطه خبره وي نو دَ هغې خبر را کړئ چه آئنده کښې ئې ترینه لرې کړو. ستاسو به ډیره ډیره مننه وي.

آخر کښې زهٔ ډیره شکریه اداءکوم دَ هغه ټولو ملګرو چه دا بیانونه ئې محفوظ کړي وو، خصوصًا دَ جناب حکیم اسد الله صاحب (ساکن توردهیر)، او دَ مرتب طالب العلم جناب محمد یعقوب جلسوي صاحب او دَ نورو ملګرو چه دَ هغوي دغه اَرمان او مطالبه وه چه دا دې کتابي شکل کښې را جمع کړے شي. الله رب العزت دې ټولو ته اجر عظیم ورکړي.

او الله رب العزت دې دا بیانونه زما دپاره، زما دَ والدینو، اُستاذانو او مشائخو دپاره صدقه جاریه اوګرځوي. –آمین یا رب العالمین–

احقر العباد عبد الحق ربّاني
حالًا نزیل جلسئ، صوابي
30/09/2020

---

(1) [حاشية مقدمة ابن الصلاح: 134، طبع: دار الحديث القاهره].

# تقریظ

قائد انقلاب قرآني، شيخ المشائخ

شيخ القرآن والحديث علامه **محمد طيب طاهري** صاحب حفظه الله ورعاه

الحمد لله الذي لم يتخذ ولدا ولم يكن له شريك فى الملك ولم يكن له صاحبه، والصلاة والسلام على من أرسل بالبينات والهدى.

أما بعد!

دَ محترم مولوي عبد الحق صاحب دَ "خطباتِ رباني" چه مولوي محمد يعقوب صاحب ليکلي دي، بعض ځايونه ما اوکتل دَ عام اولس دپاره ډير مفيد او سود مند ښکاري، او ددے دَ شائع کولو به عام خلقو ته ډيره فائده اورسي –إن شاء الله–، محترم مولوي عبد الحق صاحب يَو ډير خوش اخلاقه، مخلص، ديندراه او با ادبه عالم دے، او قول ئے دَ فعل سره تر دا ساعته برابر دے. دعاګو يم چه الله تعالى دے هميشه دغه شان استقامت او دينداري نصيب کړي. آمين ثم آمين! او الله تعالى دے مرتّب دَ خطباتو ته اجر عظيم ورکړي. آمين!

احقر طيب طاهري عفي عنه

29-09-2020

# تقريظ

مفتي اعظم پاکستان، شيخ القرآن والحديث علامه مفتي **سراج الدين** صاحب حفظه الله ورعاه

حامدًا ومصلًيا:

أما بعد!

ما څۀ مواضع دَ "خطباتِ ربّاني" پۀ نوم اوکتل دَ وعظ ونصيحت پۀ باب کښې بهترينه مجموعه ده. ما څو بيانونه هم دَ مولانا عبد الحق ربّاني صاحب اوريدلي دي دَ اخلاص نه ډک بيانونه دي. باري تعالى دِ دغه مجموعه دَ عوامو او طلباؤ دپاره ډيره مفيده اوګرځوي، او دَ مؤلف پۀ صدقاتِ جاريه او اعمالِ صالحه کښې دَ اضافې ذريعه اوګرځوي. آمين يا رب العالمين.

احقر سراج الدين

# تقريظ

**متكلم اسلام، شيخ القرآن والحديث علامه امداد الحق صاحب حفظه الله ورعاه**

الحمد لله مولى النعم، ومُعطى النغم، والصلاة والسلام على صاحب جوامع الكلم!

دَ ژبے فصاحت وبلاغت او دَ مضمون افاديت او سلاست دَ الله دَ طرفه هغه ورکړه ده چه بختورو ته ملاويږي، دَ آواز حلاوت او دَ مضمون جدّت او دَ معلوماتو زيادت او دَ دلائلو وسعت دَ يَو عالِمِ دين دَ خائسته علم بنګله او زينت ګنړلے شي، دَ دين دَ اهميت نه خبر شخصيات او ديني طالبعلمان دا ضرورت محسوسوي چه خطباتو، مواعظو او بياناتو کښې دِ مهارت تر لاسه کړي، بيا دَ بعض مواضعو او خصوصا دَ جمعے دَ ورځے داسے بيانات چه دَ عوامو دَ اصلاح ذريعه جوړه شي، دَ خطيب دَ زړهٔ آواز دَ وخت ضرورت او دَ يَو مخلص مسلمان دَ زړهٔ دَ کومي آواز دے، دا دَ زړهٔ او دَ روح دَ پاکئ او دَ پاکے معاشرے دَ وجود اسبابو کښې اهم سبب دے.

نن صبا مارکيټ کښې پهٔ هره ژبه دَ خطباتو کافي ذخيره موجود ده، ليکن دَ کمّيت اضافے سره سره دَ کيفيّت پهٔ معيار ډير خطبات برابر نهٔ دي. دَ داسے خطباتو ضرورت محسوس کيږي چې بے سنده قصّے او واقعاتو او دَ بے فائدے لطيفو نه پکښې احتراز شوے وي، فضول بهرتي پکښې نه وي، کمزوري او موضوعي روايات او ما وئيلي تا وئيلي نه محفوظ وي. ان شاء الله دَ محترم مولانا عبد

الحق ربّاني "خطباتِ ربّاني" به دَ قاري دغه تنده ماته کړي. دَ هغوي کړاؤ او سترے قابلِ تحسين وآفرين دے، داسے متوازن خطباتو سره دَ ذهن غوتے پرانستلے شي، او دَ کُل غوټۍ اوسپړدلے شي، دَ دوي دَ خطباتو کافي حصه زما دَ نظره تيره شوه، دَ عام کتونکو او اوریدونکو دَ ذهني سطح سره خۀ برابر او توله روان دے. قدر مند به ئے دَ استفادے نه پس افاديت او اهميت خۀ محسوس کړي، انداز ئے نا اشنا او زړۀ پورے دے، کۀ عام کچه خطيبان دَ عدمِ فرصت دَ وجے دَ جُمعے خطبه نۀ شي مرتب کولے دا به ورله يَوه آسانه، خوږه او ترسخونه نوړۍ شي.

دَ فضائلو دَ بيان ميدان کښې يَو نيم ضعيف حديث نه دَ جمهورو محدثينو پۀ نزد تسامح کيدے شي.

دَ يَو کامياب خطيب دغه ذمه داري وي چې دغسے فکر انگيز نصيحت سره معاشره کښې دَ هر منکر نشاندهي اوکړي. هيله لرم چه آئنده وخت کښې دَ اوسني دور دَ علمي فتنو ترديد به پۀ وسيع پيمانه او خکلي انداز دَ الله پۀ توفيق کوي.

الله دِ دَ مولانا صاحب مدظله پۀ اخلاص واستخلاص سره کړے دا خدمت خپل دربار کښې قبول او منظور کړي، او دَ دوي ژبه، علم، قلم، آواز، سوز، قدم، فهم او فصاحت کښې دِ الله نوره ترقي هم پيدا کړي. وما ذلك على الله بعزيز.

کتبه

امداد الحق أدامه الله على الحق

9ستمبر 2020

# تقريظ

**ماهر الفنون، مناظر اسلام، مولانا مفتي ابوصفوان صديق اكبر صاحب حفظ الله ورعاه**

دَ بهترين عالم دين فصيح اللسان لذيذ البيان غلام حبيب ثاني حضرت العلامه مولانا عبد الحق ربّاني حفظه الله ورعاه ډير قيمتي خطبات وبيانات زمونږه محترم او ډير ګران قدر مند ورور طالب العلم محمد يعقوب جلسوي صاحب پۀ ډير محنت او کړاؤ سره راجمع کړي وو، ما فقير ته ئې حکم اوکړو چې پۀ دې تقريظ اوکړه. نو زۀ به څۀ يم او څۀ به زما تقريظ وي! او بيا دَ ربّاني صاحب پۀ خطباتو باندې خو تقريظ کول داسې دي لکه دَ نمر مخښې ته ډيوه بلول! خو دا دَ مؤلف حُسنِ ظن دے.

بهر حال دا خطبات او بيانات را جمع کول يَو اهم کار وو؛ ځکه علماء کرام او طلباء عظام هر دور او زمانه کښې دا ذمه داري لري چې عوامو ورونړو ته دَ قرآن او سنت پۀ رڼړا کښې پۀ مختلف موضوعاتو او عنواناتو باندې بيانات اوکړي.

علامه ابن عابدين المعروف بـ "الشامي" فرمائي:

التّذكير على المنابر للوعظ والاتعاظ سنّةُ الأنبياءِ والمرُسلينَ.[1]

او قرآن کريم کښې هم الله رب العزت محمد رسول الله ﷺ ته فرمائي: ﴿وَأَنْزَلْنَآ إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ﴾.[2]

معلومه شوه دَ قرآن دَ نزول او دَ بعثتِ رسول مقصد او هدف بيان وو. خو پۀ هر کتاب کښې دَ هرې موضوع مواد يکجا او غونډ نۀ وي، بلکه موضوع منتشره او خوره وره وي، او راغونډول ئې ډير مشکل وي. دَ محمد يعقوب صاحب دَ محنت دَ وجې به خطيبانو او مقررينو طلباء کرامو ته ډير سهولت او آسانتيا ملاؤ شي. چې پۀ هره موضوع به ورته مستقل مواد مخښې ته راشي.

مثل النهار يزيد أبصار الورى نوراً ويعمي أعين الخفاش

---

(1) [در مختار مع الشامي: 372/5، قبيل إحياء الموات].

(2) [سورة النحل: 44].

اکثر بیانات ما اوکتل تقریبا هر یَو بیان کښې حُسن انتظام دے؛ څکه هر یَو بیان پهٔ خطبه، تمهید، مقصود او خاتمه باندې مشتمل دے. او دا دَ کامیاب او حاذق خطیب علامه او نښه ده، چې خامخا به ددهٔ بیان پهٔ دې څلورو اجزاؤ باندې مشتمل وي، علاوه لا دا چې هر بیان کښې دَ سُخن شناسي، مردم شناسي او وقت شناسي لحاظ شوے دے.

او -ما شاء الله- دَ کوم خطیب صاحب خطبات چې یعقوب صاحب را جمع کړي دي، نو هغه هم یَو بهترین مایه ناز محقق عالم دین دے. او پکار هم دا ده چې مقرر به ښهٔ عالم وي. چلاسي بابا فرمائي:

مقرر را از سر منبر باند از　　　　که مقام امر ربانی نه دانند

مسند الهند شاه ولي الله رحمه الله فرمائي:

فأما المذكِّر فلابد أن يكون مكلّفا عدلاً محدِّثًا مفسّرًا عالماً بجملةٍ كافيةٍ من أخبار السلف الصالحين وسيرتهم.[1]

الله رب العزت دې ربّاني صاحب او مؤلف محمد يعقوب صاحب له پهٔ دې عظيمه قربانۍ اجر جزیل او ثواب جمیل ورکړي! او الله دې دې خطباتو له قبولیتِ عامّه ورکړي! چې عوام او خواص ترې فائده حاصله کړي.

هذا كتاب لـو يباع بـوزنـه　　　　ذهبًا لكان البائع مغبونا
أو ما من الخسران أنك آخذ　　　　ذهبًا وتترك جوهرًا مكنونا

لیکوال: صدیق اکبر بن شیر افسر کالوخاني
(12 ذو الحجّه 1441هـ)
وقت: 1:27 یوم الإثنین
بمقام: مدرسه إحیاء العلوم (الغرفة الخامسة)

---

(1) [القول الجميل: 138].

# عاجزانه درخواست

الحمد لله وكفى وسلام على عباده الذين اصطفى!

عزتمندو مسلمانانو وروڼړو! دا کوم کتاب چې ستاسو لاسونو ته دَ الله پهٔ توفيق را اورسيدو دا دَ ډيرو ملګرو اصرار وو چې دَ رباني صاحب خطبات کتابي شکل کښې چهاپ شي ددې به ډيرو طلباؤ، عوامو، نارينو او زنانو ته فائده اورسي. دَ الله رب العزت احسان وو چې ما له ئې ددې بيانونو دَ ليکلو توفيق را کړو، الله دې دا پهٔ خپل دربارِ عاليه کښې قبول او منظور کړي.

بحمد الله! مونږه ددې کتاب پهٔ تصحيح کښې خپل پوره کوشش کړے دے خو بيا هم انسان کمزورے دے، کهٔ دې کښې څهٔ قسم غلطي پاتې شوې وي نو دَ هغې نسبت دې ما ته اوکړے شي، او عاجز بنده ته دِ دَ هغې اطلاع ورکړے شي چې آئنده ايډيشن کښې ئې تصحيح اوکړے شي.

الله رب العزت دې دا زما او زما دَ والدينو او خصوصًا دَ ربّاني صاحب، دَ هغوي دَ والدينو او دَ اُستاذانو او مشائخو دپاره صدقه جاريه اوګرځوي. –آمين يا رب العالمين–

محمد يعقوب جلّسوي

02-10-2020

بسم الله الرحمن الرحيم

النَّارُ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَعَشِيًّا وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ أَدْخِلُوا آلَ فِرْعَوْنَ أَشَدَّ ا

(سورة المؤمن: 46)

# موضوع

# عذاب قبر

بتاریخ: 2007-05-25

بمقام جلسئ

خطیب

فصیح اللسان لذیذ البیان علامه عبد الحق ربّانی حفظه الله

# عذاب قبر

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِهِ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهُ وَلَا آخِرَ لَهُ لَا ضِدَّ لَهُ وَلَا نِدَّ لَهُ وَلَا مُمِدَّ لَهُ وَلَا بَشِيْرَ لَهُ وَلَا نَذِيْرَ لَهُ وَلَا وَزِيْرَ لَهُ وَلَا مُشِيْرَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهِ وَأَصْحَابِهِ وَسَلَّمَ عَبْدَهُ وَرَسُوْلَهُ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿فَوَقَاهُ اللَّهُ سَيِّئَاتِ مَا مَكَرُوا وَحَاقَ بِآلِ فِرْعَوْنَ سُوءُ الْعَذَابِ * النَّارُ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَعَشِيًّا وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ أَدْخِلُوا آلَ فِرْعَوْنَ أَشَدَّ الْعَذَابِ﴾.[1]

وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّمَا الْقَبْرُ رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ، أَوْ حُفْرَةٌ مِنْ حُفَرِ النَّارِ».[2]

عزتمندو حاضرینو مسلمانانو رونړو! ما ستاسو په مخکښې د الله رب العزت د کتاب قرآن کریم نه د سورتِ مؤمن دوه آیاتونه تلاوت کړل. او د احادیثو د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه ما ستاسو مخکښې یو حدیث مبارکه عرض کړو. د ټولو نه اول د الله رب العزت په دربار کښې دعاکو یم چې الله رب العزت زما د خُلې نه د قرآن او سنت مطابق خبرې اوباسې او بیا مونږ او تاسو له په هغې باندې د عمل کولو توفیق را نصیب کړې.

(1) [سورة المؤمن: 45-46].

(2) [جامع الترمذي: (2460)].

ما چې کوم آیاتونه تلاوت کړل په دې آیاتونو کښې الله د هغې رجلِ مؤمن حال ذکر کوي، چې هغه الله د فرعونیانو د مکر او فریب نه خلاص کړو. او فرعونیانو باندې د الله عذاب نازل شو، سحر او ماښام په هغوي د الله عذاب پیش کیږي، دا رنګه قیامت کښې به هم په هغوي باندې عذاب پیش کیږي، او قیامت کښې به اوئیلے شي ﴿أَدْخِلُوا آلَ فِرْعَوْنَ أَشَدَّ الْعَذَابِ﴾ "دننه کړئ آل د فرعون سخت عذاب ته"

"علماء کرام ددې آیاتونو نه استدلال کوي په عذابِ قبر باندې، چې د دې آیاتونو د مفهوم نه معلومیږي چې د قبر عذاب حق دے، په قبر کښې عذاب او ثواب او راحت میلاویږي".

بعض خلق د عذابِ قبر نه منکر دي، حالانکه د قبر عذاب او راحت حق دے.

**امام نووي رحمه الله لیکلي دي**

"مذهب أهل السنة والجماعة إثبات عذاب القبر وقد تظاهرت عليه الأدلة من الكتاب والسنة".[1]

وائي: "د اهل سنت والجماعة مذهب او مسلک دا دے چې عذابِ قبر شته، مجرمانو او کافرانو ته به عذاب قبر میلاویږي"

او دغه شان په قبر کښې نعمت او راحت هم شته، نیکانو خلقو ته به میلاویږي، او بیا وائي: په عذاب قبر باندې او د قبر په ثواب باندې او نعمتونو میلاویدو باندې د قرآن کریم آیاتونه او احادیث د رسول الله ﷺ کښې پرې باندې دلائل موجود دي، چې عذابِ قبر شته.

"علماء کرام ذکر کوي چې د قرآن کریم په ډیرو آیاتونو کښې تقریبًا اتلس (18)

(1) [شرح النووي على مسلم: 200/17].

آیاتونو کښې د عذابِ قبر ذکر شته، اشارةً چې علماؤ ذکر کړې چې د دي آیاتونو نه مراد عذابِ قبر دے، نو تقریبًا اتلّس (18) آیاتونه دي".

او احادیثو کښې محدثینو د قبر په عذاب مستقل ابواب قائم کړي دي. چې قبر کښې به عذاب میلاویږي خو اکثر محدثین چې دا ذکر کوي، نو هغوي وائي: "بَابُ إِثبَاتِ عَذَابِ القَبرِ" یا "بَابُ مَا جَاءَ فِي عذابِ القَبرِ" د نعمت او د خوشحالئ تذکره نۀ کوي دا ولې؟ علماء کرام ذکر کوي دا ځکه چې اصل کښې دا عذاب چې میلاویږي، نو دا کافرانو له منکرینو او مجرمانو ته میلاویږي نو هغوي منکر دي، نو ځکه اثبات د عذاب قبر وائي، او نعمتونه او خوشحالي خو مؤمنانو ته میلاویږي، نو مؤمن خو عذابِ قبر مني. نو د دي وجې نه د هغوي تذکره ئ نۀ ده کړې، یا عذاب قبر ئې ذکر کړو، نو چې عذاب وي نو راحت به لازمًا وي، اشارةً ترې راحت هم ثابت شو.

بهر حال عذابِ قبر او د ثوابِ قبر د قرآن کریم او د احادیثو د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه ثابت دے.

(1) اول آیت دا دے: ﴿النَّارُ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَعَشِيًّا وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ أَدْخِلُوا آلَ فِرْعَوْنَ أَشَدَّ الْعَذَابِ﴾.[1]

پدې کښې الله فرمائي: چې فرعونیانو باندې سخت عذاب نازل شو. هغه ناکاره عذاب څۀ دے، چې هغوي مرۀ شول؟ نو الله وائي: اُور پیش کولے شي پۀ هغوي باندې صبا او بیګا. نو کوم سړے چې عذابِ قبر نۀ مني، نو قیامت خو له قائم شوے نۀ دے نو څنګه پۀ هغوي اُور پیش کولے شي؟ دیته عذابِ قبر وائي، او د قبر نه مراد عالَمِ برزخ دے، هغه ځائے چې د دنیا او د آخرت پۀ مینځ کښې یوځائے دے، چې هغې ته برزخي

(1) [سورة المؤمن: 46].

زندګي وائي. د دې وجې نه علماء وائي: د قبر نه مراد عالَمِ برزخ دے، او دا جامع تعريف دے.

مثلًا كهٔ يَو سړے دے هغه پهٔ قبر کښې نهٔ دے ښخ شوے او دَ هغهٔ بدن ځناورو اوخوړو، او دغه سړے مجرم دے نو دهٔ له به عذابِ قبر ميلاويږي، او كهٔ نه؟ نو د دې انسان جز جز ته به عذاب ميلاويږي، اګر چې قبر کښې ښخ نهٔ دے، يَو سړے سمندر کښې ځهٔ اوخوړو نو دغې خوړلے شوې بدن ته به عذاب ميلاويږي، اګر چې قبر کښې ښخ نهٔ دے. يَو سړے وسوزولے شو او د هغهٔ هغه ايرې سمندر کښې واچولے شوې يا هوا کښې والوزولے شوې، دهغهٔ هغه سوزولے شوې بدن ته به عذاب ورکولے شي.

دې ته عالَمِ برزخ وائي، صرف د قبر سره ئې تعلق نهٔ دے، چې يَو سړے قبر کښې دفن شي، نو هغهٔ ته به عذابِ قبر وي، او كهٔ قبر کښې دفن شوے نهٔ دے نو هغهٔ ته به عذابِ قبر نهٔ ميلاويږي، نا چې د کوم انسان نه روح اووتو نو پهٔ عالَمِ برزخ کښې به هغهٔ ته عذاب ميلاويږي، چې بدعمله انسان وي، او كهٔ نيک عمله انسان وي نو په عالَمِ برزخ کښې به هغهٔ ته راحت ميلاويږي تر قيامته پورې.

بهرحال د دې نه مراد عذابِ قبر او عذابِ برزخ دے؛ ځکه قيامت قائم نهٔ دے، فرعونيانو باندې سحر او مابنام عذاب پيش کولے شي. د دې نه مراد عذابِ قبر دے، او د قيامت پهٔ ورځ چې قيامت قائم شي نو الله به اوفرمائي: ﴿أَدْخِلُوا آلَ فِرْعَوْنَ أَشَدَّ الْعَذَابِ﴾ "فرعونيان د جهنم هغه سخت عذاب ته داخل کړئ".

د دې وجې نه امام بخاري رحمه الله پهٔ خپل کتاب صحيح البخاري کښې باب قائموي "بَابُ مَا جَاءَ فِي عذابِ القَبرِ" "باب دے په بيان دَ هغه آياتونو او روايتونو کښې کوم چې دَ عذابِ قبر باره کښې راغلي دي"، نو پهٔ هغې کښې ئې اول دغه آيت ذکر کړے دے.

(2) دویم آیت: ﴿وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الظَّالِمُونَ فِي غَمَرَاتِ الْمَوْتِ وَالْمَلَائِكَةُ بَاسِطُو أَيْدِيهِمْ أَخْرِجُوا أَنفُسَكُمُ الْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُونِ بِمَا كُنتُمْ تَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنتُمْ عَنْ آيَاتِهِ تَسْتَكْبِرُونَ﴾.[1]

الله وائي: "کچرته ته هغه حالت اوګورې چې کله ظالمان د مرګ په سختو کښې وي، د هغوي ځنکدن وي او ملائک ورسره خوا کښې ناستې وي"، ملائکې ورته وائي: ﴿أَخْرِجُوا أَنفُسَكُمُ﴾ "روحونه مو را بهر کړئ"، لاس ئې په عذاب سره اوږدهٔ کړے وي، ورته وائي روح را اوباسه نن ورځې (یعني اوس) عذاب او سزا درکولے شي تاسو ته د سپکوالي او د ذلت".

نو قیامت خو لا قائم شوے نهٔ دے، او چې ملائک د هغه بدعمله انسان نه روح را اوباسي نو دغه وخت کښې ورته وائي چې اوس به تاله د ذلت عذاب درکولے شي، نو ځنګه ورکولے شي؟ علماء کرام وائي: د دې نه مراد د عالَمِ برزخ هغه عذاب دے.

(3) دریم آیت دا رنګې بیا بل آیت ذکر کوې، چې الله فرمائي: ﴿سَنُعَذِّبُهُم مَّرَّتَيْنِ ثُمَّ يُرَدُّونَ إِلَىٰ عَذَابٍ عَظِيمٍ﴾.[2]

الله وائي: "دې منافقانو له به مونږ دوه ځله عذاب ورکوو". پدې کښې د علماء ډیر اقوال دي، خو یَو قول دا دے چې دوه ځله عذاب ځنګه دے؟ یَو ځل عذاب په قبر کښې دے، او دویم ځل عذاب قیامت کښې میدانِ محشر کښې دے. دا آیاتونه امام بخاري رحمه الله په بخاري کښې ذکر کړي دي.[3]

د بخاري شرح لیکي: "قال مقاتل: تُعْرَضُ رُوْحُ كُلِّ كَافِرٍ عَلٰى مَنَازِلِهِمْ فِي النَّارِ

(1) [سورة الأنعام: 93].

(2) [سورة التوبة: 101].

(3) [صحيح البخاري: 183/1].

مَرَّتَيْنِ، ﴿النَّارُ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَعَشِيًّا وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ أَدْخِلُوا آلَ فِرْعَوْنَ أَشَدَّ الْعَذَابِ﴾ (سورة المؤمن: 46)".[1]

امام مقاتل ؒ وائي: چې د هر کافر روح دوه ځله د جهنم پهٔ اُور پيش کولے شي، او هغې له سزا ورکولے شي. د دې نه مراد عذاب د بزرخ دے؛ ځکه قيامت خو لا قائم نهٔ دے، نو څنگه په دوي قيامت کښې عذاب پيش کولے شي؟

**امام بخاري ؒ باب قائموي**

"بَابُ التَّعَوُّذِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ" "باب دے پهٔ بيان د پناه غوښتلو کښې د عذابِ قبر نه".

نو کهٔ عذابِ قبر نهٔ وے نو امام بخاري ؒ به پهٔ پناه غوښتلو باب نهٔ قائمولے. او بيا اورړد حديث ذکر کوې، چې رسول الله ﷺ صحابو ته وئيلې وو، الله پورې پناه اوغوارئ د عذابِ قبر نه، چې الله مونږ له د عذابِ قبر نه پناه راکړي. نو کچرته عذابِ قبر نهٔ وے نو نبي ﷺ به صحابو ؓ ته نهٔ وئيل چې تاسو د عذابِ قبر نه پناه اوغوارئ.

**امام بخاري ؒ بل باب قائموي**

"بَابَ عَذَابِ الْقَبْرِ مِنَ الْغِيبَةِ وَالْبَوْلِ" "باب دے په بيان د دي کښې چې د قبر عذاب ميلاويږي د غيبت د وجې نه او د ورړو بولو نه د ځان نهٔ بچ کولو د وجي نه".

د عذابِ قبر نورې وجې هم شته خو څهٔ وجي دا دې چې غيبت کونکے او د ورړو بولو نه د ځان نهٔ بچ کولو والا ته به عذاب ميلاويږي. نو کهٔ عذابِ قبر نهٔ وے نو باب به ئې پرې نهٔ قائمولے. معلوميږي دا چې د اهل سنت والجماعت متفقه مسلک دے چې د قبر عذاب شته او د صحيح او متواترو احاديثو نه نه ثابت دے.

---

(1) [العيني شرح صحيح البخاري: 199/12].

## بعضي خلق عقل چلوې

ځکه بعضي خلق په عقل باندې معلوموې چې انسان له څنګه عذاب میلاویږي؟ ځکښې ما اووئیل چې علماء تر دې پورې لیکلي دي "کچرې یَو انسان د هغهٔ بدن پهٔ اُور باندې اوسوزولے شو، او د هغهٔ دا ایره سمندر کښې واچولے شې نو بیا هم ددې انسان بدن ته عذاب او راحت میلاویږي" او بیا هم الله پدې قادر دے چې د انسان دغه اجزاء او اندامونه ژوندې کړې، الله ته د انسان د هر هر جز پته ده.

## د مکې د مشرکانو عقیده

د مکې د مشرکانو دا عقیده وه چې ﴿أَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ﴾[1] "آیا کله مړهٔ شو مونږه، او شو مونږه خاورې او هډوکي، آیا یقینا مونږه به دوباره دَ قبرونو نه را پورته کیږو؟" نو الله پهٔ هغوي باندې ردّ کوي، الله خپل پیغمبر ته وائي اعلان ورته اُوکړه ﴿قُلْ يُحْيِيهَا الَّذِي أَنْشَأَهَا أَوَّلَ مَرَّةٍ﴾[2] "اوایه زما پیغمبره ژوندې کوي به دې لره هغه ذات چې کوم ذات دے پهٔ اول ځله پیدا کړے وو"، کوم ذات چې پهٔ رومبي ځل ستا دا بدن ژوندے کړے وو چې نهٔ دې هډوکي وو، نهٔ دې غوښه وه، نهٔ دې وینا وه، نو هغه ذات دې بیا هم پیدا کولے شي. او کهٔ تهٔ وائې چې زما دا بدن خو خاورې شوے دے او ذره ذره شوے دے نو بیا به ئې څنګه ژوندے کوې" نو الله وائي: ﴿وَهُوَ بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيمٌ﴾[3] دا الله ستا د بدن پهٔ هر هر جز باندې خبردار دے، او پوهه دے. د الله علم ستا د علم پشان نه دے، تهٔ مخلوق ئې، او الله خالق دے.

---

(1) [سورة المؤمنون: 82].

(2) [سورة يسين: 79].

(3) [سورة يسين: 79].

## د عذابِ قبر باره کښې د علماء کرامو اقوال

### (1) علامه ابن کثير رحمه الله ليکي

"فَإِنَّ أَرْوَاحَهُمْ تُعْرَضُ عَلَى النَّارِ صَبَاحًا وَمَسَاءً إِلَى قِيَامِ السَّاعَةِ، فَإِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ اجْتَمَعَتْ أَرْوَاحُهُمْ وَأَجْسَادُهُمْ فِي النَّارِ؛ وَلِهَذَا قَالَ: ﴿وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ أَدْخِلُوا آلَ فِرْعَوْنَ أَشَدَّ الْعَذَابِ﴾...وَهَذِهِ الْآيَةُ أَصْلٌ كَبِيرٌ فِي اسْتِدْلَالِ أَهْلِ السُّنَّةِ عَلَى عَذَابِ الْبَرْزَخِ فِي الْقُبُورِ". [1]

"د دغې فرعونيانو روحونه صبا او ماښام تر قيامته پورې د جهنم په اُور پيش کولے شي، کله چې د قيامت ورځ شي دغه فرعونيان او د هغوي روحونه او بدنونه دواړه به د جهنم په اُور کښې را جمع شي؛ ددې وجې نه الله وئيلې دې چې دننه کړئ آل د فرعون سخت عذاب ته، او بيا وائي دا آيت لوې دليل دے د اهل السنت والجماعت دپاره چې هغوي دليل نيولے دے ددې نه چې برزخ کښې به خلقو له عذاب ميلاوېږي بدعمله انسانانو ته او نيک عمله انسانانو ته به نعمتونه ميلاوېږي".

### (2) علامه نيشاپوري رحمه الله ليکي

"وَفِي الْآيَةِ دَلَالَةٌ ظَاهِرَةٌ عَلَى إِثْبَاتِ عَذَابِ الْقَبْرِ". [2]

"په دې آيت کښې دليل دے په اثبات د عذابِ قبر باندې، چې ددې نه عذابِ قبر ثابتيږي".

### (3) امام رازي رحمه الله ليکي

"احْتَجَّ أَصْحَابُنَا بِهَذِهِ الْآيَةِ عَلَى إِثْبَاتِ عَذَابِ الْقَبْرِ". [3]

---

(1) [تفسير ابن كثير تحت آية سورة المؤمن: 46].

(2) [تفسير النشابوري تحت آية سورة المؤمن: 46].

(3) [تفسير الكبير تحت آية سورة المؤمن: 46].

"زمونږه علماؤ ددې آيت نه پهٔ اثبات د عذابِ قبر باندې دليل نيولے دے چې عذابِ قبر حق دے".

## (4) علامه قاضي بيضاوي رحمه الله ليکي

"وَفِيْهِ دَلِيْلٌ عَلٰى بِقَاءِ النَّفْسِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ".[1]

"پدې آيت کښې دليل دے پهٔ بقاء دَ روح باندې چې روح باقي دے، او پدې آيت کښې دليل دے پدې خبره چې عذابِ قبر به ميلاويږي".

## (5) علامه خازن رحمه الله ليکي

"وَيُسْتَدَلُّ بِهٰذِهِ الْآيَةِ عَلٰى إِثْبَاتِ عَذَابِ الْقَبْرِ".[2]

"ددې آيت نه دليل نيولے کيږي په اثبات د عذابِ قبر".

## (6) علامه ابو البرکات النسفي الحنفي رحمه الله ليکي

"وَهٰذِهِ الْآيَةِ دَلِيْلٌ عَلٰى عَذَابِ الْقَبْرِ".[3]

دا آيت يَو لوې دليل دے پهٔ اثبات د عذابِ قبر چې ددې نه عذاب قبر ثابتيږي.

## (7) علامه طبري رحمه الله ليکي

"وَهٰذِهِ الْآيَةِ أَصْلٌ فِي اسْتِدْلَالِ عَذَابِ الْقَبْرِ".[4]

"دا آيت يَو لوې دليل دے پهٔ اثبات د عذابِ قبر کښې".

## (8) علامه قرطبي رحمه الله ليکي

د امام مجاهد نه، د امام عکرمه، د مقاتل، او محمد بن کعب رَحِمَهُمُ اللهُ نه نقل کوې

---

(1) [تفسير البيضاوي تحت آية سورة المؤمن: 46].

(2) [تفسير الخازن تحت آية سورة المؤمن: 46].

(3) [تفسير النسفي تحت آية سورة المؤمن: 46].

(4) [جامع البيان تحت آية سورة المؤمن: 46].

وائي: "كُلُّهُمْ قَالُوْا: هَذِهِ الآيَةُ تَدُلُّ عَلَى عَذَابِ الْقَبْرِ فِي الدُّنْيَا".[1]

"دا تمام علماء وائي چې دا آيت كريمه دلالت كوي په عذابِ قبر باندې، چې دا به ميلاويږي په دنيا كښې".

**(9) علامه آلوسي رحمه الله ليكي**

"فَفِيْ هٰذِهِ الآيَةِ دَلِيْلٌ ظَاهِرٌ عَلٰى بَقَاءِ النَّفْسِ وَعَذَابِ الْبَرْزَخِ".[2]

"پدې آيت كريمه كښې ښكاره دليل دے په بقاء د نفس او عذاب د برزخ باندې".

**(10) علامه ابن جزئ رحمه الله ليكي**

"وَاسْتَدَلَّ أَهْلُ السُّنَّةِ بِذٰلِكَ عَلٰى صِحَةِ مَا وَرَدَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ".[3]

"ددې آيت نه اهل السنة والجماعة دليل نيولے دے په صحت دَ هغې چې راغلي دي په باره دَ عذابِ قبر كښې".

**(11) امام ابو بكر جصّاص رحمه الله ليكي**

"هَذِهِ الآيَةُ تَدُلُّ عَلَى عَذَابِ الْقَبْرِ".[4]

"دا آيت كريمه دليل دے په اثبات د عذابِ قبر باندې".

نور هم كنړ آياتونه شته، چې د هغې نه اثبات د عذابِ قبر كيږي.

(4) څلورم آيت قرآن كريم كښې الله فرمائي: ﴿وَلَنُذِيقَنَّهُمْ مِنَ الْعَذَابِ الْأَدْنَىٰ دُونَ الْعَذَابِ الْأَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ﴾.[5]

---

(1) [تفسير القرطبي تحت آية سورة المؤمن: 46].

(2) [روح المعاني تحت آية سورة المؤمن: 46].

(3) [التسهيل لابن الجزي تحت آية سورة المؤمن: 46].

(4) [أحكام القرآن للجصاص تحت آية سورة المؤمن: 46].

(5) [سورة الم السجده: 21].

الله وائي: "مونږ به دوي له د هغې لوې عذاب نه مخکښې معمولي عذاب نزدې عذاب څکوو ددې دپاره چې دوي مونږ ته را اوګرځي".

علماء کرامو پکښې ډير اقوال ذکر کړي دي، خو يَو قول پکښې تفسير مدارک ليکلے دے چې مراد ددې نه عذابِ قبر دے. تفسير زاد المسير ليکي: "چې ددې آيت نه مراد عذابِ قبر دے".[1]

(5) پنځم آيت په اثبات د عذابِ قبر، قرآن کريم کښې الله فرمائي: ﴿وَمَنۡ أَعۡرَضَ عَن ذِكۡرِي فَإِنَّ لَهُۥ مَعِيشَةٗ ضَنكٗا وَنَحۡشُرُهُۥ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ أَعۡمَىٰ﴾.[2] الله تعالى فرمائي: "چا چې زما د کتاب نه مخ واړولو نو د هغهٔ زندګي به تنګه وي، او د قيامت په ورځ به ئې ړوند را اوچت کړم".

علماء کرام ددې مختلف معاني کوي، ليکن يَو معنیٰ د عبد الله بن عباس ﷺ نه زاد الميسر نقل کړې ده "چې مراد ددې نه عذابِ قبر دے، چې الله وائي چا چې زما کتاب ته شا کړه، نو قبر کښې به ددې انسان زندګي ډيره تنګه وي".[3]

دا رنګه نور آياتونه سورت انعام 93، سورت محمد 27، سورت طور 47 په آياتونو هم علماء په اثبات د عذابِ قبر باندې استدلال کوې.

**علامه ابن ابي العز حنفي رحمه الله ليکي**

"وَقَدْ تَوَاتَرَتِ الْأَخْبَارُ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فِيْ ثُبُوْتِ عَذَابِ الْقَبْرِ وَنَعِيْمِهِ لِمَنْ كَانَ لِذَالِكَ أَهْلًا".[4]

---

(1) [تفسير مدارك، وزاد المسير تحت آية الم السجده: 21].

(2) [سورة طه: 124].

(3) [زاد المسير تحت سورة طه آية: 124].

(4) [شرح العقيدة الطحاوية: 399].

وائي: "په تحقيق سره پهٔ تواتر سره اخبار او خبرونه راغلي دي د رسول الله نه په ثبوت د عذابِ قبر کښې، چې عذابِ قبر حق دے، او د هغې نعمتونه د نبي ﷺ نه ثابت دي په تواتر سره د هغه چا دپاره چې څوک ددې نعمتونو لائق وي".

بيا ليکي: "وَسُؤَالُ الْمَلَكِيْنِ فَيَجِبُ اعْتِقَادُ ثُبُوْتِ ذَالِكَ وَالْإِيْمَانُ بِه وَلَا نَتَكَلَّمُ فِيْ كَيْفِيَّتِه" [1].

وائي: "دا تواتر سره د نبي ﷺ نه ثابت دي چې پهٔ قبر کښې د انسان سره د ملائکو سوال او جواب کيږي، او واجب دي چې دا عقيده به ساتي او پدې به ايمان لري، او مونږ د هغې په کيفيت او طريقه کښې خبرې نهٔ کوو، چې څنګه عذاب ميلاويږي؟

بيا ليکي: "إِذْ لَيْسَ لِلْعَقْلِ" [2]. ځکه د انسان عقل د هغې پهٔ کيفيت نهٔ پوهيږي. نو معلومه دا شوه چې عذابِ قبر حق دے، ددې عقيده ساتل واجب دي، ددې نه انکار کولو والا سرے د احاديثو متواترو نه انکار کولو والا ګرځي. دا د علماء کرامو اقوال ذکر شول.

**احاديثِ مبارکه د عذابِ قبر باره کښې**

مشکوٰة المصابيح صفحه 24 کښې باب قائموي "بَابُ إِثْبَاتِ عَذَابِ القَبرِ" "باب دے پهٔ بيان د اثبات د عذابِ قبر کښې".

**(1) اول راويت**

براء بن عازب ﷺ روايت کوي چې رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: «اَلْمُسْلِمُ إِذَا سُئِلَ

(1) [شرح العقيدة الطحاوية: 399].

(2) [شرح العقيدة الطحاوية: 399].

فِي الْقَبْرِ يَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ فَذَلِكَ قَوْلُهُ ﴿يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ﴾».[1]

نبي ﷺ فرمائي: "مؤمن سړے کله چې د هغه نه تپوس اوشي د هغه په قبر کښې نو هغه چې دا ګواهي اوکړي "لا إله إلا الله وأن محمدا رسول الله" نو فرمائي: چې دا دې قول تصديق دے چې ﴿يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ﴾ "هغه کسان چې هغوي ايمان راوړے دے مضبوطئ هغوي په وينا د توحيد باندې په دنيا کښې هم او آخرت کښې هم""، نو قبر کښې هم هغوي په جواب کښې کامياب وي او دنيا کښې هم کامياب وي.

**(2) دويم روايت**

عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ﷺ أنه حدثهم أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا وُضِعَ فِي قَبْرِهِ وَتَوَلَّى عَنْهُ أَصْحَابُهُ وَإِنَّهُ لَيَسْمَعُ قَرْعَ نِعَالِهِمْ أَتَاهُ مَلَكَانِ فَيُقْعِدَانِهِ فَيَقُولَانِ مَا كُنْتَ تَقُولُ فِي هَذَا الرَّجُلِ لِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَّا الْمُؤْمِنُ فَيَقُولُ أَشْهَدُ أَنَّهُ عَبْدُ اللهِ وَرَسُولُهُ فَيُقَالُ لَهُ انْظُرْ إِلَى مَقْعَدِكَ مِنَ النَّارِ قَدْ أَبْدَلَكَ اللهُ بِهِ مَقْعَدًا مِنَ الْجَنَّةِ فَيَرَاهُمَا جَمِيعًا قَالَ قَتَادَةُ وَذكر لنا أنه يفسح لَهُ فِي قَبره ثُمَّ رَجَعَ إِلَى حَدِيث أنس قَالَ وَأَمَّا الْمُنَافِقُ وَالْكَافِرُ فَيُقَالُ لَهُ مَا كُنْتَ تَقُولُ فِي هَذَا الرَّجُلِ فَيَقُولُ لَا أَدْرِي كُنْتُ أَقُولُ مَا يَقُولُ النَّاسُ فَيُقَالُ لَا دَرَيْتَ وَلَا تَلَيْتَ وَيُضْرَبُ بِمَطَارِقَ مِنْ حَدِيدٍ ضَرْبَةً فَيَصِيحُ صَيْحَةً يَسْمَعُهَا مَنْ يَلِيهِ غَيْرَ الثَّقَلَيْنِ».[2]

"د انس ﷺ روايت دے چې نبي ﷺ وئيلي دي يقينًا بنده چې څه وخت په قبر کيخودلے شي، او ددهٔ خپلوان واپس شي نو هغه د دوي د پيزار آواز اوري، چې دي

(1) [صحيح البخاري: (4699)، سنن أبي داود: (4750)].

(2) [صحيح البخاري: (1374)].

مړې له دوه فرشتې راشي، او دا مړے کینوي، او ورته اوائي چې ددې سړي (محمد ﷺ) متعلق ته څه وائي؟ نو مؤمن بنده ورته اوائي چې زۀ ګواهي کوم چې دا د الله بنده او د الله رسول دے، هغه ته به اووئیلے شي، چې خپل د دوزخ ځائے ته اوګوره، الله هغه د جنت په ځائے بدل کړو، هغه دغه ځایونو ته ګوري، او منافق او کافر ته چې اووئیلے شي، ته ددې سړي (محمد ﷺ) متعلق ته څۀ وائې؟ هغه به اوائي زۀ نه پوهیږم، خلقو چې څۀ وئیل ما هم هغه وئیل، بس ورته به اووئیلے شي چې ته نۀ پوهیدې او نۀ دې لوستل، او د اُسپنې په ګروزونو به وهلے شي، هغه به چغې وهي چې د پیریانو او انسانانو نه ما سیوا هر څۀ ئې اوري".

**په دې حدیث کښې چند خبرې دي**

**اوله خبره:** چې کله مړے قبر کښې کیښودلے شي، نو هغه د ژوندو خلقو د پڼړو کشار اوري، چې دوه فرشتې ورته راشي.

یَو سوال دے: چې هغه خو مړے دے نو څنګه د ژوندو خلقو د خپو کشار اوري، او مړے خو په خبره باندې نه پوهیږي، مړے خو څۀ نۀ اوري؟

ددې وجې نه علماء کرام ذکر کوي، کۀ چرته یَو سړي اووئیل چې زما دې قسم وي کۀ د فلانکي سړي سره مې خبرې اوکړې، نو کۀ د هغه انسان سره په ژوند خبرې اوکړې، نو د قسم کفاره پرې لازم شوه، د خپل قسم کفاره به ورکوي، کفاره ئې څۀ ده؟ یا به سحر او ماښام لَس مسکینان مړوي، یا به درې ورځې پرله پسې روژې نیسي، یا به لَسو مسکینانو له کپړې اخلي. اوس یَو سړي قسم کړے دے چې زۀ به فلانکي سړي سره خبرې نۀ کوم، او چې کله هغه انسان مړۀ شو، نو دے راغے او د هغه کټ سره اودریدو، او هغه ته لګیا دے خبرې ورته کوي، نو تمام علماء کرام ذکر کوي چې ددې سړي قسم مات نه دے، سړے په قسم کښې حانث نۀ دے، ولې په

قسم کښې حانث نهٔ دے؟ فتح القدير کښې علامه ابن الهمام رحمه الله هم ليکلي دي، او د احنافو تمام علماءِ کرامو ليکلي دي: چې د سړي قسم څکهٔ نه دے مات شوے؛ چې دے خبرې کوې خو ليکن هغه ئې نه اورې، او هغه پرې نه پوهيږي، نو څکه په قسم کښې حانث نه دے، نو مړے نه اورې، او نه وينې. نو څنګه مړے دَ ژوندو خلقو د خپو کشار اورې؟ نو ددې څهٔ مطلب دے؟ علماءِ کرام ذکر کوې، چې اصل کښې دا کنايه ده دَ سُرعتِ اتيان دَ ملائکو نه. مطلب دا دے: کچرته هلته د قبر خوا کښې يَو ژوندے انسان کينولے شوے وے، او هلته ناست وے، او نور خلق واپس روان وے، نو دې ناست انسان به د راتلونکو خلقو د خپو آواز اوريدلے، چې دي مړې له به ملائک را رسيدلے وے.

**مولانا رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله ليکلي دي**

چې دا د مجهول صيغه ده "إِنَّهُ لَيُسْمَعُ قَرْعُ نِعَالِهِمْ"[1] ددې خلقو د خپو کشار به اوريدلے شي، يعني کهٔ د قبر خوا کښې څوک ناست وي، چې دهٔ له ملائک رارسيدلې وي، او هغه دواړه ملائک دا مړے قبر کښې کينوې او تپوس ترې کوې، چې ستا څهٔ خيال وو ددې سړي باره کښې، مراد ترې رسول الله ﷺ دے.

**دويمه خبره يَوه غلطه نظريه**

بعضي خلق وائي: چې دغي قبر له رسول الله ﷺ حاضريږي. دا خبره غلطه ده، هر قبر له نبي ﷺ حاضريږي. بعضي خلق وائي چې د رسول الله ﷺ تصوير ورسره وي. دا خبره هم صحيح نه ده.

**اصل خبره دا ده**

«مَا كُنْتَ تَقُولُ فِي هَذَا الرَّجُلِ» د نبي ﷺ نښې ورته بيان کړې، د هغهٔ صفات ورته

(1) [الكوكب الدرّي على جامع الترمذي].

بیان کړي، چې تاسو کښې کوم پیغمبر راغلے وو، د هغه باره کښې ستا څه عقیده ده؟ نو کۀ دا مؤمن انسان وي، نو دے به ورته اووائي، چې زما دا عقیده ده، چې دا د الله بنده او د الله پیغمبر دے، إله نۀ وو، او مونږ ته ئې رالیګلے وو.

او چې د کافر نه تپوس اوشي، نو هغه به ورته اووائي چې ماته پته نشته، زۀ خو نه وم خبر، ما خو به هغه وئیل کوم چې به خلقو وئیل، زۀ خو به د هر چا سره ناست ووم، کۀ د مسلمان سره به کیناستم نو د هغه سره به ملګرے ووم، او کافر سره به د هغه ملګرے ووم، زما خپله څۀ عقیده او خپل څۀ خیال نۀ وو. دغي مړي ته به اووئیلے شي، چې نۀ خو تاته علم شته، او نۀ تا څۀ لوستلي دي. یعني دُنیا کښې تا د حق پرستو خلقو تابعداري نه وه کړې. نبي ﷺ فرمائي: دغه منافق او کافر مړے به د اوسپنې په ګروز یَو ګوزار به اووهلے شي، دے به دومره چغه اوهي، چې د انسانانو او پیریانو نه ما سیوا هر څۀ به ئې اوري.

**(3) دریم روایت**

عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا مَاتَ عُرِضَ عَلَيْهِ مَقْعَدُهُ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ، إِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَمِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ، وَإِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَمِنْ أَهْلِ النَّارِ، يُقَالُ: هَذَا مَقْعَدُكَ، حَتَّى يَبْعَثَكَ اللهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ».[1]

د عبد الله بن عمر ﷺ نه روایت دے، چې نبي ﷺ فرمائي: په تاسو کښې چې څوک مړۀ شي، نو سحر او ماښام د هغۀ هغه ځائے هغۀ ته پیش کولے شي، که جنتې وي، نو جنت ورته پیش کولے شي، او کۀ جهنمې وي نو جهنم ورته پیش کولے شي (په عالَمِ برزخ کښې) قیامت له قائم نۀ دے، ددې نه مراد عذابِ قبر دے، (عالَمِ برزخ کښې چې کوم میلاویږي) چې ستا دغه ځائے دے، چې کله قیامت کښې راپاسې نو دغه ځائے ته

(1) [صحيح البخاري: (1379)، مسلم: (2866)].

به ورځي. او قبر کښې عذاب خو جُدا دے. ددې نه معلومه شوه چې عذابِ قبر حق دے.

### (4) څلورم روایت

د سیده عائشه ﵂ نه روایت دے أَنَّ يَهُودِيَّةً دَخَلَتْ عَلَيْهَا فَذَكَرَتْ عَذَابَ الْقَبْرِ فَقَالَتْ لَهَا أَعَاذَكِ اللهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ فَسَأَلَتْ عَائِشَةُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَذَابِ الْقَبْرِ فَقَالَ: «نَعَمْ عَذَابُ الْقَبْرِ قَالَت عَائِشَةَ ﵂ فَمَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بعدُ صَلَّى صَلَاةً إِلَّا تعوذ من عَذَابِ الْقَبْرِ».[1]

سیده عائشه ﵂ خوا ته د یهودو یَو زنانه راغله، سیده عائشي ﵂ سره ناسته وه، نو د عذابِ قبر تذکره ئې شروع کړه، د یهودو هغې زنانه سیده عائشي ﵂ ته ئې اووئیل الله دې تا له د عذابِ قبر نه پناه درکړې، سیده عائشي ﵂ ته پته نه وه چې عذابِ قبر شته، ځکهٔ نبي ﷺ تر دغه وخته پورې د عذابِ قبر باره کښې څهٔ نه وو وئیلې او یهودو ته خو پته وه؛ ځکه تورات کښې دا مسئله وه چې قبر کښې به عذاب وي، نو حضرت عائشي ﵂ د نبي ﷺ نه تپوس اوکړو چې اے د الله پیغمبره ﷺ! چې عذابِ قبر شته او کنه؟ نو نبي ﷺ ورته اوفرمائیل چې آؤ عذابِ قبر حق دے، سیده عائشه ﵂ فرمائي: ددې خبرې نه ورستو ما چرې نبي ﷺ نه دے لیدلے چې هغهٔ مونځ کړے دے مګر خامخا نبي ﷺ به د عذابِ قبر نه پناه غوښته. نو چې د الله پیغمبر ﷺ د عذابِ قبر نه پناه غواړې، نو مونږ له خو بطریق اولٰی پکار دې، چې مونږ د عذابِ قبر نه پناه اوغواړو.

### (5) پنځم روایت

رسول الله ﷺ فرمائي: «إِنَّمَا الْقَبْرُ رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ أَوْ حُفْرَةٌ مِنْ حُفَرِ النَّارِ».[2]

"قبر خو د جنت د باغیچو نه یَوه باغیچه ده، یا د جهنم د کندو نه یَوه کنده ده".

---

(1) [صحيح البخاري: (1372) والفظ له، مسلم: (903)].

(2) [جامع الترمذي: (2460)].

کۀ انسان نیک عمله وي نو قبر د هغۀ دپاره دجنت يَوه باغيچه ده، او کۀ انسان بد عمله وي نو قبر د هغۀ دپاره د جهنم د کندو نه يَوه کنده ده.

**د سيدنا ابو بکر صديق ﷺ قول**

«مَنْ دَخَلَ الْقَبْرَ بِلَا زَادٍ فَكَأَنَّمَا رَكِبَ الْبَحْرَ بِلَا سَفِيْنَةٍ».

کوم سړے چې بغير د نيک عمل نه مړۀ شو او قبر ته لا ړو، نو د هغه داسې مثال دے، لکه يَو سړے دے او لامبو ورله نه ورځې، او تا سمندر ته ورواغورځولو.

**د سيدنا عثمان ﷺ حالت د قبر تيريدو په وخت کښې**

د سيدنا عثمان ﷺ باره کښې راځي چې کله به هغه د مقبرې په خوا تيريدو دومره زيات به ئې اوژړل چې ګيره به ئې تبوله په اوښکو لونده شوه. چا ترې تپوس اوکړو چې تۀ د جنت تذکرې کوې نو تۀ نه ژاړې، د جهنم تذکرې کوې نو تۀ نه ژاړې، ليکن چې کله په قبر تيريږې نو ژاړې، دا ولې؟ سيدنا عثمان ﷺ ورته اوفرمائيل: دا ځکه چې رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: «إِنَّ الْقَبْرَ أَوَّلُ مَنْزِلٍ مِنْ مَنَازِلِ الآخِرَةِ».[1] قبر د آخرت د منزلونو نه اولنے منزل دے، ځکه د دې نه ورستو بيا ډير منازل راځي، نو قبر کښې يا راحت ميلاويږي، يا عذاب ميلاويږي؛ ځکه چې انسان ميدانِ محشر کښې راپاسې نو تول د اعمالو جُدا منزل دے، تقسيم د اعمالو جُدا منزل دے، په پلِ صراط تيريدل جُدا منزل دے. ليکن د آخرت په منزلونو کښې اولنے منزل دا دے، چې د انسان نه روح اوتو او مړۀ شو، دا قبر د هغه اولنے منزل شروع شو، ځوک چې مړۀ شې بس د هغه قيامت شروع شو. نو سيدنا عثمان اوئيل: قبر اولنے منزل دے، ځوک چې په دې منزل کښې کامياب شو، ددې نه ورستو تول منازل آسان دي، او که يَو سړے په دې منزل کښې کامياب نه شو نو د دې نه ورستو تول منازل ګران دي، نو ما سره غم

(1) [جامع الترمذي: (2308)].

دے چې په دې منزل کښې به کامیاب شم او که ناکام. ددې وجې نه سیدنا عثمان ﷺ وائي: ما د نبي ﷺ نه اوریدلي دي «مَا رَأَیْتُ مَنْظَرًا قَطُّ إِلاَّ وَالقَبْرُ أَفْظَعُ مِنْهُ».[1] ما داسې یو منظر نه دے لیدلے مګر قبر د هغې نه زیات د هیبت والا مقام دے. په ټولو منظرونو کښې قبر زیات د هیبت والا منظر دے، ځکه دا اولنے منظر دے.

نو د قبر عذاب حق دے. او چې کوم انسان مړ شو بس د هغهٔ قیامت قائم شو.

**واقعه**

د ادب په کتابونو کښې واقعه راځي چې یو سړي ګیدړ نیولے وو، نو هغه ګیدړ ورته اووئیل ما پرېږده، او کهٔ زهٔ دې مړ کړم نو قیامت راځي، نو هغه ساده سړے وو، چې د ګیدړ په مرګ قیامت راځي، نو ولې ئې مړه کوم. نو ګیدړ ئې پرېښودو نو ګیدړ لرې لاړو، او دهٔ طرف ته ئې مخ کړو، او دهٔ ته ئې اوئیل کهٔ پهٔ نور چا قیامت راتلو او کنهٔ، په ما خو خامخا راتلو.

نو چې څوک مړ شو نو د هغهٔ قیامت قائم شو.

**(6) شپږم روایت**

زید بن ثابت ﷺ فرمائي: چې یو ځل مونږ د نبي ﷺ سره د بنو نجّار د باغ په خوا کښې وو او نبي ﷺ په قچره باندې سُور وو، او مونږ د نبي ﷺ سره روان وو، ناسپه د نبي ﷺ قچرې ټوپونه شروع کړل، نزدې وَو چې نبي ﷺ د قچرې نه غورزیدلے وے، ناڅاپه چې مونږ اوکتل نو د هغې قچرې خوا کښې پنځهٔ یا شپږ قبرونه وو، نو نبي ﷺ اوفرمائیل: چې څوک دا قبرونو والا پیژني؟ نو یو سړي اووئیل: د الله پیغمبره ﷺ آو دا زهٔ پیژنم، نبي ﷺ ورته اوفرمائیل: دا څهٔ وخت کښې وفات شوي دي؟ هغه ورته اووئیل: اے د الله پیغمبره ﷺ! دا د شرک په زمانه کښې وفات شوي دي، داسې وخت کښې وفات

(1) [جامع الترمذي: (2308)].

شوې دې چې ايمان ئې نهٔ وو راوړے، نبي ﷺ اوفرمائيل: يقينًا دا امت په دوي باندې په قبرونو کښې امتحان کولے شي. (اُمت نه مراد ټول خلق دے) کچرته دا يره او غم نه وے چې تاسو به خپل مړي مقبرو کښې نه دفن کوئ، نو ما به د الله نه سوال کړے وے چې الله تاسو ته ښودلے وے، چې څنګه طريقې سره الله دې مړو له عذاب ورکوي. نبي ﷺ ته معجزتًا الله اوښودل، کله به الله داسې کول چې بعضې عذابونه الله خپل پيغمبر ﷺ ته ښودل (د معراج واقعه کښې به راشي چې څومره عذابونه نبي ﷺ ليدلي وو).

وائي: بيا رسول الله ﷺ مونږ ته مخامخ شو، او نبي ﷺ اوفرمائيل: الله پورې پناه اوغواړئ د عذاب د اُور نه، صحابه کرامو رضي الله عنهم اوفرمائيل: مونږ پناه غواړو الله پورې د عذاب د اُور نه. بيا رسول الله اوفرمائيل: پناه اوغواړئ د الله پورې د عذابِ قبر نه، صحابه کرامو رضي الله عنهم اووئيل: مونږ پناه غواړو الله پورې د عذابِ قبر نه، بيا نبي ﷺ اوفرمائيل: اے زما صحابو! د فتنو نه پناه اوغواړئ، صحابه کرامو اووئيل: مونږ الله پورې پناه غواړو د ښکاره فتنو نه او د پټو فتنو نه، بيا نبي ﷺ اوفرمائيل: پناه اوغواړئ د الله پورې د فتنې د دجّال نه.

دجّال څهٔ شے دے؟ دا هغه علامات دې د قيامت د قائميدو، چې کله قيامت قائميږي نو دا به هغه دُور کښې وي، او دے به دعوٰی کوي چې زهٔ رب يم، او دے چې څهٔ وائي نو هغه به کيږي، ځان سره به ئې خپل مصنوعي جنت او جهنم جوړ کړے وي، او خلقو ته به وائي چې دا جنت دے، او دا جهنم دے، کهٔ چا د هغهٔ خبره اومنله هغهٔ به جنت ته دننه کوي، او چې څوک د هغهٔ خبره نهٔ مني نو هغه به جهنم ته اوغورځوي.

نبي ﷺ فرمائي: دوه شکلونه به وي يَو د جنت او يَو د جهنم نو کهٔ تاسو مجبور وي، نو دغې جنت ته مهٔ دننه کيږئ، دا ظاهر کښې جنت دے، او باطن کښې اُور دے، او دا بل چې ظاهر کښې اُور دے، نو دننه پدې کښې جنت دے. نبي ﷺ فرمائي: کله چې

تاسو د دجّال په دُور کښې يئ نو هغهٔ اُور طرف ته ورځئ؛ ځکه دننه ئې کښې جنت دے. دے به د خدايئ دعوٰی کوي، باران به وروي، او اودروي به ئې، دا به الله ده له ورکړے وي، چې خلق گمراه شي. الله امتحان کوې پدې خلقو باندې، خو د هغه نښه به دا وي چې نبي ﷺ فرمائي: د هغهٔ سمه سترگه به ړنده وي، او ستاسو رب ړوند نهٔ دے، تاسو به ئې پدې باندې پيژنئ، او د هغهٔ په تندې به ليکلے شوې وي "ک، ف، ر" يعني کافر، دا لويه فتنه ده. الله دې مونږ ددې فتنو نه اوساتې.

نبي ﷺ اووئيل: د دجّال د فتنو نه پناه اوغواړئ. صحابه کرامو ﷺ اوفرمائيل: مونږ د دجّال د فتنې نه پناه اوغوښته.

## (7) اووم روايت

د سيدنا ابو هريره ﷺ روايت دے، چې رسول الله فرمائيلي دي: کله چې يَو مړے په قبر کښې دننه کړے شي، دوه ملائکې ورته راشي، تکې تورې ملائکې وي، او خړې سترگې ئې وي، (او دا کنايه ده د نهايتِ هيبت د حالت نه) يَو ته "منگر" وئيلے کيږي، او بلې ته "نکير" وئيلے کيږي، هغهٔ ملائکې ورته وائي: تا څهٔ وئيل ددې سړي باره کښې، (يعنې د نبي ﷺ باره کښې) کهٔ چرته دے مومن وي نو دے به ورته وائي: چې دے د الله بنده او د الله پيغمبر دے، او بيا به وائي: چې دا گواهي کُوم چې د الله نه ماسيوا بل حاجت روا نشته او محمد ﷺ د الله بنده او د الله پيغمبر دے، چې کله دے دا اووائي نو ملائک به ورته وائي: مونږ ته پته وه چې تهٔ به مونږ له داسې جواب راکوې.[1]

نو ملائکو ته څهٔ پته وه، ملائک خو عالم الغيب نه دي، دا زمونږ عقيده ده. کهٔ د چا دا عقيده وي چې ملائک عالم الغيب دي، نو دا عقيده د کفر ده. نو ملائک څنگه پوهيدل؟

(1) [جامع الترمذي: (1071)].

نو علماء کرام ذکر کوي: ملائکو ته دا پته وه چې کله ددې انسان نه روح وتو نو هغه روح د انسان علّيّين ته تلے وو، هغې وخت نه ملائکو ته پته لګیدلې وه، چې دا نیک عمله انسان دے، یا ملائکي چې راغلې، او ددهٔ شکل ته ئې اوکتل نو ددهٔ د شکل نه دا معلومیده چې دا نیک عمله انسان دے، د نیک عمله انسان د شکل نه پته لګي، چې دا نیک عمله دے.

حدیث کښې راځي: چې کُوم یَو انسان چې نیک عمله وي، د هغهٔ دا مخ به تک سپین وي د قیامت په ورځ باندې، سپین پرق به وهي. قرآن کښې وائي: ﴿يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ﴾[1]، نو چې ملائک ددهٔ مخ ته اوګورې نو ملائک به پوهه شي، چې دا نیک عمله انسان دے.

نبي ﷺ فرمائي: بیا به دې نیک عمله انسان ته قبر کُولاؤ کړے شي اویا (70) ګزه یَو طرف ته، اویا (70) ګزه بل طرف ته، او بیا به ورته د جنت د طرف نه رنړا راوستے شي، او بیا به ورته اوائي: اودهٔ شه پدې قبر کښې دا ستا د آرام ځائے دے. دے به ورته وائي: ما پرېږدئ چې زهٔ خپل اهل ته واپس شم، چې ورته اووایم چې زهٔ خو ډیر پهٔ مزو کښې یم، او هغوي په دې باندې خبر کړم، فرشتې به ورته وائي: نا نا، اودهٔ شه داسې اودهٔ شه لکه څنګه چې ناوې اودهٔ وي، د هیڅ تکلیف او مصیبت نه مهٔ یرېږه.

او چې کله بد عمله انسان وي، او منافق انسان وي، او هغه مړهٔ شي، نو هغه فرشتې ترې تپوس کوي چې د نبي ﷺ باره کښې څهٔ وائي؟ دے ورته وائي: چې دُنیا کښې به خلقو څهٔ وائیل، نو ما به هم هغه شان اوئیل.

چې چا سره به لاړم نو هغه شان به ما وئیل، زما څهٔ خپل خیال نهٔ وو، زما څهٔ

(1) [سورة آل عمران: 106].

خپله نظریه نهٔ وه. نو نبي ﷺ فرمائي: دغه فرشتې به ورته وائي: چې مونږ ته پته وه چې تهٔ به دغسې وائې، بیا به زمکې ته حکم اوشي، چې راجوخته شه پهٔ دهٔ باندې، نو زمکه به پرې راجوخته شي او پوښتۍ به ئې یَو بل کښې ننوځي، دهٔ ته به تر قیامته پورې عذاب ورکولے شي، ترخو پورې چې قیامت نهٔ دے قائم شوے.[1]

**(8) آتم روایت:**

یَو حدیث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: پهٔ کافر او گناهگار انسان به قبر کښې یَو فرشته مقرر شي، اول به ددهٔ دپاره د جهنم د بسترونه یَو بستره اوغوړولے شي، د جهنم دروازه به ورته کُولاؤ کړے شي، او د جهنم هغه گرمي به ورته راځي، قبر به ورباندې تنگ شي، چې پوښتۍ به ئې یَو بل کښې ننوځي، او یَو فرشته به پرې مقرر شي، چې په سترگو به ړندهٔ وي، او په غوږونو به کنړه وه.

دا ولې؟ علماء کرام ذکر کوې: ړنده به ځکه وي؛ چې دا پته ورته نه لگي چې دا کُوم ځائے دے، کهٔ پهٔ هر ځائے ورته گُزار ورکړو، سر او خپو ته به ئې نه گورې، کهٔ هر ځائے باندې اووهلو، رحم او ترس به ئې پرې نهٔ راځي.

او پهٔ غوږونو به هغه فرشته کنړه وي؛ ځکه چې دے چغې وهي نو کیدے شي چې رحم ئې پرې راغلے وے، ددهٔ هغه چغې به نهٔ اوري.

او نبي ﷺ فرمائي: د هغې فرشتې سره به د اوسپنې گُرز وي، او داسې گُرز به وي کهٔ پهٔ هغې باندې غر اوهلے شي نو هغهٔ غر به خاورې شي، چې کله پرې دا مړے اووهې نو دومره تیز آواز به کوي، چې د مشرق نه تر مغرب پورې هر څهٔ به ئې اورې، صرف انسانان او پیریان به ئې نهٔ اورې، او بیا نبي ﷺ اوفرمائیل: چې کله دې مړې ته هغه گُرز راخلاص کړي نو دا مړے به خاورې شي، بیا به ددې انسان پهٔ بدن کښې

---

(1) [صحیح المسلم: (2867)].

روح واچولے شي، دوباره به پهکښې ساه واچولے شي، بيا به بدن روغ شي، او بيا به سزا ورکولے شي.[1]

ډېر زيات احاديث علماؤ راجمع کړي دي په اثبات د عذابِ قبر باندې چې عذابِ قبر حق دے، د عذابِ قبر نه منکر کافر دے.

**(9) نهم روايت**

حديث کښې راځي، نبي ﷺ په څه قبرونو تيريدو، او د هغه قبرونو والو له عذاب ورکولے شو، نبي ﷺ صحابه کرامو ته اوفرمائيل: دي دواړو قبرونو والو ته عذاب ورکولے شي، او دا عذاب چې ورکولے شي نو دا په يَو لويه گناه کښې ورکولے نۀ شي، د يَو سړي کار دا وو چې هغۀ به چغلي کوله، ده له څکه عذاب ورکولے شي، او دا بل انسان چې وو دۀ به د وړو بولو نه ځان نۀ بچ کولو، دۀ له څکه عذاب ورکولے شي.

بيا نبي ﷺ يَو لونده لختة را واغسته په مينځ ئې ماته کړه، نيمه ئې په يَو قبر کيښوده او نيمه ئې په بل قبر کيښوده. نبي ﷺ اوفرمائيل: چې تر څو پورې دا لختې لوندې وي تر هغې به الله عذاب کښې سپک والے راولي.[2]

نو ددې دومره آياتونو او احاديثو نه دا خبره ثابته شوه چې عذابِ قبر حق دے. الله رب العزت دې مونږ له د قبر د عذاب نه پناه راکړي. (آمين)

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



(1) [سنن أبي داود: (4751)].

(2) [صحيح البخاري: (271، و1378، و6052، و6055)، سنن أبي داود: (20) سنن النسائي: (31)].

بسم الله الرحمن الرحيم

وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَا إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَسَاءَ سَبِيلًا

(سورة بني إسرائيل: 32)

# موضوع

# زنا ګناه کبیره ده

بمقام جلسئ

خطیب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله

# زنا ګناه کبیره ده

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدَهٗ وَرَسُوْلَهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَآ إِنَّهٗ كَانَ فَاحِشَةً وَّسَآءَ سَبِيْلًا﴾.(1)

وقال تعالى في مقام آخر: ﴿وَالَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللهِ إِلٰهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُوْنَ النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُوْنَ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ يَلْقَ أَثَامًا﴾.(2)

وَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «مَنْ زَنٰى أَوْ شَرِبَ الْخَمْرَ نَزَعَ اللهُ مِنْهُ الْإِيمَانَ كَمَا يَخْلَعُ الْإِنْسَانُ الْقَمِيصَ مِنْ رَأْسِهٖ».(3)

عزت مندو مسلمانانو رونړو! مخکښې جمعو کښې د بعضې لویو ګناهونو ذکر شوے وو، د هغې سزاګانې، او د هغې عذابونه بیان شوې وو. اوس یوه بله ګناه کبیره چې هغه هم په خلقو کښې که عامه نه ده نو عام کیدو والا ده.

او خلق دیته نه ګورې چې دا ګناه ده، ډیر کم خلق به ئې ددې وجې نه کوې

(1) [سورة بني إسرائيل: 32].

(2) [سورة الفرقان: 68].

(3) [سورة الفرقان: 68].

چې دا گناه ده، اکثر د یرې د وجې نه یا د عدمِ وجود د وجې نه دا گناه نهٔ کوې، هغهٔ گناهِ کبیره هغه زنا ده. زنا هم پهٔ گناهونو کښې یَوه لویه گناه ده، چې یَو مسلمان د مسلمانې زنانه سره یا د یَو کافرې زنانه سره زنا کوې بغیر د نکاح نه نو دیته زنا وائي.

**د اسلام دَ راتلو نه مخکښې زنا قبیح عمل وو**

د اسلام نه مخکښې زنا یَو قبیح عمل وو، او گنده عمل وو، د اسلام نهِ مخکښې هم خلقو دا عمل ناکاره گنړلو، د سپکو خلقو او د رذیله خلقو کار وو، او پهٔ اسلام کښې هم زنا یَو قبیح عمل دے.

**د سیدنا عثمان بن عفان ﷺواقعه**

کله چې سیدنا عثمان بن عفان ﷺ محاصره کړے شو، او د هغهٔ نه دښمنان چار چاپیره وو، هغه د خپلې کوټې چت ته اوختو، او هغهٔ یَو څو خبرې کړې وې، هغهٔ اووئیل: پهٔ اسلام کښې د مسلمان قتل پهٔ دریو خبرو جائز دے. (1) یَو دا چې کله مسلمان د اسلام نه واوړې او مرتد شې نو ددهٔ مرګ او قتل جائز دے. او زهٔ د اسلام نه مرتد شوے نهٔ یم. (2) دویم دا چې د یَو مسلمان د لاس نه بل مسلمان قتل شې. زما د لاس نه څوک مسلمان قتل شوے نه دے. (3) دریم دا چې څوک زِنا اوکړې او وادهٔ والا وي، نو هغه رجم کولے شي. سیدنا عثمان ﷺ ورته اوفرمائیل: «مَا زَنَيْتُ فِيْ جَاهِلِيَّةٍ وَلَا فِيْ إِسْلَامٍ» ما نهٔ د اسلام پهٔ حالت کښې زنا کړې ده، او نهٔ مي د اسلام نه مخکښې زنا کړې ده. نو تاسو ما پهٔ څهٔ باندې ووژنئ؟

نو په دُورِ جاهلیت کښې هم زنا د سپکو خلقو کار وو، نو زنا لویه گناه ده.

**قرآن کریم کښې د زنا مذمت**

قرآن کریم کښې الله فرمائي، مؤمنانو صفت کوي نو الله فرمائي: ﴿وَلَا يَزْنُونَ﴾ "زنا نهٔ کوي".

بل آیت کښې الله فرمائي: ﴿وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَا إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَسَاءَ سَبِيلًا﴾.[1]

"زنا ته مهٔ نزدې کیږئ". یعني ګوم ځائے کښې چې زنا کیږي، ګوم ځائے کښې چې زنا کار خلق دے، د زنا داسې دواعې دي چې د هغې نه زنا پیدا کیږي، نو هغې ځائے ته مهٔ ځئ. يَو ځائے کښې زنا نشته خو هغې ځائے کښې ناستې سره د انسان زنا ته میلان کیږي، نو هغې ځائے ته مهٔ ځه، د کومو اسبابو نه چې زنا پیدا کیږي، نو هغې اسبابو طرف ته رغبت او میلان مهٔ کوئ، دومره کلک حکم الله کوي، زنا کول خو ورستو دي، د زنا ځائے ته به هم نهٔ نزدې کیږي؛ ځکه ﴿إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَسَاءَ سَبِيلًا﴾ (سورة بني إسرائيل: 32) "یقینًا دا ډیر د بے حیا کار دے او ډیره ناکاره لار ده".

د مسلمان د شان سره مناسب نهٔ ده، کچرته د مسلمان نه خطايئ سره زنا شوې وي نو الله ته دې توبه اوباسې، او آئنده کښې دې زړه کښې راولې چې زنا د مسلمان شان نهٔ دے، زهٔ مسلمان یم بیا به زنا نهٔ کوم، نو کیدے شي چې الله ئې معاف کړي، او کهٔ يَو سړے وائي چې زهٔ زنا نهٔ کوم، او هغه ددې وجې نهٔ کوي چې هغه له زنا نهٔ میلاویږي نو دا کمال نهٔ دے، او دا د مسلمان شان نهٔ دے.

**د مؤمنانو صفت**

قرآن کریم کښې الله د عباد الرحمن نښې او صفتونه ذکر کوي، الله فرمائي: ﴿وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ﴾.

"زما نیکان بندیګان دا هغه کسان دي چې نهٔ را مدد کوي د الله سره بل حاجت روا". د الله سره څوک شریک نهٔ پیدا کوي. د "إِلٰه" په معنی ډیر خلق نهٔ پوهیږي، بعضې خلق وائي دې نیکانو بندیګانو ته خو مونږ "أٰلهه" نهٔ دې وئیلې، مونږ ورته خدایان نهٔ دې وئیلې.

(1) [سورة بني إسرائيل: 32].

**شیخ عبد القادر جیلاني رحمه الله لیکي:**

"كُلُّ مَا تَعْتَمِدُ عَلَيْهِ فَهُوَ إِلٰهُكَ وَكُلُّ شَيْءٍ تَخَافُ مِنْهُ وَتَرْجُوْهُ فَهُوَ إِلٰهُكَ".[1]

" هر هغه شے چې تۀ پرې اعتماد کوې ستا دا یقین دے چې دے زما نه شر لرې کوي، ماله فائده را رسوي نو هغه ستا إِلٰه دے". او هر هغه شے چې تۀ د هغه نه یره کوې (بغیر د ظاهرې اسبابو نه) دا ستا إِلٰه دے، او هر هغه شے چې تۀ د هغه نه طمع کوې (بغیر د ظاهرې اسبابو) هغه ستا إِلٰه دے نو نیکان بندګان اګر چې تا ورته خدایان نۀ دي وئیلي، لیکن ستا د افعالو او کارونو نه او اقوالونو نه معلومیږي چې تا ورته خدایان وئیلي دي؛ ځکه د هغوي په لاس کښې اولاد ورکول نشته، او تۀ د هغوي نه اولاد غواړې، نو ستا ترې طمع ده، د هغوي پۀ لاس کښې فائده او نقصان نشته. تۀ ورزې او د هغوي نه سوال کوې، چې ما نه تکلیف لرې کړه، او یره ترې کوې کۀ زۀ ورته خوا ته لاړ نه شم ما ته تکلیف را رسوي. نو د مسلمان صفت دا دے چې د الله سره بل څوک نۀ رامدد کوي.

**د مؤمنانو دویم صفت**

﴿وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ﴾ "او نۀ وژني هغه نفس چې الله د هغۀ وژل حرام کړي دي مګر پۀ حق باندې". پۀ حق باندې ئې مړۀ کوئ پۀ ناحقه باندې مړک مۀ کوئ. او پۀ حق باندې مړک دا هم دے چې د وادۀ والا کس زنا اوکړي، نو حق دا دے چې هغه رجم کړه.

یَو حدیث کښې راځي نبي ﷺ فرمائي: یَو مسلمان چې د هغۀ په الله باندې ایمان وي او د الله پیغمبر ﷺ باندې ایمان وي، چې ددې خبرې ګواهي ورکوي چې

(1) [الفتح الرباني: 87].

"أَشْهَدُ أَنْ لاَّ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ" ددې مسلمان وژل حرام دي.

**د دریو وجونه د مسلمان وژل جائز دي**

(1) يَو ددې وجې نه چې يَو سړے د دينِ اسلام نه مرتد شي اسلام ئې راوړے وو، بيا كافر شو، د اسلام دعوت ورته وركړه، كهٔ اسلام ئې قبول كړو نو خه ده، او كهٔ اسلام ئې قبول نهٔ كړو نو ددې انسان مرگ پهٔ اسلام كښې جائز دے.

(3) دويم ددې وجې نه چې هغهٔ بل مسلمان قتل كړے وي او د هغهٔ بدل كښې دے قتلوې نو ددهٔ مرگ روا دے.

(4) دريم ددې وجې نه د يَو سړي مرگ روا دے چې هغهٔ زنا اوكړه او وادهٔ ئې كړے وو نو هغه به رجم كولے شي، او كهٔ وادهٔ ئې نه وو كړے نو هغه نه به دُورې وركولے شي.

**د دوو كسانو واقعه**

دوه كسان راغلل نبي ﷺ ته وائي زمونږ پهٔ مينځ كښې د الله په كتاب باندې صحيح فيصله اوكړه، نبي ﷺ ورته اووئيل: خه، هغوي كښې يَو كس اووئيل: د الله پيغمبره فيصله د الله په كتاب باندې اوكړه، ليكن ماله اختيار او اجازت راكړه، چې زهٔ خپله خبره اُوكړم، نبي ﷺ ورته افرمائيل: خپله خبره اُوكړه، هغه كس ورته اووئيل: زما زوے وو هغهٔ وادهٔ نهٔ وو كړے او ددې سړي سره نوكر وو، كډې او بيزې به ئې څرولې ددې سړي د ښځې سره ئې زنا اُوكړه، نو دهٔ ما ته اووئيل: چې ستا زوې خو داسې كار كړے دے، وائي: ما ورته اووئيل: چې څهٔ به كوو؟ وائي: ده ماته اووئيل: چې ستا زوې به رجم كوو؛ ځكه تورات كښې دا مسئله وه، وائي: ما ورته اووئيل: كهٔ نه ئې رجم كوو نو بيا به څهٔ كوو، وائي: ما ته ئې اووئيل: چې يَو جينۍ او سل كډې راوله، نو خلاص به شې، نو وائي: ما ورته يَو جينۍ او سل كډې وركړې، وائي: بيا مې د علماؤ نه تپوس اُوكړو،

چې دا مسئله څنګه ده؟ وائي: ما ته علماؤ اووئيل: چې ستا زوې باندې يَو جينئ او سل کډې نشته، ستا د زوې دپاره سل دُورې دې، او يَو کال دپاره به ئې د کلي نه اُوباسي، او ددهٔ ښځه هغه به رجم کولے شي، ددهٔ ښځې زنا کړې وه، نو هغه وادهٔ وه، او ستا زوې خو وادهٔ نهٔ وو کړے، ددهٔ ښځه به رجم کولے شي. نبي ﷺ ته ئې اووئيل مونږ. تا له راغلي يو تهٔ زمونږ فيصله اوکړه، نبي ﷺ ورته اوفرمائيل: زما دې د الله پهٔ ذات قسم وي، چې زهٔ به ستاسو مينځ کښې د الله پهٔ قانون فيصله کوم، او فيصله ئې ورته دا اُوکړه، د هغې هلک پلار ته ئې اووئيل وائي: ستا زوې وادهٔ نهٔ دے کړے نو پهٔ هغه باندې پهٔ اسلامي قانون کښې سل دُورې دې، ستا نه چې سل کډې او يَو جينئ اغستې ده، دا دې تاله واپس درکړې، او ستا زوې له به سل دُورې ورکولے شي، او د يَو کال دپاره به د کلي نه ويستلے شي، او ددې بل سړي دا ښځه به رجم کولے شي، نبي ﷺ سيدنا اُنيس رضي الله عنه ته اووئيل: سحر وختې لاړ شه او ددهٔ د ښځې نه اقرار واخله، کهٔ ښځې اقرار اوکړو چې آؤ ما ورسره زنا کړې ده نو ښځه به پهٔ هغه ځائے رجم کوې، هغه لاړو او هغه ښځه ئې رجم کړه، د الله قانون دے چې مسلمان به پدې دريو کارونو قتلولے شي، يَو چې وادهٔ ئې کړے دے او زنا ئې اُوکړه.[1]

**د امام شافعي رحمه الله مسلک**

هغه وائي: چې کله يَو سړي زنا اُوکړه، او غير شادي شده دے، نو يَو کال دپاره هغه د کلي نه اوباسلے شي، او بهر به اوسيږي، او سل دُوري به هم ورکولے شي.

**د امام ابو حنيفه رحمه الله مسلک**

هغه وائي: چې نا سل دُورې به ورکولے شي، او د يَو کال دپاره بهر ويستل دا پهٔ حد کښې داخل نهٔ دي، آؤ کهٔ حاکمِ وقت د مصلحت دپاره دا ښهٔ اوګڼړل چې دا هلک

(1) [صحيح البخاري: (6827)، سنن أبي داود: (1433)، سنن النسائي: (4511)].

کلي کښې اوسيږي نو ښځۀ نۀ دے، نو د يَو کال دپاره ئې د کلي نه بهر کړه، خو د هر چا دپاره دا قانون نۀ دے، او سل دُورې د هر چا دپاره دي.

د مؤمنانو دريم صفت

﴿وَلَا يَزْنُونَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَٰلِكَ يَلْقَ أَثَامًا﴾ "زنا نۀ کوې چا چې داکار اُوکړو نو د خپلې ګناه سره به ميلاؤ شي".

﴿يُضَاعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيَخْلُدْ فِيهِ مُهَانًا * إِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا فَأُولَٰئِكَ يُبَدِّلُ اللَّهُ سَيِّئَاتِهِمْ حَسَنَاتٍ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا﴾.[1]

دوچند به شي د هغه دپاره عذاب د قيامت په ورځ باندې هميشه دپاره به پدې جهنم کښې ذليله او رسوا پروت وي، چې کله ئې زنا ته جائز وئيلې وي مګر هغه خلق به الله د سزا نه بچ کړې، چې په غلطۍ سره ترې زنا اوشوه، توبه ئې ويستله او ايمان ئې راوړو، او د هغې نه بعد ئې خپل عمل برابر کړو، نو الله وائي: زۀ به ئې معاف کړم نو دا د مسلمان شان نۀ دے چې هغه به زنا کوې.

قرآن کريم کښې الله فرمائي: ﴿الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ﴾.[2]

"زنا کار سړے او زنا کاره ښځه اووهۍ هر يَو د هغوي نه سَل سَل دُورې". خو دا هغه وخت کښې چې کله ئې وادۀ نۀ وي کړے، او چې وادۀ ئې کړے وي نو د احاديثو د نبي ﷺ نه ثابت دي چې رسول الله ﷺ، او صحابه کرامو هغه رجم کړي دي.

د زنا باره کښې احاديث

(1) اول روايت

سيدنا ماعز بن مالک رضي الله عنه راغے او رسول الله ﷺ ته وائي: «يَا رَسُوْلَ اللهِ! طَهِّرْنِيْ» د

(1) [سورة الفرقان: 69-70].

(2) [سورة النور: 2].

اے د الله پیغمبره! ما پاک کړه، نبي ﷺ ترې بل طرف ته مخ واړولو، بیا هغه اووئیل: «یَا رَسُوْلَ اللهِ! طَهِّرْنِيْ» د اے د الله پیغمبره! ما پاک کړه، نبي ﷺ صحابو ته اوفرمائیل: په دهٔ څهٔ اوشو، نشه ئې کړې ده؟ صحابو ورته اووئیل نشه ئې نه ده کړې، په سوچ باندې خبره کوې، نبي ﷺ ورته اوفرمائیل: ولې څهٔ چل دې کړے دے؟ هغه اووئیل: د الله پیغمبره ما زنا کړې ده، په ما د الله قانون جارې کړه، نبي ﷺ صحابو ته اوفرمائیل: دے بوځئ او رجم ئې کړئ، صحابو بوتلو او رجم ئې کړو. او نبي ﷺ چې په قبر مسئله او بیان کولو نو د هغهٔ صفت ئې ذکر کړو.

او په دغه روایت کښې راځي نبي ﷺ اوفرمائیل: سیدنا ماعز رضي الله عنه داسې توبه الله ته ویستله کهٔ ددهٔ دا توبه په تمامه دُنیا کښې خومره گناهګار دې په هغوي تقسیم شې نو ددې نه هم سیوا کیږي[1]. داسې د اخلاص نه ډکه توبه ئې ویستله.

نو دا د سَل دُررو حکم د هغه چا دپاره دے چې هغه غیر شادې شده وي، او چې شادې شده وي نو د هغهٔ دپاره اسلام کښې رجم دے، خو چونکه زمونږ په ملک کښې اسلامې قانون نشته، نو دا اختیار بل چاله نشته چې هغه چاله دُورې ورکړې، یا څوک رجم کړې، دا د اسلامې حاکم کار دے، او کهٔ هغه دا کار نهٔ کوې نو زما او ستا نه الله دا تپوس نهٔ کوې، دا تپوس به د هغهٔ نه کوې، چې تا په ملک کښې اسلامي قانون ولې نهٔ وو نافذ کړے.

**واقعه**

یَو زنانه راغله وائي د الله پیغمبره د الله قانون را باندې جارې کړه، ما زنا کړې ده، رسول الله ﷺ هغه رجم کړه.

---

(1) [صحیح المسلم: (1695)].

نو مقصد دا دے چې وادۀ والا دے او زنا ئې اوکړه نو هغه به رجم کولے شي، او غیر وادۀ والا چې دے نو هغۀ له به سَل دُورې ورکولے شي.

**د سزا طریقه**

﴿وَلَا تَأْخُذْكُم بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ﴾.[1]

"اودې نۀ نیسي تاسو لره پدې دواړو باندې نرمې د الله د قانون پۀ جارې کولو کښې". کچرته دې سړي او ښځې له سزا ورکوئ نو دا به نۀ وایئ چې پۀ مزه مزه به ئې اووهو هسې نه چې درد مند شي الله وائي: نا زړۀ به پرې نه سوزوئ مضبوطه او سخته سزا ورله ورکړئ چې بیا زنا نۀ کوي.

**دویمه طریقه**

﴿وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَائِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾.[2]

"حاضر دي شي سزا ددې دواړو ته یَو ډله د مؤمنانو نه". پکار دا دې چې عام اعلان اوکړے شي چې فلانکې سړي او ښځې له سزا ورکولے شي یا رجم کولے شي یا هغوي له دُورې ورکولے شي نو تاسو را جمع شئ، چې د هغوي تماشه اُوکړئ، دا خلق ددې دپاره راجمع کولے شي چې دا خلق د هغوي نه عبرت واخلي چې څوک داسې کار نۀ کوي دا د الله قانون دے.

**(2) دویم روایت**

رسول الله ﷺ فرمائي: «لاَ يَزْنِي الزَّانِي حِينَ يَزْنِي وَهُوَ مُؤْمِنٌ، وَلاَ يَسْرِقُ حِينَ يَسْرِقُ وَهُوَ مُؤْمِنٌ، وَلاَ يَشْرَبُ حِينَ يَشْرَبُهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ».[3]

---

(1) [سورة النور: 2].

(2) [سورة النور: 2].

(3) [رواه البخاري: (2475، و5578، و6772، و6782، و6810)].

کوم وخت چې زناکار زنا کوي نو دے مؤمن نۀ دے، کوم وخت چې يَو سړے غلا کوي نو دے مؤمن نۀ دے، کوم وخت چې يَو سړے شراب څکي نو دے مؤمن نۀ دے، پدې وخت کښې دے د ايمان نه پاک دے، دا زنا دومره لويه ګناه ده چې کله ددې ګناه نه واپس شي نو ايمان ورته بيا واپس راشي.

**(3) دريم روايت**

رسول الله ﷺ فرمائي: «إِذَا زَنَى الرَّجُلُ خَرَجَ مِنْهُ الْإِيمَانُ كَانَ عَلَيْهِ كَالظُّلَّةِ، فَإِذَا انْقَطَعَ رَجَعَ إِلَيْهِ الْإِيمَانُ».[1]

کله چې يَو سړے زنا اُوکړي نو د هغۀ نه ايمان اوځي، دا ايمان د هغۀ پۀ سر باندې د يَو چترۍ يا د وريځې پشان وي، کچرې دے د زنا پۀ حالت کښې مړۀ شو بے ايمانه مړۀ شو، او کۀ دے د زنا نه واپس شو نو ايمان ورته بيا واپس شي.

**يَو سوال او د هغې جواب**

يَو سړے د زنا پۀ حالت کښې مړۀ شو نو هغه باندې جنازه څنګه ده؟

نو علماء کرام ذکر کوي چې تهيک ده، عظيم ګناهګار دے حساب کتاب به ورسره الله کوي، خو ليکن دے د اسلام نه بهر شوے نۀ دے؛ ځکه مرتکِب د ګناه کبيره د اهل السنت والجماعت مسلک دے چې د اسلام نه بهر کيږي نه، نو لوې ګناهګار دے، الله به ورته سزا ورکوي.

**(4) څلورم روايت**

رسول الله ﷺ فرمائي: «ثَلَاثَةٌ لَا يُكَلِّمُهُمُ اللهُ، وَلَا يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ».

درې کسان داسې دي چې نه به ورسره الله خبرې کوي او نۀ به ورته الله د

(1) [رواه أبو داود: (4690)].

رحمت پۀ نظر کورې او نۀ به ئې د ګناهونو نه پاک کړې، او الله به ورته دردناک عذاب او سزا ورکوې، هغه درې کسان کوم دې؟

(1) یو نبي ﷺ فرمائي: «شَيْخٌ زَانٍ» یا واده کړي زنا کونکي هغه بوډا چې د بوډا والې پۀ حالت کښې زنا کوې، هغه بوډا چې الله له د هغه د سپینې ګیرې نه حیاء ورځې، او دے زنا کوې، او صرف زنا نۀ ده هر بوډا چې د بوډا والې پۀ حالت کښې هره ګناه کوې نو د هغۀ سزا د ځوان نۀ زیاته ده، کۀ بوډا دے او جوارې کوې نو ددۀ سزا د نورو جوار ګرو نه زیاته ده، یا دغسې د بوډا والې پۀ حالت کښې غلا کوې، نو ددۀ سزا د نورو غلا ګرو نه زیاته ده، پکار ده چې دے خو ځان له مرګ مخې ته کړې.

حدیث کښې راځي نبي ﷺ فرمائي: د هغې انسان عذر د قیامت پۀ ورځ د الله دربار کښې نۀ قبلیږي چې الله ورته شپیتۀ (60) کاله زندګي ورکړې ده، او پۀ شپیتو کالو کښې هم دے سم نۀ دے، نو دے کۀ د قیامت په ورځ عذر پیش کوې چې الله زۀ خبر نۀ ووم، ماته پته نۀ وه، الله به ورته وائي ستا عذر زما دربار کښې قبول نۀ دے.

(2) دویم نبي ﷺ فرمائي: «وَمَلِكٌ كَذَّابٌ» هغه بادشاه چې هغه دروغ وائي، سره د بادشاهت نه دروغ وائي، ددۀ سره به الله نه خبرې کوې، نۀ به ورته د رحمت پۀ نظر ګورې، او الله به ورته دردناک عذاب ورکوې.

(3) « وَعَائِلٌ مُسْتَكْبِرٌ» هغه فقیر او غریب چې هغه سره د فقر او غریبۍ نه تکبر کوې، نو ددې انسان سره به الله نۀ خبرې اوکړې، نۀ به ورته د رحمت پۀ نظر اوګورې، او دردناک عذاب به ورکوې.[1]

نو زنا لویه ګناه ده پکار دادې چې هر مسلمان نارینه او زنانه ددې قبیح عمل نه ځان اوساتي.

(1) [رواه مسلم: (107)].

## (5) پنځم روایت

مخکښې چې ما کوم آیت لوستے وو ﴿وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ﴾

ددې په ضمن کښې مفسرين يَو حديث ذکر کوي، چې يَو صحابي راغے او رسول الله ﷺ ته وائي: "أَيُّ الذَّنْبِ أَعْظَمُ عِنْدَ اللهِ؟ قَالَ: «أَنْ تَجْعَلَ لله نِدًّا وَهُوَ خَلَقَكَ»" اے د الله پيغمبره په ګناهونو کښې لويه ګناه کومه يَوه ده؟ نبي عليه السلام ورته اوفرمائيل: لويه ګناه دا ده چې ته د الله سره شريک پيدا کړې، او حال دا دے چې ته الله پيدا کړے ئې، رزق الله در کوي، زمکه درته الله پيدا کړې ده، آسمان درته الله پيدا کړے دے ﴿هُوَ الَّذِي خَلَقَ لَكُم مَّا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا﴾.[1]

"دا الله هغه ذات دے چې څومره ځيزونه په زمکه کښې دې دا ټول ئې ستاسو د فائدې دپاره پيدا کړې دې". هر څۀ د الله دې زمکه د الله ده، آسمان د الله دے، حکومت او نظام پرې د الله دے، او د هغې باوجود ته الله پريږدې، او دهغۀ سره نور برابر وې، نو دا لويه ګناه ده.

بيا هغه صحابي تپوس کوي "ثُمَّ أَيٌّ؟ قَالَ: «وَأَنْ تَقْتُلَ وَلَدَكَ تَخَافُ أَنْ يَطْعَمَ مَعَكَ»" بيا ددې نه پس لويه ګناه کومه يَوه ده؟ نبي عليه السلام اوفرمائيل: دويم نمبر لويه ګناه دا ده چې ته خپل بچې ددې وجې نه وژنې چې صبا به دۀ له څوک ډوډۍ ورکوي، خپل بچې ددې وجې نه قتل کوې، دا دويمه لويه ګناه ده. الله فرمائي: ﴿وَمَا مِن دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا﴾.[2]

---

(1) [سورة البقره: 29].

(2) [رواه أحمد في "مسنده": (23854)].

"داسې يَو زنده سَر پهٔ زمکه کښې نشته مګر پهٔ الله باندې د هغهٔ رزق دے".
څومره مخلوق چې الله پيدا کړے دے ټولو له الله رزق ورکوي، بيا هغه صحابي تپوس اوکړو "ثُمَّ أَيُّ؟ قَالَ: «أَنْ تُزَانِيَ حَلِيلَةَ جَارِكَ»" وائي ما اووئيل: ددې نه پس لويه ګناه کومه يَوه ده؟ وائي: نبي ﷺ اوفرمائيل: چې ستا د ګاونډي ښځه ده او تهٔ د هغې سره زنا اوکړې، نو دا لويه ګناه ده.[1]

پکار خو دا وه چې تا د ګاونډي د ښځې خيال ساتلے وے، او تا د ګاونډي ښځې ته د خپلې مور او خور پهٔ نظر کتلے وے.

## (6) شپږم روايت

رسول الله ﷺ صحابؤ ته اوفرمائيل: چې اے زما صحابؤ! ستاسو د زنا باره کښې څهٔ خيال دے، چې زنا څنګه کار دے؟ صحابه کرامو ورته اوفرمائيل: زنا حرامه ده، الله حرامه کړې ده، او دا به تر قيامته پورې حرامه وي، چې صحابو دا اووئيل نو نبي ﷺ ورته اوفرمائيل: زنا خو حرامه ده، خو ياد ساتئ! کهٔ يَو سړے لَس زناګانې اوکړي، هغه لَس زناګانې دومره ګناه والا نهٔ دي، لکه څومره چې د ګاونډي د ښځې سره زنا ګناه ده، چې بل ځائے زنا اوکړي نو هغه هم ګناه ده، ليکن د ګاونډي د ښځې سره زنا زياته ګناه ده، او ددې وجه دا ده چې د ګاونډي حفاظت په تا باندې لازم دے.[2]

## د ګاونډي دَ حق پهٔ باره کښې د نبي ﷺ فرمان

رسول الله ﷺ فرمائي: «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ لَا يَأْمَنُ جَارُهُ بَوَائِقَهُ».[3]

تر هغې وخته پورې يَو سړے مؤمن نهٔ شي کيدے چې تر څو پورې د هغهٔ

---

(1) [رواه البخاري: (4477، و6001، و6811، و7532)، ومسلم: 86].

(2) [رواه البخاري فى "الأدب المفرد": (121)، ومسلم: (46)].

(3) [رواه البخاري فى "الأدب المفرد": (121)، ومسلم: (46)].

ګاونډي د هغهٔ د شر او فساد نه پهٔ امن شوے نهٔ وي.

نن مسلمانان داسې حد له رسيدلې دې چې يَو ګانډې پهٔ بل ګاونډي اعتماد نهٔ کوې، د بهر د خلقو نه نهٔ يريږي او د ګاونډي نه يريږي.

رسول الله ﷺ فرمائي: بهر دي لَس کرتې غلاګانې اُوکړې هغه هم ګناه ده، سړے د ايمان نه خلاصيږي، خو د يَو ګاونډي د کور نه غلا کول دا د لَسو غلاګانو برابر دي، دومره لويه ګناه ده.

ايمان خو ديته وائي چې تهٔ د خپل ګاونډي د ښځې حفاظت اُوکړې، د ګاونډي د مال او عزت خيال اُوساتې، دا د ايمان تقاضا ده.

دا ايمان نهٔ دے چې تهٔ موقع ګورې چې څهٔ وخت به زما ګاونډي د کور نه اُوځي، چې زهٔ ددهٔ مال او کور کښې خيانت اُوکړم.

**(7) أووم روايت**

رسول الله ﷺ فرمائي: چې ما پهٔ خوب کښې اوليدل، ... نو ما ډير زيات عذابونه اُوکتل، يَو عذاب مې دا اُوليدو، ما د تنور پهٔ شکل يَو ځائے اوليدو، چې ښکته نه کولاؤ وو، او د پاسه نه ئې خلهٔ تنګه وه، وائي: مونږ هغي ته ورښکاره شو، نو هغهٔ تنور کښې اُور بليدو، او سړي او ښځې پکښې بربنډ ګډوډ پراتهٔ وو، دوي ته به د لاندې د اُور لمبې را اُوچتيدلې، دوي به ئې بره سرته راوچت کړل او دوي به چغې وهلې، وائي: ما تپوس اُوکړو چې دا کوم خلق دي؟ نبي عليه السلام وائي ما ته جبرائيل عليه السلام او ميکائيل عليه السلام اوفرمائيل: دا هغه زناکار سړي او زناکارې ښځې دي چې دوي دنيا کښې زناګانې کړې وي، نن ځکه الله پدې اُور کښې يَوځائے غورځولې دې.[1] زنا دومره لويه ګناه ده. مسلمانانو له پکار دې چې ددې ګناه نه ځان اُوساتې.

(1) [رواه البخاري: (1386)].

## واقعه

امام منذري رحمه الله په "الترغيب والترهيب" كښې يَوه واقعه ذكر كړې ده، استدلال ترې نۀ كيږي، خو هغوي ذكر كړې ده. وائي: بني اسرائيلو كښې يَو عابد وو، چې هغۀ شپيتۀ (60) كاله د الله عبادت كړے وو او راهب وو، ځان له به ئې كوټه كښې عبادت كولو، بهر به نۀ راووتو، (بنې اسرائيلو كښې ډير لوې عابدان تير شوې دې، د هغوي پۀ دين كښې رهبانيت وو، زمونږ په دين كښې رهبانيت نشته، چې شپه او ورځ كوټه كښې ناست يا، او بهر مۀ را أوځه، او صرف ذكر و اذكار كوه، داسې رهبانيت نشته، نبيﷺ فرمائي: زما د أمت رهبانيت توره اغستل دې، او ميدانِ جهاد كښې جهاد كول دې)، نو هغه راهب شپه او ورځ عبادت كولو، ډير نيک بنده وو، يَوه ورځ د هغۀ پۀ ذهن كښې راغلل چې باران شوے دے او بهر موسم ډير مزيدار دے، بهر دې چمن كښې به كينم، او د الله ذكر به كوم، هغه راهب د خپلې عبادت خانې نه را أووتو، او هغه چمن كښې ئې د الله ذكر كولو، د لارې غاړه وه، يَو زنانه پدې لار تيريدله، نو دې راهب او هغې زنانه د يَو بل سره خبرې أوكړې، خبرې زياتې شوې، تردې چې هغه راهب ددې زنانه سره زنا أوكړه، هغه راهب پوهه شو، چې دا خو ما يَو لويه گناه أوكړه، نو هغه بے هوشه شو، چې كله كوزيدو، نو ځان سره ئې دوه ډوډئ كوزې كړې وې، دوه ډوډئ ورسره وې، بے هوشه شو، را أوغوځيدو، يَو سول كونكے پۀ لاره تيريدو ددۀ نه ئې سوال أوكړو، دۀ ورته اشارتًا اووئيل: چې نور څۀ شے نشته، دغه ډوډئ پرتې دې، دا دواړه واخله، هغه سوال كونكے لاړو، او دے مړۀ شو، چې كله مړۀ شو نو الله ورسره حساب كتاب شروع كړو، ددۀ د شپيتو (60) كالو عبادت ئې يَو طرف ته كيښودو او هغه يَوه زنا ئې بل طرف ته كيښوده، د شپيتو كالو هغه عبادت سپک شو، او هغه يَوه زنا پرې درنه شوه، نو تاوانې شو. وائي: چې هغه سائل له ئې دوه ډوډئ وركړې وې نو وائي: د

زنا نه ورستو ئې دا يَر کار د نيکئ کړے وو، دهغې دوډئ اجر او ثواب راوړلے شو نو هغه نيکئ ئې درنې شوې، نو الله معاف کړو، او د هغې په وجه جنت ته لاړو.

نو زنا ډير قبيح عمل دے. ددې وجې نه علماء ذکر کوې ﴿لَهَا سَبْعَةُ أَبْوَابٍ﴾.[1]

په دې آيت باندې عطاء بن ابي رباح ﷺ ذکر کوې چې د جهنم اُووهٔ دروازې دي. وائي: پدې ټولو دروازو کښې سخته دروازه او ناکاره دروازه په اعتبار د غم سره، په اعتبار د تکليف سره، په اعتبار د ګرمائش سره، او په اعتبار د بدبوئې سره، هغه دروازه به وي چې په کومه دروازه زناکار سړي او زناکارې ښځې دننه کيږي، چې هغوي د خپل عزت او د بل د عزت خيال نهٔ دے ساتلے.

**د مکحول دمشقي ﷺ قول**

د قيامت پهٔ ورځ زناکار سړي او زناکارې ښځې به جهنم کښې وي، جهنميان به تنګ شي چې الله د جهنم د اُور دا سزا خو يَو طرف ته خو ددې بدبوئې نه تنګ شوې يو، چې دا بدبوئې د کوم ځائے نه راځي، وائي: چې دوئ اوګورې نو دا بدبوئي به د زناکارو سړو او ښځو نه را روانه وي، چې ټول جهنميان به د هغه بدبويئ نه تنګ وي.[2]

نو زنا دومره قبيح عمل دے، پهٔ تمامو اديانو کښې دا زنا ډير ناکاره عمل دے، او پهٔ تمامو کارونو کښې شيطان ته خوښ عمل هغه زنا ده.

**امام ذهبي ﷺ "کتاب الکبائر" کښې ليکي**

چې شيطان خپلې لښکرې اوليګې، چې خوارهٔ شي او دا خلق ګمراه کړې، نو هغه لښکر ګرځي، او خلق ګمراه کوې، زيات خوښ د شيطان هغه اولاد وي، چې هغه خلق زيات ګمراه کوې يَو راشي هغه ورته وائي: زهٔ لاړم د فلانکي سړي پسې انختے

---

(1) [سورة الحجر: 44].

(2) [كتاب الكبائر: 54].

وو، هغه مې دې ته تيار کړو چې هغه خپلې ښځې له طلاق ورکړوم هغه ورته وائي: تا خو هډو څۀ کار نۀ دے کړے.

بل راشي هغه ورته وائي: زۀ لا ړم تر دې پورې چې د هغۀ او د هغۀ د وروړ پۀ مينځ کښې مې دشمنې پيدا کړه، دوئ دواړه مې د يَو بل دشمنئ ته تيار کړل، شيطان ورته وائي: تا خو هډو څۀ کار نۀ دے کړے، بل شيطان ورته وائي: زۀ د فلانکي سړي سره انختے ووم، تر دې پورې چې هغۀ زنا اوکړه، وائي: "فَيَقُوْلُ إِبْلِيْسُ: نِعْمَ مَا فَعَلْتَ فَيُدْنِيْهِ مِنْهُ وَيَضَعُ التَّاجُ عَلٰى رَأْسِهٖ" شيطان ورته وائي: چې دا تا کوم کار کړے، تا ډير ښۀ کار کړے دے، ستا دا کار مې ډير زيات خوښ دے، ځان سره ئې جوخت کړې، او بيا د شيطانئ هغه تاج د هغۀ پۀ سر باندې کيدې چې تا ډير ښۀ کار اُوکړو.[1]

**فقيه ابو الليث سمرقندي رحمه الله ليکي**

چې د مونځ وخت شي نو شيطان خپل فوجونه اوليږي، چې خبردار اذان اوشو، مسلمانان به مونځ له ځي، خو چې مونځ له درنه لا ړ نۀ شي، نو دے راشي نو چې کوم سړے مونځ ته نۀ دے تلے، نو د هغۀ پۀ زړۀ کښې د دُنيا عظمت پيدا کړي، ورته وائي: دا کار اُوکړه، نو مونځ ته به لا ړ شے، دا کار اُوکړه، نو پدې چل ئې د جَمعې د مونځ نه حصار کړې، دوکاندار له ورشې، او دغه وخت کښې پرې ګاهک رامات کړې، ورته وائي: ده له سودا ورکړه، دے بل له سودا ورکړه، مونځ ته له وخت شته، چې هغه راځي نو مونځ ترې شوے وي، لا ره کوڅه کښې دوه کسان ناست دې نو پۀ هغوي دا ګپ شپ دومره مزيدار کړې، چې د هغې په ورجه ئې د جَمعې د مونځ نه پاتې کړې، خو چې مسلمان بنده وي، او د شيطان دا وسوسه اونۀ منې، او جومات ته راشي، نو شيطان

---

(1) [کتاب الکبائر للذهبي 1: 52].

وریسې هم جومات ته راشي، وائي: بهر رانه خلاص شو نو چې اودس کوې نو په هغې کښې ورته وسوسې اچوې، چې دا اندام دې دوه ځله اووینځلو او دا بل اندام دې یَو ځل اووینځلو نو اودس کښې ورته شک پیدا کړې.

دا وسوسې ورته اچوې چې ددې نه هم بچ شې، نو بیا چې کله په مونځ باندې اودریږي نو بیا ورته وسوسې اچوي، نو ولاړ په مونځ باندې وي، او سوچونه ئې بهر وي، څوک د دوکان سوچ کوي، څوک د پټې سوچ کوي، دا د شیطان هغه وسوسې دې، چې دهٔ ته دا پته هم نهٔ وي، چې ما څو رکعتونه اوکړل؟ او مونځ کښې مې څهٔ اووئیل.[1]

**واقعه**

یَو سړے وو هغه خیرات کړے وو، خپل نوکر ته ئې اووئیل: جومات ته لاړ شه، او چې څومره مونځ گزار دې، هغه ټول خیرات له راوله، نوکر جومات ته راغے، جومات د خلقو ډک وو، د جومات دروازه کښې اودریدو، او د یَو یَو کس نه به ئې تپوس کولو چې مونځ دې اُوکړو؟ هغهٔ به وائیل: چې آؤ، وائي: امام صاحب په مونځ کښې کُوم کُوم سورتونه وئیلې وو؟ هغهٔ به ورته وئیل: زما خو سورتونو ته خیال نهٔ وو، دغسې یَو یَو کس نه به ئې تپوس کولو، په جومات کښې درې څلور کسان وو چې هغوي ته پته وه چې امام صاحب په مونځ کښې دا سورتونه وئیلې وو، هغه درې څلور کسان ئې بوتلل، هغه مالک ورته اووئیل: تا څوک خیرات له رانهٔ وستل؟ هغهٔ ورته اووئیل: دا کسان مې راوستل، وائي: جومات کښې نور څوک نهٔ وو؟ هغه نوکر ورته اووئیل: نور خلق وو، خو هغوي هسې راغلې وو، مونځ پکښې صرف دې درې څلورو کسانو کړے وو. نو دا ټولې د شیطان وسوسې دې، ددې په ذریعې سره انسانان گمراه کوې.

علماء کرام ذکر کوې چې کله یَو سړے په پردئ زنانه لاس کیدې، نو دا لاس

(1) [تنبیه الغافلین].

کیخودل ورته په پردئ زنانه جائز نهٔ دي.

## دامام ذهبي ﷫ قول

د کوم انسان چې د پردئ زنانه سره پهٔ غلطئ لاس اولګیدو، د قیامت پهٔ ورځ به راوستے شي، او دواړه لاسونه به ئې د ستې سره تړلے شوې وي، او ټول خلق به ئې پیژني چې دا هغه سړے دے چې پردئ زنانه له ئې پهٔ غلط خیال لاس نزدې کړے وو.

او چې کله یَو سړے پردئ زنانه ښکل کړي نو د قیامت پهٔ ورځ به راشي، او د جهنم پهٔ اُور کښې به ددهٔ نه شونډې کټ کولے شي.[1]

## (8) اَتم روایت

رسول الله ﷺ فرمائي: غوږونه زنا کوي، د غوږونو زنا دا ده چې د پردو زنانو خبرې پرې اورې، سترګې زنا کوي، د سترګو زنا دا ده، چې پردو زنانو ته پرې ګورې.[2]

پردو زنانو ته کتل حرام دي.

بعضې خلق وائي: زړهٔ صفا ساتل غواړي، نو زړهٔ کهٔ صفا کول غواړې، نو پردو زنانو ته مهٔ ګورئ، ددې سره زړهٔ صفا کیږي او کهٔ یَو سړے پردو ښځو ته ګوري، نو ددهٔ زړه صفا نه دے؛ ځکه دې کښې ګناه ده، زړهٔ هله صفا کیږي، چې کله تهٔ ګناه نهٔ کوې، او چې ګناه کوے نو ددې سره زړهٔ توریږي، د لاسونو زنا دا ده چې سړے خپل لاس پردئ زنانه له یَوسي.

## (9) نهم روایت

رسول الله ﷺ فرمائي: د قیامت پهٔ ورځ به یَو سړے راوستے شي، د هغهٔ عورت به پهٔ هغه باندې ګواهي کوي چې دهٔ زنا کړې ده، دے به انکار کوي چې ما زنا نهٔ ده

---

(1) [کتاب الکبائر للذهبي ا: 56].

(2) [رواه البخاري: رقم: (6243)].

کړي، چې کله دے انکار اوکړي، الله به ددهٔ پهٔ خلهٔ باندې مهر اووهي، خلهٔ به ئې بنده شي، نو يَو يَو اندام به ددهٔ ګواهي کوي. نبي ﷺ فرمائي: ددهٔ ژبه به پهٔ دهٔ باندې ګواهي شروع کړي، چې الله هغه خبرې چې ما له جائز نهٔ وې ما هغه خبرې کړے وې، لاسونه به وائي: يا الله هغه شے چې د هغهٔ راغستل ما له حرام وو، ما هغه څيزونه راغستي وو، سترګې به وائي: يا الله هغه ځايونه چې هغې له کتل ناروا وو، ما هغې ته کتل وو.

**(10) لَسم روايت**

رسول الله ﷺ فرمائي: «لَعَنَ اللهُ النَّاظِرَ والْمَنْظُورَ إِلَيْه».[1]

"الله دې په کتونکې باندې هم لعنت را اوليږلې، او چې کوم انسان له کتلے شي، په هغهٔ دې هم الله لعنت رواليږلې".

نو د انسان سترګې د انسان غوږونه د انسان لاسونه د انسان، خپې دا به پدې انسان ګواهي کوي، او کومې ملائکې چې د انسان سره دي، د انسان د حفاظت دپاره د انسان سره ګرځي هغه به ورته وائي: چې يا الله ما اوريدلې دي، چې کله ده دا خبرې کولے، او هغه ملائکې چې ليکل کوي "كرامًا كاتبين" چې د انسان نيک او بد اعمال ليکي، هغه به وائي: يا الله ددهٔ دا جُرم او ګناه ما ليکلې ده، نو ددهٔ د خلاصيدو ځائے خو نشته، د هر طرف نه ګواهي ده، د ليکلو فرشتې ګواهي کوي، د حفاظت فرشتې ګواهي کوي لاس ګواهي کوي، خپې ګواهي کوي، ژبه او سترګې ګواهي کوي، هر اندام ګواهي کوي، الله به پرې پهٔ خپله ګواهي کوي، واه انسانه زهٔ پهٔ تا پوهه ووم، چې تا دا ګناه کړې وه، ليکن دُنيا کښې ما تا باندې پرده اچولې وه، اوس زهٔ پهٔ تا نوره پرده نهٔ اچوم، اوس به تا له سزا درکوم، الله به فرشتو ته وائي: واه زما ملائکو زما دا بنده اونيسئ، او زما سخته سزا ورته ورکړئ؛ ځکه زما ئې سخت خلاف کړے دے، بيا به

(1) [رواه البيهقي في شعب الإيمان: رقم: (7699)].

الله وائي: زما غصه به هغه چا ډيره سخته وي چې زما نه حيا نۀ کوي.

نن دُور کښې چې انسان اوګورې چې څوک نشته نو هغه وخت کښې زنا کوي، ليکن يَو زناکار دا سوچ نۀ دے کړے چې زۀ هغه ذات نه څنګه پټيدے شم، چې هغه هر وخت ما وينې ﴿لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ﴾.[1]

الله وائي: "ستا د رب نه هيڅ شے نۀ شي پټيدے".

پۀ پټو هم الله پوهيږي په ښکارو هم الله پوهيږي کۀ د شپې يَو ګناه کوې الله ته ئې پته ده، کۀ د ورځې يَو ګناه کوې الله ته ئې پته ده، کوم ځائے چې تاسو ئې الله پۀ تاسو خبردار دے، دومره خبردار او پوهه ذات دے چې الله فرمائي: ﴿وَمَا تَسْقُطُ مِن وَرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا﴾.[2]

"کۀ د اُونې نه يَو پاڼره غورځيږي الله ته ئې پته ده"، او کۀ زمکه کښې دې دانه اوغورځوله الله ته ئې پته ده، کۀ وچ دې او کۀ لواندۀ دي، الله ته ئې پته ده. نو ستا ددې زنا او د غلا نه هم خبردار دے، هغي انسان له به الله سخته سزا ورکوي، چې هغه د الله نه حيا نۀ کوي، کامل ايمان خو ديته وائي: چې سړے د خپل ځان نه هم حيا کوې، او چې تۀ د بل نه هم حيا نۀ کوې، نو دا خو هډو ايمان نۀ دے، نو مقصد دا دے چې زنا ګناه کبيره ده. الله دې مونږ ددې ګناه نه بچ کړي. (آمين)

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



(1) [سورة سبا: 3].

(2) [سورة الأنعام: 59].

بسم الله الرحمن الرحيم

اَلَّذِيْنَ يَأْكُلُوْنَ الرِّبٰوا لَا يَقُوْمُوْنَ إِلَّا كَمَا يَقُوْمُ الَّذِيْ يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطٰنُ مِنَ الْمَسِّ... اِلخ

(سورة البقرة: 275)

# موضوع

# سود گناهِ کبیره ده

بمقام جلسۀ

خطیب

فصیح اللسان لذیذ البیان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله

# سود ګناه کبيره ده

اَلْحَمْدُ للهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدَهٗ وَرَسُوْلَهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿الَّذِينَ يَأْكُلُونَ الرِّبَا لَا يَقُومُونَ إِلَّا كَمَا يَقُومُ الَّذِي يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطَانُ مِنَ الْمَسِّ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا إِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبَا وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَا فَمَنْ جَاءَهُ مَوْعِظَةٌ مِنْ رَبِّهِ فَانْتَهَىٰ فَلَهُ مَا سَلَفَ وَأَمْرُهُ إِلَى اللَّهِ وَمَنْ عَادَ فَأُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ * يَمْحَقُ اللَّهُ الرِّبَا وَيُرْبِي الصَّدَقَاتِ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ أَثِيمٍ﴾.[1]

وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَعَنَ اللهُ آكِلَ الرِّبَا، وَمُؤْكِلَهٗ، وَشَاهِدَيْهِ، وَكَاتِبَهٗ»، وَقَالَ: «هُمْ سَوَاءٌ»،[2] وفي رواية: عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: «لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آكِلَ الرِّبَا، وَمُؤْكِلَهٗ، وَكَاتِبَهٗ، وَشَاهِدَيْهِ»، وَقَالَ: «هُمْ سَوَاءٌ».[3]

زما عزتمندو مسلمانانو وروڼرو! ما چې کوم آياتونه مبارکه اولوستل، پدې آياتونو کښې الله د سود قباحت ذکر کوې، او چې کوم خلق سود کوې، او سود خورې، د سود لين دين کوې د هغوي حال الله رب العزت ذکر کوې.

(1) [سورة البقرة: 275-276].

(2) [رواه أحمد في "مسنده"، رقم: (3809)].

(3) [رواه مسلم: رقم: 1597].

﴿الَّذِينَ يَأْكُلُونَ الرِّبَا لَا يَقُومُونَ إِلَّا كَمَا يَقُومُ الَّذِي يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطَانُ مِنَ الْمَسِّ﴾

"هغه کسان چې هغوي د سود مال خوري د قيامت په ورځ به پانسې د خپلو قبرونو نه مګر پشان د پاسيدو د هغې سړي چې ګډوډ کړے دے هغه لره شيطان د ليونتوب نه".

يعنې سود کونکې خلق کوم خلق چې سود کوي، بعض خلق وائې مونږ سود کوو، خو خورو ئې نه، وائي: د سود پيسې حرام مې دي، مونږ خو حلالې پيسې خورو، حرامې پيسې خو مونږ په حرامو ځايونو کښې لګوو.

**د تفسير معالم التنزيل معنیٰ**

امام بغوي رحمه الله د ﴿يَأْكُلُونَ الرِّبَا﴾ معنی کوي "يُعَامِلُوْنَ مُعَامَلَةَ الرِّبَا" د سود معامله کوې، د سود لين دين کوې، دَ ﴿يَأْكُلُونَ الرِّبَا﴾ معنیٰ کوې "يَأْخُذُوْنَ الرِّبَا" چې سود اخلې، که خور ئې او که نه ئې خورې، خو چې سود کوې نو د قيامت په ورځ چې دا سړے راپاسې نو داسې به راپاسې لکه يَو پيريانے سړے چې پاسې، دے به راغوزيږي، او بيا به اودريږي، دا به ددهٔ نښه وي، خلق به ئې پيژنې چې دا سود خور سړے دے.

**امام ذهبي رحمه الله ليکلي دي**

يَو روايت ذکر کوې، وائي: رسول الله ﷺ فرمائي: زهٔ چې د معراج په شپهٔ لاړم نو ما بعضې خلق اوليدل چې د هغوي خيټې ډيرې زياتې غټې وي، او د هغوي دا خيټې ډيرې درنې وي؛ ځکه حرام مال پکښې پروت وو، نو دوئ به پاسيدل او بيا به پريوتل، او هغه فرعونيان چې سحر او ماښام پهٔ هغوي عذاب پيش کيږي، هغوي به پرې د پاسه تلل راتلل، نبي عليه السلام وائي: ما تپوس اوکړو چې دا کوم خلق دے؟ وائي: راته اووئيلے شو چې دا هغه خلق دے چې دنيا کښې د سود مال خوړو.[1]

(1) [کتاب الکبائر للذهبي: 64].

نو دوئ به د ليونو پشان د قبرونو نه پاسي، څنګه چې ليونے پاسي، نو راغورزيږي دغسې به دا سود خور پاسي او راغورزيږي به.

**سزا ورته الله ولې ورکوي؟**

ددې وجه قرآن ذکر کوي ﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا إِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبَا﴾ دا ځکه چې دوي سود خوړو، او دا به ئې وئيل؛ چې سودا ګرې هم د سود په شان يَو کار دے. لکه اوس چې خلق وائي: سودا ګرې او سود خو يَو شے دے مقصد پيسې ګټل دي، نو سود هم يَو کته ده، الله وائي: نه يَو شے چرته دے؟

الله سودا ګرې حلاله کړې ده، او سود ئې حرام کړے دے. دواړه يَو شے نۀ دے، خو پدې هغه سړے پوهيږي چې هغه مسلمان وي، چې يَو سړي کښې ايمان نۀ وي نو هغه د حلالو او حرامو تميز نۀ کوي، هغه وائي کته پکار ده کۀ حرامه وي او کۀ حلاله وي.

**د حرام مال باره کښې د نبي ﷺ فرمان**

رسول الله ﷺ فرمائي: «من لم يبال من أين اكتسب المال لم يبال الله من أي باب أدخلهُ النَّار».[1]

"کوم خلق چې دا پروا نۀ ساتي چې حلالې پيسې ئې اوګټلې او کۀ حرامې خو را جمع کوې ئې، نو نبي ﷺ فرمائي: د قيامت پۀ ورځ به الله دا پروا نۀ ساتي چې د کومې دروازې د جهنم نه ئې جهنم ته اوغورځوې، نو غورځوې به ئې".

د مسلمان شان دا دے چې دے به د حلالو او حرامو تميز کوي.

اوس يَو سړے خبر شو، چې سود دومره لويه ګناه ده، او ما سود کړے دے، نو دے بۀ څۀ کوي؟ نو الله فرمائي: ﴿فَمَن جَاءَهُ مَوْعِظَةٌ مِّن رَّبِّهِ فَانتَهَىٰ فَلَهُ مَا سَلَفَ وَأَمْرُهُ إِلَى اللَّهِ﴾

(1) [كتاب الكبائر للذهبي: 119، طبع دار الندوة الجديدة - بيروت].

کوم سړے چې هغهٔ ته نصیحت راغے پوهه ورته راغله، مسئله ئې واوریده، د هغې نه پس ئې سود پریخودو، نو کوم سود چې دهٔ مخکښې کړے وو هغه به ورته الله تعالی معاف کړي، خو بیا به سود نهٔ کوي.

**توبې نه پس بیا سود کول**

﴿وَمَنْ عَادَ فَأُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ﴾ کوم سړے چې دوباره سود ته را وکرځیدو، پته ورته اولګیده، د هغې نه بعد هم سود کوي. نن اکثر خلق وائي: دا مُلیان هسې د وړې خبرې نه لویه خبره جوړوي، دوي هسې خلق یَروي، او بیا دے پدې خپل سود کښې مبتلا دے، او دا ئې خیال دے چې دا ګناه نهٔ ده، جائز ورته وائي، او دا ځکه وایو، کهٔ یَو سړے سود کوي، خو جائز ورته نهٔ وائي، ګناهګار دے، خو کافر نهٔ دے، ځکه کافر به همیشه دپاره جهنم کښې وي، نو چې جائز ورته اووئ نو دا سود والا جهنمیان دي، او دوي به همیشه پهٔ جهنم کښې پراتهٔ وي، ددې نه مراد هغه سود خوارهٔ دي، چې سو کوي او سود ته حلال وائي، او کله چې یَو سړے حلال څیز ته حرام اووائي، یا حرام څیز ته حلال اووائي نو سړے کافر کیږي، نو سود قطعًا حرام دے. قرآن کریم او د احادیثو نه ددې حرمت ثابت دے، او نن اکثر مسلمانان پدې کښې مبتلا دي.

**سود خور باندې پنځهٔ دفعې**

قرآن کریم په سود خور باندې پنځهٔ دفعې لګوي.

**(1) اوله دفع:** الله فرمائي: ﴿لَا يَقُومُونَ إِلَّا كَمَا يَقُومُ الَّذِي يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطَانُ مِنَ الْمَسِّ﴾ "سود خوارهٔ خلق به د قیامت پهٔ ورځ د قبرونو نه راپاسي نو داسې به راپاسي لکه یَو سړے چې لیونے دے"، کله یو ځائے غوزیږي او کله بل ځائے غورزیږي، دغسې به دا سود خور کله کیني او کله به پاسي.

**(2) دویمه دفع:** دا سود خوارهٔ خلق جهنمیان دي، دوي به همیشه دپاره جهنم کښې

پراته وي، چې سود ته حلال وائي.

(3) **دريمه دفع:** الله فرمائي: ﴿وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ أَثِيمٍ﴾ الله مينه نۀ ساتې د هر کافر سره کله چې دے سود ته حلال وائي، نو دے کافر شو، او الله د کافرانو سره مينه نۀ ساتي.

(4) **څلورمه دفع:** الله رب العزت فرمائي: ﴿أَثِيمٍ﴾ دا لوې ګناهګار دے، چې سود کوي.

(5) **پنځمۀ دفع:** الله رب العزت فرمائي: ﴿فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ﴾.[1]

الله فرمائي: "سود کونکو خلقو که تاسو د سود نه منع نۀ شوئ نو بيا د الله او د الله د پيغمبر ﷺ مقابلې ته تيار شئ". بيا د الله سره جنګ اوکړئ. سود خوارۀ د الله دشمنان دي، الله دوي سره د جنګ اعلان کړے دے، دومره لويه ګناه دے.

قرآن کريم کښې الله فرمائي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا الرِّبَا أَضْعَافًا مُّضَاعَفَةً وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾[2]

"اے مؤمنانو! مۀ خورئ مال د سود لره دوچند پۀ دوچند کيدلو ډيرو باندې، د الله نه ويرېږئ ددې دپاره چې تاسو کامياب شئ".

**(1) اول روايت**

سيدنا عبد الله بن عباس ﷺ ذکر کوې چې د قيامت په ورځ به الله سود خورو خلقو ته وائي: چې واه سود خورو خلقو پاسئ "خُذْ سِلَاحَكَ لِلْحَرْبِ".[3]

"خپله اسحله را واخله او زما سره اوجنګيږه". نو د الله سره څوک جنګ نۀ شي کولے، نو سود خور د الله دشمن دے.

---

(1) [سورة البقرة: 279].

(2) [سورة آل عمران: 130].

(3) [تفسير البغوي تحت آية سورة البقرة 279].

## د سود تعریف

پهٔ لغت کښې "ربوا" سود زیادت ته وائي.

## شریعت کښې د سود تعریف

چې یَو سړے یَو مسلمان له قرض ورکړې، او بیا پهٔ هغې باندې د هغهٔ نه سیوا مال غواړي، نو دیته سود وائي.

سود پهٔ شریعت کښې په دوه قسمه دے: (1) یَو سود دا دے چې یَو سړي له دې قرض شے ورکړے دے او ورته دې وئیلې دې چې کهٔ دومره ورځو کښې دې ماله دا پیسې واپس نهٔ کړې، بیا به درنه دومره غواړم، دومره سود به ورسې راکوې، دا پهٔ قرض کښې سود دے. (2) دویم سود لاس پهٔ لاس دے، او هغهٔ نبي ﷺ شپږ څیزونه ښودلي دي، مثلاً یَو سړے دے سرهٔ زر پهٔ سرو زرو بدلوي، کچرې دا سرهٔ پهٔ سرهٔ وي او پهٔ یَو وخت کښې وي، چې دا راکړه او دا واخله نو صحیح ده، او کهٔ نه سرهٔ زر پهٔ سرو بدلوي کهٔ لږ کمے پکښې هم وي نو دا هم سود دے. سرهٔ پهٔ سرو زرو باندې بدلوي، یَو ته وائي چې تهٔ نن راکړه، او زهٔ بهٔ صبا درکړم، دا سود دے.

## نبي ﷺ شپږ څیزونه ښودلي دي

«الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ، وَالْفِضَّةُ بِالْفِضَّةِ، وَالْبُرُّ بِالْبُرِّ، وَالشَّعِيرُ بِالشَّعِيرِ، وَالتَّمْرُ بِالتَّمْرِ، وَالْمِلْحُ بِالْمِلْحِ، مِثْلاً بِمِثْلٍ، يَدًا بِيَدٍ، فَمَنْ زَادَ، أَوِ اسْتَزَادَ، فَقَدْ أَرْبَى، الْآخِذُ وَالْمُعْطِي فِيهِ سَوَاءٌ».[1]

سرهٔ پهٔ سرو باندې بدلوئ نو برابر برابر به ورکوې، کهٔ کم او زیات وي نو سود دے، او کهٔ نقد نقد ورکوې کهٔ یَو تن نن ورکوې او بل بله ورځ ورکوې، نو سود دے،

(1) [رواه مسلم: رقم: (1584)].

سپین زر په سپینو زرو بدلوې نو برابر برابر به وي، کهٔ کم او زیات وي نو سود دے،
غنم په غنمو بدلوئ چې کله پکښې زیادت وي، نو سود دے.

اوس کهٔ یَو سړے وائي: چې د یَو سړي غنم ښهٔ دي، او د بل بیکاره دي، نو دا خو ضروري خبره ده، چې هغه ښهٔ گران دي، او هغه بیکاره ارزان دي، نو دا یَو سړے به زیات ورکوي، دا سړے به دا خپل غنم په پیسو باندې خرڅ کړي نو د هغه بل سړي نه به په پیسو باندې غنم واخلي، د دوو کسانو غنم شوي دي، خو د یَو سړي غنم ښهٔ دي، او د بل سړي غنم بیکاره دي، دواړه د یَو بل سره غنم بدلوي نو دا به سر په سر بدلوي، او چې دا بدلوي، نو لاس په لاس به بدلوي، کچرې داسې کوي چې تهٔ ماله نن غنم راکړهٔ، او زهٔ به درله میاشت پس درکړم، نو دا هم سود دے، او کچرې داسې کوي چې زما غنم گنده دي، نو تهٔ وریسې ماله دوه سیره سیوا راکړه، نو دا هم سود دے.

**(2) دویم روایت**

رسول الله ﷺ ته یَو صحابي د خیبر کجورې راوړې او هغه ډیرې گره او مزیدارې کجورې وې، نبي ﷺ ورته اوفرمائیل: ستاسو د علاقې (یعني د خیبر) تولې کجورې داسې دي؟ هغهٔ ورته اووئیل: نا د الله پیغمبره تولې کجورې داسې نهٔ دي، دا پکښې اعلیٰ کجورې دي، مونږه دا اصلي کجورې یَو صاع واخلو، او هغه بے کاره پرې دوه صاعه ورکوو، نبي ﷺ ورته اووئیل: داسې مهٔ کوئ، تاسو داسې کوئ چې دا بے کاره کجورې په پیسو باندې خرڅوئ، او بیا پرې هغه ښې کجورې اخلئ، او کهٔ داسې ئې بدلوئ نو بیا به یَو برابر بدلوئ.[1]

**مسئله**

اکثر زمینداران داسې کوي، چې د یَو زمیندار غنم دي، او بل زمیندار سره غنم ختم شوي دي، نو هغه یَو ورته وائي: ماله غنم راکړه، چې زما غنم راورسي نو زهٔ به تاله

(1) [رواه البخاري: رقم: (2201)، ومسلم: رقم: (1593)].

غنم درکړم، دا جائز دي. ددې بدلول مقصد نهٔ دے، دا سړے ئې خرڅوې نهٔ، کهٔ خرڅولے نو پهٔ دوکاندار به ئې خرڅ کړې وے، ددې سړي مطلب دا دے چې دې سړي له زهٔ قرض ورکوم، لکه څنګه چې پیسې ورکولے شې، دغسې غنم قرض ورکولے شې، اګر چې دا اختلافي مسئله ده، خو احسن الفتاوی لیکلي دي چې دا جائز دي.

داسې قرض جائز دے، چې یَو سړے بل له غنم ورکړې، چې دا غنم واخله او چې ستا غنم را ورسې نو بیا به ماله غنم راکړې، نو دا جائز دې.

دا رنګه اوربشې دې، نو کهٔ د یَو سړي اوربشې ښې دې او د بل بیکاره دې، نو برابر به ئې بدلوې، کهٔ نهٔ وي نو سود دے. او لاس پهٔ لاس به ئې ورکوې، او کهٔ لاس پهٔ لاس ئې نهٔ ورکوې، نو سود دے.

«وَالتَّمْرُ بِالتَّمْرِ، وَالْمِلْحُ بِالْمِلْحِ» کجورې چې بدلوئ نو یَو برابر به ئې بدلوئ، مالګه چې بدلوئ نو پهٔ مالګه به ئې بدلوې، کهٔ څهٔ کمه وي او څهٔ زیاته وي، نو بیا به هم سود دے.

**مسئله**

ګاونډیان د یَو بل نه پهٔ لوښو باندې څهٔ شے اوړې، زنانه چې مالګه ورکړه ختمه شې، نو لوښې ورکړې، وائي: دې کښې مونږ له مالګه راکړئ، اوړهٔ هم د یَو بل نه پهٔ لوښې باندې راوړې، نو پهٔ دې کښې دواړه خبرې راتلے شې، قرض پکښې هم راغے، مثال یَو زنانه نن مالګه ورکړې، او هغه بله زنانه دوه ورځې پس مالګه ورکړې، نو پدې کښې خو قرض راغے، دا رنګه څهٔ لږ زیاتے پکښې هم راغے یا به پکښې کمے هم راغلے وي، نو د عُرف د وجې نه دا شے جائز دے. رسول الله ﷺ دیته جائز وئیلې دې.

دا رنګه اکثر زنانه ډوډئ د یَو بل نه اوړې، وائي: مونږ کره میلمانهٔ راغلي دې، تاسو له به بیا ډوډئ درکړو، نو هغوي ورله ډوډئ ورکړې، نو دا جائز دې، نو دا څیزونه

جائز دي، ددې نه ماسیوا لوې لوې سوداګانې جائز نهٔ دې.

نبي ﷺ فرمائي: چې کله سړے داسې څیزونه بدلوې، نو دوه څیزونه پکښې لازمي دې، یَو برابر به وي، سودا به لاس پهٔ لاس وي، دا واخله او دا راکړه، کهٔ قرض پکښې راولې نو هم سود دے، او کهٔ زیاتوالے پکښې راولې نو هم سود دے.

سود اغستونکے او ورکونکے دواړه ګناهګار دې، خو پهٔ یَو صورت کښې سود ورکونکے ګناهګار نهٔ دے، دا پهٔ هغه وخت کښې چې د هغهٔ ضرورت دے، او هغه ته بغیر د سود نه پیسې نهٔ میلاویږي، نو بیا هغه ګناهګار نهٔ دے، خو هغه ضرورت چې شرعي ضرورت وي، دا نهٔ چې دے پرې دوکانونه چلوې، یا پرې نور کاروبار کوې، او دے وائي: چې زما ضرورت دے، نو دا ضرورت نهٔ دے، ضرورت دا دے چې تهٔ بیمار ئې، او هسپتال کښې دي مریض پروت دے، او څوک درته قرض نهٔ درکوې، نو سود باندې پیسې را واخله، تهٔ نهٔ ئې ګنانګار، او چې څوک سود اخلي نو هغه ګناهګار دے، ضرورت دا دے چې تهٔ بالکل د لوږې مړهٔ کیږې، او نور څهٔ انتظام دې نهٔ وي، نو چا نه په سود پیسې را واخله، بیا ورته ورکړه، تهٔ ګناهګار نهٔ ئې، او هغه بل سړے ګنانګار دے.

او کوم چې زمونږ خلق وائي: چې زما ضرورت دے، زهٔ پرې ځان له کاروبار چلوم، داسې کاروبار کول یا د بینک نه پیسې را ویستل، دا قطعًا حرام دې. (فتاوی رحیمیه)

**(3) دریم روایت**

رسول الله ﷺ فرمائي: «لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آكِلَ الرِّبَا، وَمُؤْكِلَهُ، وَكَاتِبَهُ، وَشَاهِدَيْهِ»، وَقَالَ: «هُمْ سَوَاءٌ».[1]

نبي ﷺ لعنت وئیلے دے د سود پهٔ لین دین کونکې باندې، کوم سړے چې د

(1) [رواه مسلم: رقم: 1597].

سود کار کوي، سودي معامله کوي، او کوم سړے چې د سود مال خوري، په سود خورونکې باندې هم نبي ﷺ لعنت وئيلے دے.

او د سود په ليکونکې باندې هم، نبي ﷺ لعنت وئيلے دے، يعني چې دوه کسان سود کوي، نو ته به د هغوي کهاته نهٔ ليکې؛ ځکه ته ورسره هم په ګناه کښې برابر ئې، او کوم خلق چې ددې ګواهان دي، نو هغوي هم پدې ګناه کښې برابر دي، او نبي ﷺ فرمائي: دا ټول هم پدې ګناه کښې يَو برابر دي.

دا خبره ياد اُوساتئ! چې کوم خلق د سود کاروبار کوي او د سود معامله کوي، نو هغوي سره به ليکل نهٔ کوئ، هغوي سره به مُنشي توب نهٔ کوئ؛ ځکه قرآن کښې الله فرمائي: ﴿وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ﴾.[1]

"امداد اوکړئ د يَو بل سره په نيکئ او پرهيزګارئ باندې، يَو بل سره به په ګناه او زياتې باندې امداد مهٔ کوئ، د ګناه په کار کښې به د يَو مسلمان سره امداد نهٔ کوې".

او کچرې تا د ګناه په کار کښې د يَو مسلمان سره امداد اُوکړو، نو نبي ﷺ فرمائي: ته او هغه دواړه په دې ګناه کښې يَو برابر يئ.

ددې وجې نه علماء کرام ذکر کوي: چې په بينک کښې نوکري کول دا هم ګناه ده؛ ځکه چې دے د سود کونکو خلقو معامله ليکي، او دے په هغې باندې تنخواه اخلي، نو دا حرامه ده، دغه شان بينک کښې خپلې پيسې کيخودل دا هم ګناه ده.

## (4) څلورم روايت

رسول الله ﷺ فرمائي: د اووهٔ (7) هغه څيزونو نه ځان بچ کړئ چې هغه سړے تباه کوي، صحابه کرامو اوفرمائيل: چې د الله پيغمبره هغه اووهٔ (7) څيزونه څهٔ دي؟

(1) [سورة المائدة: 2].

(1) يَو «الشِّرْكُ بِالله» د الله سره شرک کول دي، پهٔ ذات کښې يا پهٔ صفاتو کښې، دا د انسان د هلاکت لوی سبب دے.

(2) دويم نبي ﷺ فرمائي: «وَالسِّحْرُ» جادو او منتر کول دي، ددې سره سره د هلاکت والا جوړيږي، او ددې سره سره د ايمان نه خلاصيږي، چې کله پکښې شرکي الفاظ وي.

(3) دريم «وَقَتْلُ النَّفْسِ الَّتِي حَرَّمَ اللهُ إِلَّا بِالحَقِّ» هغه مسلمان وژل چې الله د هغه مرګ ناجائز کړے دے، مګر پهٔ حق باندې دهغه مرګ جائز دے، نبي ﷺ فرمائي: چې توله دنيا ورانه کړې، الله دومره نهٔ غصه کيږي، لکه څومره چې الله د مسلمان پهٔ وژلو خفه کيږي.

(4) څلورم د هلاکت سبب «وَأَكْلُ الرِّبَا» د سود مال خوړل د سود لين دين کول د سود معامله کول دا سبب د هلاکت دے.

(5) پنځم «وَأَكْلُ مَالِ اليَتِيم» د يتيم مال خوړل دا سبب د هلاکت دے، او سخته سزا ئې ده، الله فرمائي: ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَىٰ ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا﴾[1]

"يقينًا هغه کسان چې هغوي د يتيمانانو مال پهٔ ظلم او زياتي باندې خوري، نو الله وائي: دوي خيته کښې اُور واچولو"، د قيامت پهٔ ورځ به د داسې سړي د خُلې نه او سترګو نه او غوږونو نه د اُور لمبې خيژي.

(6) «وَالتَّوَلِّي يَوْمَ الزَّحْفِ» ميدانِ جهاد کښې مسلمانان او کافران جنګيږي او دغه وخت کښې چې کوم سړے وتختيدو، دا سړے غټ ګناهګار دے، لويه ګناه ئې

(1) [سورة النساء: 15].

اوکړه، يَو مسلمان کۀ د دوو کافرانو نه وتختيدو نو دا سړے کۀ مړۀ شو يا واپس شو دا سړے پۀ غضب اخته شو ﴿وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِقِتَالٍ أَوْ مُتَحَيِّزًا إِلَى فِئَةٍ فَقَدْ بَاءَ بِغَضَبٍ مِنَ اللَّهِ وَمَأْوَاهُ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ﴾[1]

چې کوم سړے د دشمن نه وتختيدو، کافر ته ئې شا کړه (دوه شرطونو جائز دې) يا خپلې ډلې ته را وتختيدو يا ئې چل ول کولو، چې زۀ به لږه منډه اووهم او دے به ماپسې را بهر شي نو زۀ به وريسې واپس شم، هلته به ئې قتل کړم، چل ول نا جائز دے خو پۀ جنګ کښې جائز دے «اَلْحَرْبُ خُدْعَةٌ»[2] جنګ ټول پۀ چل ول کيږي.

بعض ناجائز څيزونه پۀ بعضې وخت کښې جائز وي، تکبر ناجائز او حرام دے، ليکن مجاهد دې ښۀ تکبر کښې جهاد له ځي، خو مسلمانانو له به ځان کښې تکبر نۀ راولي، کافرانو له به ځان کښې تکبر راولي، چې کافرانو باندې ددۀ رعب او دبدبه وي.

لکه صحابه چې د مدينې نه راغلل نو کافرانو اووئيل: دا صحابه دوي مونږ سره جنګ نۀ شي کولے، نو الله نبي ﷺ ته اووئيل: چې کله تاسو د بيت الله شريف نه طواف کوئ نو تاسو پکښې ښه پهلوانې کوئ، حالانکه هغه خو د عاجزئ ځائے دے، خو چې مقابل او دشمن باندې رعب راولے، نو بيا پکښې پهلواني اوکړه، چې دشمن باندې رعب راشي، نو يَو مسلمان به د دوو کافرانو نه نۀ تختي.

(7) اووم نبي ﷺ فرمائي: «وَقَذْفُ الْمُحْصَنَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ الْغَافِلَاتِ» پۀ پاکدامنو زنانو باندې بدنامه لګول، الزام لګول چې دوي زنا کړې ده، دوي غلا کړې ده، نو دا ګناه کبيره ده.[3]

---

(1) [سورة الأنفال: 16].

(2) [رواه البخاري: رقم: (3029)].

(3) [رواه البخاري: رقم: (2766)].

دا اووۀ (7) ځیزونه د انسان د هلاکت دپاره لوئ ځیزونه دي، پدې اووۀ (7) ځیزونو کښې يَو سود کول وو، سود کول دا ګناه کبيره ده.

## (5) پنځم روايت

عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي: چې نبي ﷺ فرمائيلي دي: «بَين يَدَيِ السَّاعَةِ يَظْهر الرِّبَا وَالزِّنَا وَالْخَمرُ».[1]

کله چې قيامت نزدې شي، دغه وخت کښې به خلقو کښې سود زيات شي، خلقو کښې به زنا زياته شي، او شراب ځکل به عام شي. دا د قيامت نښې دې.

## (6) شپږم روايت

رسول الله ﷺ فرمائي: «الرِّبَا ثَلَاث وَسَبْعُونَ بَابا أيسرها مثل أن يَنْكح الرجل أُمَّه».[2]

رسول الله ﷺ فرمائي: "د سود درې اويا ګناهونه دۀ درې اويا حصې دې، وړه ګناه ئې دومره ده لکه يَو سړے چې د خپلې مور سره نکاح اوکړي".

نو کۀ يَو سړے د مور سره نکاح اوکړي، نو خلق ورته پۀ بد نظر ګوري، خو چې يَو سړے سود کوي، نو هغه ته هيڅا پۀ بد نظر اُونۀ کتل، يا خو د نبي ﷺ پدې خبرو زمونږ يقين نشته، يا دا د قيامت هغه نښې دې.

نن مسلمانان سود کوي، او ديته ګناه نۀ وائي، مسلمان خو ديته وائي: چې دے به د الله او د الله د پيغمبر تابعدار وي.

نو نبي ﷺ فرمائي: د سود وړه ګناه دومره ده لکه سړے چې د خپلې مور سره نکاح اوکړي، نو کۀ يَو سړے د خپلې مور سره نکاح اوکړي نو هر سړے ورته کنځلې کوي، حالانکه شريعت کښې دا دي چې کوم سړے د خپلې مور سره نکاح اُوکړي،

---

(1) [رواه الترغيب والترهيب: رقم: (2860)].

(2) [رواه الترغيب والترهيب: رقم: (2845)].

نو نبي ﷺ صحابي لیږلے دے، چې ورشۀ ماله د هغۀ سَر راوړه سَر ترې کټ کړه.

سود خور سود کوي، د سود معامله کوي، او معاشره کښې د هغۀ ښۀ عزت دے، هډو څوک پروا نۀ کوي، بلکه خلق د هغۀ صفتونه کوي چې دا ډېر ښۀ سړے دے، نو چې سود کوي نو دۀ کښې څۀ ښۀ پاتې شول؟ نن به داسې کم خلق وي چې هغوي به د سود نه بچ وي، څوک پۀ يَو طريقه او څوک په بله طريقه د سود مال حاصلوي.

(7) اووم روايت

رسول الله ﷺ فرمائي: «لَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَا يَبْقَى أَحَدٌ إِلَّا أَكِلُ الرِّبَا، فَإِنْ لَمْ يَأْكُلْهُ أَصَابَهُ مِنْ بُخَارِهِ».[1]

داسې وخت به راشي چې هيڅوک به داسې پاتې نۀ شي مګر هغه به سود خوړلے وي، او کۀ چا نۀ وي خوړلے يا به هغۀ ته ګرد غبار رسيدلے وي، ددې اثرات به ورته خامخا رسيدلي وي.

مثال زۀ سود نۀ کوم، او تۀ سود کوې، او زۀ تا سره لاړم شم ستا دا کهاته مې وليکله، زۀ تا سره پدې ګناه کښې شريک شوم، يا تا سره لاړم او شهادت مې درسره اُوکړو، نو زۀ سود نۀ کوم خو تا سره دې ګناه کښې شريک شوم.

علماء ليکلي دي کۀ يَو سړے سود نۀ کوي، خو دے به د چا ميمله شوے وي، نو دۀ له د سود هغه ګرد غبار ورسيدو، د حرام خور مال خوړل دا هم ګناه، د غريب دپاره جائز دي، مالدار سړے به د سود مال نۀ خوري، او کۀ غريب باندې د سود مال خوري د ثواب پۀ نيت به پرې نۀ خوري، ستا به دا خيال وي چې دا يَو پليت مال دے، چې زۀ ترې خلاص شم، نو مسلمانانو له پکار دي چې د سود معاملې ختمې کړي.

(1) [رواه أبو داود: رقم: (3331)].

## (8) اتم روایت

رسول الله ﷺ فرمائي: «دِرْهَمٌ رِبًا يَأْكُلُهُ الرَّجُلُ وَهُوَ يَعْلَمُ، أَشَدُّ مِنْ سِتَّةٍ وَثَلَاثِينَ زَنْيَةً».[1]

د سود یَوه روپۍ چې سړے خوري، او ورته پته ده چې دا د سود روپۍ ده، نو نبي ﷺ فرمائي: دا یَوه روپۍ د سود د شپږو دیرشو زناګانو نه زیاته ګناه ده.

نو سود دومره لویه ګناه ده، لکه چې شپږ دیرش زناګانې دي اُوکړې، نو زمونږ معاشره کښې چې یَو سړے زنا اُوکړي، نو هغه بد نام وي، او کۀ یَو سړے سود کوي نو هغۀ نه څوک نفرت نۀ کوي، او څوک ورته بد نۀ ګوري.

زمونږ په ملک کښې په حکومت کښې دا قانون شته چې کۀ یَو سړے زنا اُوکړي، نو د هغۀ دپاره سزا شته، کۀ ښځه او سړے زنا اُوکړي، نو د ښځې دپاره سزا شته، او کۀ یَو سړے سود اُوکړي نو نۀ ورته حکومت څۀ وائي، او نۀ ورته معاشره کښې څوک بد ګوري، بلکه حکومت د هغوي دپاره داسې طریقې را اوباسي چې دا خلق پۀ سود کښې مبتلا شي.

## مسئله زده کول او پۀ هغې عمل کول

رسول الله ﷺ فرمائي: کومه خبره دې واوردیده د قیامت پۀ ورځ به درنه الله تپوس کوي، چې تا پدې څومره عمل کړے وو؟ دا نۀ چې الله دي د عمل کولو توفیق راکړي، د نن زمانې خلقو آسان چل موندلے دے، چې تۀ ورته اووائې چې ګناه مۀ کوه، نو دے وائي: الله دې د عمل کولو توفیق را کړي.

## مسلمان چاته وائي؟

قرآن کریم کښې الله فرمائي: ﴿وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَنْ

---

(1) [رواه أحمد: رقم: (21957)].

يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ ﴾[1]

"د مسلمان سړي او مسلمانې ښځې دپاره جائز نهٔ دي، چې کله الله او پيغمبر د الله د يَو کار فيصله اُوکړي، چې دے پکښې بيا خپل اختيارات چلوي".

نن کهٔ مسلمان ته اووائي چې سود مهٔ کوه، وائي: الله دې راله څهٔ لا ر کولاؤ کړي، وائي: الله مو ددې ضلالت نه خلاص کړي، زهٔ کله کله وايم دا خلق د عمل توفيق غواړي، نو دا عمل څهٔ شے دے؟ ددې خلقو دا خيال دے چې دا عمل څهٔ څناور دے، او دا به خلقو باندې راځي، نو هله به عمل کوي، خو دغه عمل دے چې تا يَو مسئله واوريده، چې دا گناه ده، نو د هغې نه توبه اُوباسه دا عمل دے، کهٔ ورته وائي: چې گيره مهٔ خروه، دا د نبي ﷺ د سنتو خلاف دي، وائي: الله دې راله توفيق راکړي، نو توفيق ئې درله در کړے دے، عقل ئې درله در کړے دے، او دا ئې درته وئيلې دي، چې دا زما د نبي ﷺ د سنتو مخالفت دے، او چې تهٔ د عمل توفيق غواړې، نو قبر کښې خو د عمل توفيق نهٔ نصيب کيږي، دا ژوند چې الله در کړے دے، خو ددې دپاره ئې در کړے دے چې دا د الله او د نبي ﷺ د طريقې مطابق تير کړه.

**(9) نهم روايت**

رسول الله ﷺ فرمائي: «أَرْبَعٌ حَقٌّ عَلَى اللهِ أَنْ لَّا يُدْخِلَهُمَ الجَنَّةَ، وَلَا يُذِيقَهُم نَعِيمَهَا» څلور كسان دي، الله وائي: ما باندې لازم دي، چې دوي به زهٔ جنت ته نهٔ داخلوم، او نهٔ به ورته الله د جنت نعمتونه اوڅکئ.

(1) يَو «مُدْمِنُ الخَمْرِ» يَو هغه كس دے، چې هغه هميشه دپاره شراب څکي،

(1) [سورة الأحزاب: 36].

داسې سړے به الله چرې هم جنت ته داخل نۀ کړي، په اول ځل باندې، اول به سخته سزا ورکوې، د هغې نه پس به ئې جنت ته داخلوې. او نبي ﷺ فرمائي: چا چې دُنيا کښې شراب اُوڅکل، الله به پرې د جنت شراب نۀ څکې.

(2) دويم «وَآكِلُ الرِّبَا» د سود مال خوړونکے د سود معامله کونکے، داسې سړے به الله جنت ته نۀ داخلوې، الله به ورته د جنت نعمتونه او مزې نۀ ښائي.

(3) دريم «وَآكِلُ مالِ اليتيمِ بِغَيْرِ حَقٍّ» هغه سړے به الله جنت ته نۀ داخلوې، چې هغه د يتيم مال خوړونکے وي، پۀ ناجائز طريقې باندې.

(4) څلورم «وَالْعاقُّ لِوَالِدَيْهِ» هغه سړے به الله جنت ته نۀ داخلوې، چې هغه د مور پلار نافرمان وي، کچرې توبه ئې ويستله، نو الله به ئې جنت ته داخل کړي.[1]

**(10) لَسم روايت**

رسول الله ﷺ فرمائي: زۀ چې کله معراج ته لاړم نو زۀ د څۀ خلقو پۀ خوا تير شوم، چې يَو سړے پۀ نِهر کښې لامبې، او بل سړے ورسره ولاړ دے، او هغه نِهر داسې دے، چې تکې سِرې وينې دې، نو دا يَو سړے لامبو وهې، چې کله ستړے شي، اړخ ته شي، پدې اړخ يَو سړے ولاړ دے، چې هغۀ سره د ګټو ډيرے لګيدلے دے، دا ګټه را واخلې، او ددې بل سړي خُلۀ پرې اُولې، نو هغه بيا پدې نِهر کښې واپس شي، چې کله ډير ستړے شي، نو بيا اړخ ته راشي، نو بيا ئې هغه سړے پۀ خُلۀ باندې اُولې، پۀ دې عذاب کښې مبتلا وو، نبي ﷺ فرمائي: ما تپوس اُوکړو، چې دا کوم خلق دے؟ وائي: ما ته ئې اووئيل: چې دا هغه خلق دے چې دُنيا کښې ئې سود خوړو.[2]

---

(1) [رواه الترغيب والترهيب: رقم: (2844)].

(2) [رواه البخاري: رقم: (1386)].

## (11) يوَلَسم روايت

نبي ﷺ فرمائي: زۀ چې کله معراج له لاړم نو ما څۀ خلق اُوليدل، چې د هغوي غټې خيټې وي، او هغې کښې دننه ماران پراتۀ وو، او د خيټې هغه پوستکے دومره نرے وو، چې هغه ماران پکښې د بهر نه ښکاريدل، او داسې خيټې وي، لکه د کوټو پشان، نبي ﷺ فرمائي: ما تپوس اُوکړو، چې دا کوم خلق دے، وائي: ما ته جبرائيل ﷺ اوفرمائيل: چې دا هغه سود خوراۀ خلق دي، چې دُنيا کښې سود کولو، نن د دوي دا سزا ده.[1]

### دَسيدنا عمر ﷺقول

«تَرَكْنَا تِسْعَةَ أَعْشَارِ الْحَلَالِ مَخَافَةَ الرِّبَا».[2]

سيدنا عمر ﷺ فرمائي: "مونږه پۀ دُنيا کښې نهۀ حصې کاروبار ددې وجې پريخودے دے، چې سود کښې واقع نۀ شو".

### د سيدنا عبد الله ﷺدغسې قول

چې مونږه نهۀ حصې کاروبار ددې وجې نه پريخودے وو، چې هسې نه سود کښې واقع شو.

### د سيدنا علي ﷺ قول

سيدنا علي ﷺ فرمائي: چې کوم سړے پۀ دين نۀ پوهيږي، او تجارت کوي، دا سړے پۀ سود کښې غرق شو، دا سړے پۀ سود کښې غرق شو، دا سړے پۀ سود کښې غرق شو، پۀ صحيح او فاسده بيع نۀ پوهيږي، پۀ سود او غير سود باندې نۀ پوهيږي، او کاروبار کوي نو دا سړے پۀ سود کښې تباه شو.

---

(1) [رواه الترغيب والترهيب: رقم: (2858)].

(2) [رواه الصنعاني في مصنفه: رقم: (14683)].

## د حرام مال سزا

رسول الله ﷺ فرمائي: «مَنِ اشْتَرَى ثَوْبًا بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ وَفِي ثَوْبِهِ دِرْهَمٌ مِنْ حَرَامٍ لَا يَقْبَلُ اللهُ لَهُ صَلَاةً مَا دَامَ عَلَيْهِ مِنْهُ شَيْءٌ».[1]

"چا چې په لس دراهمو يَو جامه واخستله، او په دغه جامه کښې يَو درهم هُم دَ حرامو نه وو، الله دَ دغه انسان نۀ قبلوي ترڅو چې دا کپړا په دۀ باندې وي".

## د سيدنا ابو بکر صديق ؓ واقعه

سيدنا ابو بکر صديق ؓ له غلام يې راوړۀ، هغۀ يې اوڅکل، هغه ترې تپوس ونۀ کړو، چې دا دې د کوم ځائے نه روا ړۀ؟ هغه ورته اووئيل: چې تا خو زما نه تپوس ونۀ کړو، چې دا يې دي د کوم ځائے نه راوړل؟ ابو بکر ؓ ورته اووئيل: دا د څۀ يې وو، هغه غلام ورته اووئيل: دا يې چې وو نو دا ما يَو کهانت کړے وو، چاله مې کوډې او منترې کړې وې، په زمانۀ د جاهليت کښې د هغې هغۀ سرے ښۀ شوے وو، نو دا ئې ما له د هغې د وجې نه راکړې وو، سيدنا ابو بکر صديق ؓ ورته اووئيل: حرام يې دي ما باندې اوڅکل، ګوته ئې خُلۀ کښې دننه کړه، او اُلتيءَ ئې شروع کړې، اُلتيءَ چرته کيدې؛ ځکه اوږے وو، دغه لږ يې ئې څکلې وو، چا ورته اووئيل: دا اُلتيءَ دغه شان نۀ کيږي، تۀ زياتې اوبۀ اوڅکه، نو بيا به اُلتيءَ اُوشي، چې اوبۀ ئې وڅکلې، نو اُلتيءَ اُشوې، يَو سړي ورته اووئيل: دا خو هسې هم تير شوې وو، دا دومره تکليف دې څۀ له کولو؟ هغۀ ورته اووئيل: دا خو ما په اُلتو سره را اُويستل، کچرې دا يې زما د ساه وتلو سره راوتل، نو دا حرام يې به ما خپل بدن کښې نۀ وو پريخې؛ ځکه ما د نبي ﷺ نه اوريدلې دي، چې د کومې غوښې تربيت په حرام مال اوشو، د جهنم اُور د هغې دپاره ډير لائق دے.[2]

---

(1) [رواه البيهقي في "شعب الإيمان": رقم: (5707)، واللفظ له، وأحمد في "مسنده"، رقم: (5732)].

(2) [رواه أبو بكر أحمد بن مروان المالكي في "المجالسة": رقم: (1391)].

نن مسلمانان په حرام مال کښې مبتلا دي، د قبر د چنجو دپاره خپل بدن مهٔ غټوه، حلال مال اُوخوره، چې د قبر د عذاب نه هم بچ شې، او د جهنم د اُور نه هم بچ شې.

**د سود نمونې**

په بینک کښې پیسې داخلول، او پهٔ هغې سود اغستل قطعًا حرام دي، سود دے. یَو سړے بینک کښې پیسې داخلې کړې، او دے وائي: زهٔ پرې سود نهٔ اخلم، صرف د حفاظت دپاره مې پیسې بینک کښې کیښودې، دا هم ګناه دے.[1]

او کهٔ تهٔ پرې دا سود نهٔ اخلې نو هغوي ستا دا پیسې د سود پهٔ کهاته کښې چلوې، کهٔ تهٔ دا پیسې هغوي ته پریدې، نو دا هم ګناه دے، او کهٔ اخلې نو هم ګناه ده.

اوس یَو سړے مسئله باندې خبردار شو، پیسې هم بَهر کړه، او سود هم بَهر کړه، هغه سود پهٔ غریبانانو خلقو باندې تقسیم کړه، خو د ثواب نیت به پکښې نهٔ کوې، کهٔ یَو سړے حرام مال کښې د ثواب نیت کوې، نو سړے کافر کیږي؛ ځکه پهٔ حرام مال ثواب نهٔ میلاویږي.

یَو طریقه بعضې علماؤ لیکلې ده، کهٔ یَو سړے د حفاظت دپاره بینک کښې پیسې کیدې، نو هغې کښې یَو کهاته داسې ده، چې هغې باندې سود نهٔ راځي، او نهٔ هغوي ستا نه سود کټ کوې، او نهٔ هغوي دا پیسې چلوې، نو کهٔ داسې وي نو بیا صحیح ده.

او کهٔ داسې نهٔ وي، تهٔ پرې سود نهٔ اخلې، خو هغوي ستا دا پیسې چلوې، نو بیا هم ګناه ده؛ ځکه دا د هغوي سره د ګناه پهٔ کار کښې امداد دے.

بعضې خلق قرض اخلې، خو دا خلق د قرض د ثواب نه خبر نهٔ دي، چې یَو مسلمان له قرض ورکړې نو څومره لوې ثواب لرې.

---

(1) [أحسن الفتاوى].

دوې هسې چا له قرض نۀ ورکوې، خو کۀ زمکه ورسره ګانړه کوې، نو قرض درکوې، او کۀ زمکه ورسره نۀ ګانړه کوې، نو قرض نۀ درکوې، ګانړه پۀ شریعت کښې جائز ده. بعضې خلق وائي: ګانړۀ حرامه ده، ګانړه حرامه نۀ ده، ګانړۀ پۀ شریعت کښې جائز ده.

**ګانړه څۀ ته وائي؟**

ګانړه دیته وائي: چې يَو سړي ستا نه پیسې واغستې، او تۀ وائي چې زما پدې سړي اعتماد نشته، دے به ما له دا پیسې راکولے شي، یا نۀ، هسې نۀ چې نۀ ئې راکوې، نو د هغۀ نه پۀ هغه پیسو کښې يَو شے ځان سره امانت کړه، چې کله تا ما له پیسې راکړې، نو دا شے به زۀ تا ته واپس درکوم، دیته ګانړه وائي، دا جائز دي، ددې مطلب دا دے چې دا شے تر هغې پورې تا سره امانت پروت دے، چې تر څو پورې تا ما له پیسې نۀ دي راکړې، ددې نه به تۀ فائده نۀ اخلې، او کۀ ددې نه تۀ فائده اخلې، نو دا سود دے، او ګناه دے.

د يَو سړي نه تا زمکه ګانړه کړه، دا زمکه به شاړه پرته وي، دا زمکه به تۀ ګرې نۀ او کۀ پدې زمکه کښې تۀ څۀ ګرې نو دا تۀ سود کوې.

علماؤ لیکلې دي، چې کۀ د يَو سړي نه دې، ګړئ واغسته نو کۀ دا ګړئ په لاس کښې وي، نو هم چلیږي، او کۀ صندوق کښې وي، نو هم چلیږي، کۀ دا ګړئ تا لاس کښې واچوله، او وخت پرې معلوموې نو دا تۀ سود کوې؛ ځکه د هغې نه تۀ فائده اخلې.

الله دې تول مسلمانان د سود د ګناه بچ کړي.

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



بسم الله الرحمن الرحيم

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ

(سورة المائدة: 90)

# موضوع

# شراب څکل ګناهِ کبیره ده

بتاریخ: 2006-08-04

بمقام جلسئ

خطیب

فصیح اللسان لذیذ البیان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# شراب څکل ګناه کبیره ده

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِينُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْه وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِه اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْه وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدَهٗ وَرَسُوْلَهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ الله الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ * إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ وَعَنِ الصَّلَاةِ فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُونَ﴾.[1]

عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْه وَسَلَّمَ: «كُلُّ مُسْكِرٍ خَمْرٌ، وكُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ، وَمَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ فِي الدُّنْيَا فَمَاتَ وَهُوَ يُدْمِنُهَا لَمْ يَتُبْ، لَمْ يَشْرَبْهَا فِي الْآخِرَةِ».[2]

زما عزتمندو مسلمانانو رونړو څخکښې جمعو کښې د بعضې لويو ګناهونو تذکره تاسو اوريدلې وه، په ګناهونو کبيرو کښې يو ګناه کبيره هغه د "شرابو څکل" دې، شراب څکل دا په ګناهونو کښې لويه ګناه ده، او د شرابو د څکلو حُرمت او حرام والے ددې وجې نه دے، چې د انسان او د ځناورو په مابين کښې فرق او تميز او جدائې الله راوستې ده، نو په عقل او سوچ او فکر ئې راوستې ده، ځناور بے

(1) [سورة المائدة: 90-91].

(2) [رواه مسلم: رقم: (2003)، والترمذي: رقم: (1861)].

عقله دي، بے سوچه او بے فکره دي، انسان له الله عقل ورکړے دے، او پوهه ئې ورکړې ده، نو چې کله انسان حرام او د نشې والا څيزونه څکې، شراب وغيره څکې، ددې انسان ذهن او عقل ختمېږي، نو دے هم د ځناورو سره يَو شان شي، ددې وجې نه د شرابو څکل حرام شول، عقل يَو ډير بهترين نعمت دے، کله چې د انسان عقل په يَو شي ختمېږي نو د هغې څکل حرام او ناروا دي.

**په ابتداء د اسلام کښې شراب څکل جائز وو**

د اسلام نه مخکښې په عربو کښې شراب څکل ډير زيات عام وو، او د خلقو رواج وو، چې هغوي به شراب څکل، کله چې اسلام راغے، قرآن کريم راغے، نبي ﷺ راغے، الله رب العزت آياتونه را اوليږل: ﴿يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ قُلْ فِيهِمَا إِثْمٌ كَبِيرٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَإِثْمُهُمَا أَكْبَرُ مِن نَّفْعِهِمَا﴾.[1]

دا خلق ستا نه تپوس کوې په باره د شرابو او جوارئ کښې چې دا حلال دي، او کۀ حرام دي، نو الله ورته وائي: چې تۀ ورته اووايه چې د شرابو پۀ څکلو کښې گناه هم ډيره ده، او فائدې پکښې هم د خلقو دپاره شته.

دا ابتدائي حکم وو، او د الله احساناتو ته اُوګوره، چې خلق د شرابو سره عادت وو، نو پۀ يَو ځل پرې الله شراب نۀ دي حرام کړي، پۀ مزه مزه حکم کرانيدو، نو وړومبے حکم دا راغے، چې شراب څکل پدې کښې گناه هم شته، او د بدن فائدې پکښې هم شته، نو بعضې خلقو چې به گناه ته کتل نو شراب به ئې نۀ څکل، او چا به وئيل: چې شراب څکل خو دومره لويه گناه نۀ ده، بدن بنۀ کوي نو شراب به ئې څکل دا عادت شروع وو.

(1) [سورة البقرة: 219].

**د يَو صحابي واقعه**

يَو صحابي پۀ مونځ باندې ولاړ وو، شراب ئې څکلې وو، او مونځ ئې کولو، نو پۀ مونځ کښې ﴿قُلْ يَاأَيُّهَا الْكَافِرُونَ﴾ لوستلو، نو پدې کښې غلط شو؛ ځکه نشه وو، نو هغۀ اووئيل: "قُلْ يَاأَيُّهَا الْكَافِرُونَ * أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ" د ﴿لَا أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ﴾ پۀ ځائے ئې "أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ" اووئيل،[1] تاسو چې څنګه عبادت کوئ داسې عبادت زۀ هم کوم، معنٰی خو دا وه "چې تاسو څنګه عبادت کوئ زه داسې عبادت نۀ کوم" زۀ مسلمان يم، او تاسو کافران يئ، ليکن هغۀ ترې "لَا" کټ کړو، نو د هغې معنٰی دا شوه "چې تاسو څنګه عبادت کوئ داسې عبادت زۀ هم کوم".

**د شرابو باره کښې دويم حکم**

الله رب العزت فرمائي: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَى حَتَّى تَعْلَمُوا مَا تَقُولُونَ وَلَا جُنُبًا إِلَّا عَابِرِي سَبِيلٍ حَتَّى تَغْتَسِلُوا﴾.[2]

اے مؤمنانو! چې کله مو نشه کړې وي، شراب مو څکلي وي، نو دغه وخت کښې مونځ مۀ کوئ، تر دې پورې چې پۀ خُلۀ کوم الفاظ وايئ، چې پۀ هغې پوهيږئ؛ ځکه د نشې پۀ حالت کښې يَو سړے نۀ پوهيږي پۀ خپله خبره باندې، خبره يَو شان کوې، او د خُلې نه بل شان خبره را اوځي.

چې نشه اُوکړې، نو هغه بيا خپلې ښځې ته خُور وائي، يَو سړي چرس څکلي وو، نو کور ته راغلو، نو ښځې ته وائي، خُور زما خواته راشه، دغې وخت کښې سړے پۀ ځان نۀ پوهيږي، نو الله حکم را اوليږلو چې د نشې پۀ حالت کښې به مونځ ته نۀ نزدې کيږئ.

(1) [تفسير البغوي، تحت آية سورة النساء: 43].

(2) [سورة النساء: 43].

### د سيدنا عمر ﷺ واقعه

سيدنا عمر ﷺ اُوفرمائيل: «أَللّٰهُمَّ بَيِّنْ لَنَا بَيَانًا شَافِيًا».

"الله مونږ ته دَ شرابو باره کښې يَو واضحه او صفا حکم را اوليږه". يا وايه چې څکئ يا اووايه چې مهٔ څکئ، چې يا حلال شي يا حرام شي.

### د شرابو باره کښي دريم حکم

الله رب العزت فرمائي: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾.[1]

"اے مؤمنانو! يقينًا شراب او جوارې او عبادت د درګاهونو کول او خپل قسمت معلومول پهٔ غشو باندې دا ګند دے د کار د شيطان نه، ځان ترې بچ کړئ، ددې دپاره چې تاسو کامياب شئ".

نو خپل ځان به د شرابو او جوارئ نه بچ کوې، دا رنګه خپل ځان به د درګاهونو د عبادت نه بچ کوې.

﴿وَالْأَزْلَامُ﴾ قسمت معلومول پهٔ غشو، خپل قسمت به پهٔ غشو باندې نهٔ معلومے، دورِ جاهليت کښې دا عادت وو کله به چې يَو سړے د خپل کور نه روان شو، سوچ به ئې کولو چې زما دا سفر ما دپاره د فائدې والا دے يا د نقصان والا دے؟ نو هغې وخت کښې به څهٔ خلق ناست وو هغوي به قسمت کتلو.

اوس ئې لاسو کښي کورې، وائي لاس اوښايه چې قسمت دي څنګه دے؟ نو دے ورته ورشي، وائي: زما قسمت اوګوره چې څهٔ دي پکښې؟ رسول الله ﷺ فرمائي: کوم سړے چې د داسې خلقو خواته راغے چې قسمت ورته کورې، چې

---

(1) [سورة المائدة: 90].

اوکوره چې ښهٔ دے او کهٔ خراب دے، زما دا کار به اوشي، او کهٔ اوبه نهٔ شي؟ نبي ﷺ دا سړے پهٔ هغه کتاب کافر دے، کوم کتاب چې الله ما باندې د آسمان نه نازل کړے دے. نو پهٔ دورِ جاهلیت کښې به ئې داسې کول چې درې غشې به ئې ساتلې وو، هغه به ئې يَو لوښي کښې کيښودې وو، پهٔ هغې به ئې دا کول چې کوم سړے به بهر پهٔ سفر تلو، نو هغې خپلو منجورانو له به راغلو، چې زما دا قسمت اوګورئ، نو قسمت به ئې ورته اوکتو. (1) په يَو غشي باندې ئې ليکلې وو "أَمَرَنِي رَبِّي" زما رب ما ته حکم کړے دے چې لاړ شه، (2) په دويم غشي باندې به ئې ليکلې وو "نَهَانِيْ رَبِّي" زما رب زهٔ منع کړے يم، چې ستا دا تلل ښهٔ نهٔ دي، (3) دريم غشې به خالي وو، چې خالي به را اوختو نو دهٔ به ورته اووئيل چې زما قسمت بيا اُوګوره، کچرته به ئې ليکلې وو چې څه د الله حکم دے، نو تلو به او کهٔ ليکلې به ئې وو، چې مهٔ څه نو بيا به پاتې شو، نو دا قسمت معلومول پهٔ غشو باندې جائز نهٔ دي.

**د شيطان کار**

الله رب العزت قرآن کريم کښې فرمائي: ﴿إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ وَعَنِ الصَّلَاةِ فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُونَ﴾.(1)

"يقينًا شيطان غواړي چې واچوي ستاسو پهٔ مينځ کښې دشمني او بُغض او حسد لره دا کار د شيطان دے، چې د انسانانو مينځ کښې بُغض او حسد راولي، پهٔ څکلو د شرابو او جوارئ کښې شيطان دا غواړي چې تهٔ شراب اوڅکې، او تهٔ جوارې اوکړې، او بندوي شيطان تاسو لره د ذکر او مونځ نه آيا يئ تاسو منع کيدونکي؟".

(1) [سورة المائدة: 91].

**يوسف بن اسباط رحمه الله وائي**

هغه وائي چې کله شيطان خپل فوج اوليږي چې لاړ شئ دا خلق ګمراه کړئ، يَو ځوان سړے عابد وي، او د الله عبادت کوي، نو دا شيطان هغهٔ ته وائي: خپلو لښکرو ته وائي تاسو لاړ شئ، دا ځوان سړے چې د الله عبادت کوي، دے به پهٔ څهٔ طريقه باندې د الله د عبادت نه اړوئ، خو تاسو مخکښې ددهٔ خوراک څکاک ته اوګورئ کهٔ ددهٔ خوارک څکاک لين دين صحيح وو، بيا وريسې اونخلئ، چې عبادت درنه اونهٔ کړي، د عبادت نه ئې واړوئ، او کهٔ چرته ددهٔ خوراک څکاک ددهٔ لين دين هغه د حرامو وو، بيا ئې پريدئ، چې عبادت کوي، ددهٔ عبادت هسې هم نهٔ قبليږي.

د شيطان هميشه دپاره دا کوشش دے چې سړے د مونځ او ذکر نه پاتې کړي.[1]

﴿فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُونَ﴾ آيا يئ تاسو منع کيدونکې د شرابو او جوارئ نه؟ مطلب دا دے منع شئ د شرابو او جوارئ نه. سيدنا عمر فاروق رضي الله عنه پاسيدو، او هغهٔ اوونئيل "اَللّٰهُمَّ انْتَهَيْنَا انْتَهَيْنَا" الله مونږ د شرابو څکلو نه منع شو، مونږ د شرابو څکلو نه منع شو.

صحابي پاسيدو نبي عليه السلام اوليږلو چې تهٔ اوګرځه، او هغه آوازونه شروع کړل، چې اے خلقو! شراب حرام دي، نن نه پس به شراب نهٔ څکئ.

**د صحابو رضي الله عنهم ايمان**

د صحابو ايمان داسې وو، او هغې وخت کښې قيمتي شے شراب وو، د شرابو ورسره لوښې ډک وو، چاټئ او متکئ ورسره د شرابو ډک دې، صحابه کرام هغه راوړې او هغه ماتوې او نالو کښې ئې بَيَوې، دا نه وائي چې دا به خرڅ کړو، يا دا شتهٔ شراب به اوڅکم، نور به بيا نهٔ څکم.

(1) [کتاب الکبائر للذهبي: 125].

نن خو که یَو شے حرام او ناروا دے، او ورته وائي: چې دا مهٔ کوه، نو وائي: الله دي د عمل کولو توفيق راکړې، نو نور درته څنګه د عمل کولو توفيق درکړې، عقل ئې درکړے دے، سترګې او غوږونه ئې درکړې دې، سوچ ئې درکړے دے، او لوې نعمت ئې درکړے دے چې ایمان دے، او تا اقرار کړے دے، چې الله زما رب دے، او نبي ﷺ زما پیغمبر دے، نو نور درته څنګه توفيق درکړې؟ دا خو د الله عادت نهٔ دے چې څوک د لاس نه اونيسي، او ورته اووائي، چې دا کار به نهٔ کوې، دا يَو خبره ياد اوساتئ چې کله قيامت نزدې شي، او ګناهونه زيات شي، نو الله به فورًا سزا ورکوي، چا باندې به د کاڼړو بارانونه کوي، چا باندې به زمکه اُلټه کوي، د چا به شکلونه ورانوي، خو الله مهلت ورکوي، خو تا له ئې دُنيا کښې مهلت درکړے دے، نو تا د هغې مهلت نه غلطه فائده اغستې ده، صحابو ته خو چې حکم اوشو نو د هغې نه بعد هغوي شراب نهٔ دي څکلي.

**احاديثِ مبارکه**

**(1) اول روايت**

رسول الله ﷺ فرمائي: «إِنَّ عَلَى اللهِ عَزَّ وَجَلَّ عَهْدًا لِمَنْ شَرِبَ الْمُسْكِرَ أَنْ يَسْقِيَهُ مِنْ طِينَةِ الْخَبَالِ».[1]

د الله تعالى وعده ده د هغه چا دپاره چې هغهٔ شراب اوڅکل، يعني د نشې والا شے ئې اوڅکلو، نبي ﷺ فرمائي: الله به پهٔ دې انسان باندې د جهنميانو وينې زوې څکي.

(1) [رواه مسلم: رقم: (2002)].

## (2) دویم روایت

رسول الله ﷺ فرمائي: «كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ».[1]

هر د نشې والا شے، دا نۀ چې صرف شراب حرام دې، هر هغه شے چې هغه سړي باندې نشه راولي، نو هغه شے حرام دے، هر هغه شے چې هغه د انسان پۀ عقل کښې فرق راولي نو هغه حرام دے.

"خَمر" د "مُخامري" نه دے، "مُخامره" دیته وائي: چې عقل باندې پرده راشي، چې يَو سړے سمه او خرابه خبره نۀ پیژني، او د سړي پۀ تلو کښې کډود والے راشي او سړي ته پته لګي چې دۀ نشه کړې ده، نو نشه د يَو سړي خبرو کښې فرق راولي، نو دیته خمر وائي، چې کوم يَو شے د انسان سره داسې کار کوي، نو هغه شے حرام دے، دا اوس عام دي کۀ هغه چرس دې نو هغه هم حرام دي، او کۀ هغه فوډر دې نو هغه هم حرام دې.

علماء کرام ذکر کوي، د دوائي دپاره افیوم جائز دې، لیکن د نشي دپاره جائز نۀ دې، نو هر هغه شے چې هغه د انسان عقل خرابوې د انسان سوچ او فکر خرابوې نو د هغې څکل حرام او ناروا دې.

## (3) دریم روایت

رسول الله ﷺ فرمائي: چا چې دُنیا کښې نشې والا شے اوڅکلو، او هغه دُنیا نه لاړو، او توبه ئې اونۀ ویستله، او دے همیشه دپاره پدې ګناه کښې مبتلا وو، نو د جنت شراب به پرې الله نۀ څکي، (ددې دا مطلب نۀ دے چې جنت ته به ئې بوځي، او صرف شراب به پرې نۀ څکي) یعني الله به ئې جنت ته نۀ دننه کوي، چې دے د جنت شراب اوڅکي.[2]

---

(1) [رواه مسلم: رقم: (2003)، والترمذي: رقم: (1861)].

(2) [رواه مسلم: رقم: (2003)، والترمذي: رقم: (1861)].

اوس جنت چې د الله لوی نعمت دے، ددې دُنیا مزو مونږ دهغې نه غافله کړې یو، نو د دُنیا شراب د الله د یرې نه پریږده، الله به درباندې د جنت شراب اوڅکي.

**(4) څلورم روایت**

رسول الله ﷺ فرمائي: «إِنَّ اللهَ تَعَالَى بَعَثَنِي رَحْمَةً للعالمينَ وهُدىً لِلْعَالمِينَ وَأَمَرَنِي رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ بِمَحْقِ الْمَعَازِفِ وَالْمَزَامِيرِ وَالأَوْثَانِ وَالصُّلُبِ وَأَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ وَحَلَفَ رَبِّي عزَّ وجلَّ: بِعِزَّتِي لاَ يشربُ عبدٌ منْ عَبِيدِي جرعة خَمْرٍ إِلاَّ سَقَيْتُهُ مِنَ الصَّدِيدِ مِثْلَهَا وَلاَ يَتْرُكُهَا مِنْ مَخَافَتِي إِلاَّ سَقَيْتُهُ مِنْ حِيَاضِ الْقُدسِ».[1]

الله تعالی زهٔ رالیږلے یم رحمت او هدایت د تمام مخلوقاتو دپاره، د الله پیغمبر ﷺ زمونږ د ټولو دپاره رحمت او هدایت دے، مونږ الله نهٔ پیژاندو، مونږ د الله کتاب نهٔ پیژاندو، مونږ خپل مور پلار نهٔ پیژندل، مونږ جنت او جهنم نهٔ پیژاندل، الله مونږ ته پیغمبر ﷺ را اولیږلو، او داسې پیغمبر چې قرآن کښې الله وائي: ﴿لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ﴾.[2] نبي ﷺ مؤمنانو باندې د مؤمنانو د نفسونو نه زیات مهرنانه دے، دومره پهٔ مؤمنانو باندې مئین پیغمبر دے چې مؤمنان پهٔ خپل ځان دومره مئین نهٔ دې، لکه څومره چې ورباندې د الله پیغمبر مئین دے، او ددې مئین کیدو وجه ئې دا ده:

چې حدیث کښې راځي چې کله د قیامت ورځ شي، نو هغه به ډیر سخت منظر وي، هر یَو پیغمبر به آواز کوي «نَفْسِيْ نَفْسِيْ نَفْسِيْ» "یا الله زما نفس ته خیر کړه، زما نفس ته خیر کړه، زما نفس ته خیر کړه"، هر یَو پیغمبر سره به د ځان غم وي، او زمونږ

---

(1) [رواه أحمد في "مسنده"، رقم: (1861)].

(2) [سورة التوبة: 128].

پیغمبر جناب رسول الله ﷺ به وائي: «أُمَّتِي يَا رَبِّ، أُمَّتِي يَا رَبِّ، أُمَّتِي يَا رَبِّ» "یا الله زما اُمت ته خیر کړه، یا الله زما اُمت ته خیر کړه"،[1] څومره مهربان پیغمبر دے.

الله رب العزت فرمائي: ﴿وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا رَحْمَةً لِّلْعَالَمِينَ﴾.[2]

"نهٔ دے لیږلے مونږ تا لره مګر رحمت د مخلوقاتو دپاره". ستا لیږل د نور مخلوق دپاره یَو رحمت دے، نبي ﷺ فرمائي: زهٔ الله یَو رحمت رالیږلے یم.

الله رب العزت فرمائي: ﴿لَقَدْ مَنَّ اللَّهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْ أَنفُسِهِمْ يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَإِن كَانُوا مِن قَبْلُ لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ﴾.[3]

"پهٔ تحقیق سره احسان کړے دے الله پهٔ مؤمنانو باندې کله چې الله د دوي د نفسونو نه پهٔ دوي کښې پیغمبر را اولیږلو". الله وائي: دا زما لوې احسان دے مؤمنانو باندې.

نو نبي ﷺ وائي: زهٔ الله رحمت رالیږلے یم «وَأَمَرَنِي رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ بِمَحْقِ الْمَعَازِفِ وَالْمَزَامِيرِ وَالْأَوْثَانِ وَالصُّلُبِ وَأَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ» زهٔ الله ددې دپاره رالیږلے یم چې زهٔ کانې بجانې او ډمتوب ختم کړم، او د جاهلیت د دور هغه رسمونه او رواجونه ختم کړم، او د اسلام هغه صحیح طریقې خلقو ته اوښایم «وَحَلَفَ رَبِّي عَزَّ وجلَّ: بِعِزَّتِي» نبي ﷺ فرمائي: زما رب چې ډیر اوچت دے پهٔ خپل عزت باندې قسم خوړې «لَا يشربُ عبدٌ منْ عَبِيدِي جرعة خَمْرٍ إِلَّا سَقَيْتُهُ مِنَ الصَّدِيدِ مِثْلَهَا» چې زما یَو بنده پهٔ دُنیا کښې، د شرابو یَو کوټ نهٔ څکې مګر زهٔ به ورباندې د جهنم د وینو

(1) [رواه البخاري: رقم: (4712)، والترمذي: رقم: (2434)].

(2) [سورة الأنبياء: 107].

(3) [سورة آل عمران: 164].

زړو نه څکم، «وَلاَ يَتْرُكُهَا مِنْ مَخَافَتِي إِلاَّ سَقَيْتُهُ مِنْ حِيَاضِ الْقُدس» او چې يَو بنده چې زما د يرې نه د شرابو څکل پرېږدې نو نبي ﷺ فرمائي: الله قسم خورې چې زۀ به ورباندې د جنت شراب څکم.

**(5) پنځم روايت**

رسول الله ﷺ فرمائي: «ثَلاَثَةٌ قَدْ حَرَّمَ اللهُ عَلَيْهِمُ الْجَنَّةَ: مُدْمِنُ الْخَمْرِ، وَالْعَاقُّ لِوَالِدَيْهِ، وَالدَّيُّوثُ، الَّذِي يُقِرُّ فِي أَهْلِهِ الْخَبَثَ».[1]

درې کسان داسې دې چې الله پۀ هغوي جنت حرام کړے دے:

(1) يَو «مُدْمِنُ الْخَمْرِ» هميشه دپاره شراب څکونکے ټول عمر شراب څکې نو الله پۀ دۀ باندې جنت حرام کړے دے.

(2) دويم «وَالْعَاقُّ لِوَالِدَيْهِ» د مور پلار خلاف کونکے، پۀ دۀ باندې الله جنت حرام کړے دے، جنت ته به هله ځې، چې اول ورته سزا ميلاؤ شي.

(3) دريم «وَالدَّيُّوثُ» هغه انسان چې ديّوث دے، ديّوث چا ته وائي؟ نو حديث کښې راځي «الَّذِي يُقِرُّ فِي أَهْلِهِ الْخَبَثَ» چې د هغۀ بي بي زناکاره ده، او دے ورته څۀ نۀ وائي، دۀ پرې ځان خاموشه کړے دے. نو داسې ديّوث جنت ته نۀ شي تللے.

**(6) شپږم روايت**

رسول الله ﷺ فرمائي: د جنت پۀ دوروازه ئې ليکلې دي، چې اے جنته تۀ پۀ بے غيرته انسان باندې حرام ئې، داسې بے غيرته چې د هغۀ کور والا زناګانې کوې، او دۀ کښې غيرت نۀ راځي، داسې بے غيرته خلق الله جنت ته نۀ دننه کوي.[2]

(1) [رواه أحمد في "مسنده"، رقم: (5372)].

(2) [الكبائر للذهبي: 54، طبع دار الندوة الجديدة-بيروت].

## (7) اُووم روايت

رسول الله ﷺ فرمائي: «ثَلَاثَةٌ لَا تُقْبَلُ لَهُمْ صَلَاةٌ، وَلَا يَصْعَدُ لَهُمْ إِلَى اللهِ حَسَنَةٌ، وَالْمَرْأَةُ السَّاخِطُ عَلَيْهَا زَوْجُهَا، وَالْعَبْدُ الْآبِقُ حَتَّى يَرْجِعَ فَيَضَعَ يَدَهُ فِي يَدِ مَوَالِيهِ السَّكْرَانُ حَتَّى يَصْحُوَ».(1)

درې کسان داسې دي، چې الله د هغوي يَو مونځ هم نهٔ قبلوې، نهٔ ئې الله يَو نيکي آسمان طرف ته اوچتوې، دا درې کسان څوک دي؟ نبي ﷺ فرمائي:

(1) «السَّكْرَانُ حَتَّى يَصْحُوَ» هغه د نشې والا خلق چې هغوي نشه کوې، تر څومره وخته پورې چې هغوي نشه کوې، د هغوي مونځ نهٔ قبليږي، او کهٔ صحيح شو، الله نه ئې معافي اوغوښته نو مونځ به ئې قبول شي.

(2) دويم «وَالْمَرْأَةُ السَّاخِطُ عَلَيْهَا زَوْجُهَا» هغه ښځه چې د هغې نه خپل خاوند خفه دے، تر هغه وخته پورې ددې ښځې يَو عمل هم نهٔ قبليږي تر څو پورې ئې چې خپل خاوند رضا کړے نهٔ دے.

(3) دريم «وَالْعَبْدُ الْآبِقُ حَتَّى يَرْجِعَ فَيَضَعَ يَدَهُ فِي يَدِ مَوَالِيهِ» هغه غلام چې هغه د خپل مالک نه تختيدلے دے، مالک ترې خفه دے، او دے بغير د اجازت نه لاړ، ترڅو پورې چې دے واپس نهٔ دے راغلے، د خپل مالک پهٔ لاس کښې لاس نهٔ دے ايخے، او د هغهٔ نه ئې معافي نهٔ ده غوښتې تر هغې پورې ددهٔ يَو عمل هم نهٔ قبليږي.
غلام هغه چا ته وائي: چې د کافرانو نه به ئې را وستل، يَو سړي به پيسو باندې اغستے وو، د هغهٔ نوکر او خدمت کار به وو، پهٔ پيسو به خرڅيدل، د غلام اغستل او خرڅول جائز دي، اصيل سړي اغستل او خرڅول حرام دي، کهٔ اوس څوک داسې کوې چې

(1) [رواه الطبراني في "المعجم الأوسط"، رقم: (9231)].

خپل زوې خرڅوې یا خپله لور خرڅوې نو حرامې پیسې به اخلې، نو چې هغه غلام به ئې واغستو نو هغهٔ به د مالک خدمت کولو، نو دا غلام بغیر د اجازت د مالک نه اوتختیدو، نو ددهٔ یَو عمل هم نهٔ قبلیږي.

نو مسلمانانو له پکار دي، چې ددې ګناهونو نه ځان بچ کړي، نن خو پته نهٔ لګي، کهٔ چا خیټې ته حرام واچول، او کهٔ حلال ئې واچول خو داسې ورځ را روانه ده، چې الله فرمائي: ﴿فَمَن يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ * وَمَن يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ﴾.[1]

"چا چې د ذرې برابر نیک عمل اوکړو، هغه به ورته ښکاره شي، او چا چې د ذرې برابر بد عمل اوکړو، هغه به ورته ښکاره شي". دا پته به قیامت کښې لګي، او پهٔ هغه ورځ به افسوس فائده نهٔ ورکوي.

**(8) اتم روایت**

رسول الله ﷺ فرمائي: «اجْتَنِبُوا الْخَمْرَ فَإِنَّهَا أُمُّ الْخَبَائِثِ».[2]

د شرابو نه ځان بچ کړئ؛ ځکه دا د تمامو ګناهونو جرړه ده، ټول ګناهونه د دې څیزونو نه پیدا کیږي.

**یَو صحابي ته نصحت**

یَو صحابي دے، رسول الله ﷺ ته وائي: ما ته لږ نصیحت اوکړه، نبي ﷺ ورته اوفرمائیل: «لاَ تُشْرِكْ بِاللهِ شَيْئًا وَإِنْ قُطِّعْتَ وَحُرِّقْتَ وَلاَ تَتْرُكْ صَلاَةً مَكْتُوبَةً مُتَعَمدا فَمن تَركهَا مُتَعَمدا فقد بَرِئَتْ مِنْهُ الذِّمَّةُ وَلاَ تَشْرَبِ الْخَمْرَ فَإِنَّهَا مِفْتَاحُ كل شَرّ».[3]

د الله سره شریک مهٔ پیدا کوه، اګر کهٔ تهٔ ټوټې ټوټې شې، یا په أور باندې

---

[1] [سورة الزلزال: 7-8].

[2] [رواه النسائي، رقم: (5666)].

[3] [رواه ابن ماجة، رقم: (4034)].

اوسوزولے شي. شرک دومره لویه ګناه ده.

مونځ مهٔ پرېږده؛ ځکه مونځ د الله سره یَو لَوظ دے او ذمه ده، چا چې مونځ پرېخودو، نو الله ترې خپله عده کټ کړه، الله ورسره خپل تعلق پرېخودو، او شراب مهٔ څکه؛ ځکه دا د ټولو ګناهونو جرړه ده.

**واقعه**

امام منذري ﷫ پهٔ الترغیب والترهیب کښې لیکي، وائي: بني اسرائیلو کښې یَو عابد وو، ډیر زیات عبادت به ئې کولو، یَو زنانه وه، هغې زنانه ورته خبر ورکړو، چې تهٔ راشه زمونږ څهٔ فیصله ده، چې تهٔ زمونږ مینځ کښې شاهد او ګواه شې، او شهادت او ګواه کیدل ښهٔ کار دے، هغه پدې خیال لاړو، چې زهٔ به شهادت اُوکړم، عابد را روان دے، او چې پهٔ کومه دروازه دننه کیږي، نو دروازه ورپسې بندوي، تردې پورې چې د هغې زنانه خواته ئې اورسولو، هغه زنانه ناسته ده، یَو لوښې کښې ورسره شراب دي، او ورسره یَو غُلام هلک ناست دے، ورته وائي: پدې دِرېو څیزونو کښې چې کوم یَو کوې نو هغه اوکړه، کهٔ ما سره زنا کوې، کهٔ دا ماشوم قتل کوې، او کهٔ شراب څکې، او کهٔ دا کارونه نهٔ کوې نو اوس به اووایم چې دا عابد صاحب زما خواته څهٔ دپاره راغلے دے؟ عابد حیران شو، چې اوس څهٔ اوکړم؟ کهٔ دا کارونه نهٔ کوم، نو دا ښځه ما باندې پهٔ دروغه الزام لګوې، چې دے ما سره د زنا دپاره راغلے دے، زهٔ خو د شهادت دپاره راغلے یم، او کهٔ دا کارونه کوم نو ګناه کښې راځم، نو سوچ ئې اوکړو، کهٔ زنا کوم، نو دا هم ګناه کبیره ده، او کهٔ دا ماشوم وژنم نو دا هم لویه ګناه ده، او کهٔ شراب څکم نو دا هم ګناه ده، نو ذهن کښې ئې دا سوچ اوکړو، چې دا شراب به اوڅکم نو دا به زما د نفس خپله ګناه شي، نو شراب به اوڅکم دا راته ښهٔ دي، چې شراب ئې اوڅکل نو هغې کښې خو ډیره مزه وه، چې هغه ئې اوڅکل، وائي: لږ نور

راته راکړئ، لږ ئې پرېږ نور اوڅکل، نو نشه شو، نو هغه هلک ئې هم مړۀ کړو، او د هغې ښځې سره ئې زنا هم اوکړه.[1]

هغې ښځې خو ورته وئیلې وو، چې پدې دریو کارونو کښې یَو کار اوکړه، خو چې شراب ئې اوڅکل نو درې واړو کارونو کښې مبتلا شو.

اوس چې پدې معاشره کښې سوچ اوکړې، چې کوم سړے چرس، شراب او فوډر څکې او غریب وي، نو هغه د خلقو نه هر څۀ پټوې، بیا غلا ته تیار شې، چې پیسې وګټې، چې ځان له پرې چرس او فوډر واخلې، او آخر کښې د هغې ښکلې ځوان نه لیونے جوړ شي؛ ځکه نشه دا د تمام ګناهونو جرړه ده، ددې د څکلو سره سړے پۀ نورو ګناهونو کښې مبتلا کیږي، د پیسو دپاره دروغ وائي، د پیسو دپاره مرکونه کوې، د مسلمان نه غلا کوې، تردې چې د خپل مور پلار نه هم غلا کوي.

**(9) نهم روایت**

رسول الله ﷺ فرمائي: کله چې غلا کر غلا کوې، نو دے مؤمن نۀ دے څۀ وخت چې زناکار زنا کوي نو د زنا پۀ وخت کښې دے مؤمن نۀ دے، او کله چې څوک شراب څکې، نو دغه وخت کښې دے مؤمن نۀ دے.[2]

نو چې شراب دې څکلې دې، نو الله ته توبه اوباسه، الله به دې معاف کړې، او چې غلا دې کړې ده نو الله ته به توبه هم اوباسې، او چې د کوم بنده نه دې غلا کړې ده، د هغه زړۀ دې آزار کړے دے، نو هغه نه به هم معافي غواړې؛ ځکه الله رب العزت خپل حق معاف کوې، خو پردے حق الله نۀ معاف کوې، زنا دې کړې ده، نو دا هم د الله حق دے ګناه ده؛ ځکه چې د چا سره دې زنا کړې ده،

---

(1) [الترغیب والترهیب].

(2) [رواه البخاري، رقم: (5578)، ومسلم، رقم: (57)].

نو د هغې ښځې نه خو معافي نۀ شي غوښتے، او نۀ ورته خاوند ته وئيلے شي، چې ستا د ښځې سره مې زنا کړې ده، معاف مې کړه، دا هم ستا او د الله پۀ مينځ کښې راز دے، الله ته اوژاړه، الله تا را باندې دُنيا کښې پرده واچوله، الله ما معاف کړه، نو الله به دې معاف کړې.

**(10) لَسم روايت**

رسول الله ﷺ فرمائي: شراب د لَسو وجونه حرام دې:

(1) يَوه وجه «لَعَنَ اللهُ الْخَمْرَ» شراب پخپله باندې هم پۀ لعنت دې، يعني شراب پخپله هم د لعنت نه ډک دې.

(2) دويمه وجه «وَشَارِبَهَا» د شرابو څکونکے هم پۀ لعنت دے.

(3) دريمه وجه «وَسَاقِيَهَا» کوم سړے چې ورباندې شراب څکې، هغه هم پۀ لعنت دے.

(4) څلورمه وجه «وَبَائِعَهَا» د شرابو خرڅونکے هم گناهگار دے.

(5) پنځمه وجه «وَمُبْتَاعَهَا» د شرابو اغستونکے هم گناهگار دے.

(6) شپږم وجه «وَعَاصِرَهَا» د شرابو نچوړونکے هم گناهگار دے.

(7) اُوومه وجه «وَمُعْتَصِرَهَا» چې د چا دپاره شراب جوړوې، هغه هم پۀ لعنت دے.

(8) اَتمه وجه «وَحَامِلَهَا» د شرابو اُوړونکے هم پۀ لعنت دے.

(9) نهمه وجه «وَالْمَحْمُولَةَ إِلَيْهِ» چا له چې شراب اُوړې، هغه هم پۀ لعنت دے.

(10) لَسمه وجه «وَأَكْلِ ثَمَنِهَا» څوک چې د شرابو پيسې خورې، هغه هم پۀ لعنت دے، دا ټول د لعنت نه ډک دې.[1]

(1) [رواه أبو داود، رقم: (3674)].

## (11) يوولسم روايت

رسول الله ﷺ فرمائي: «مَا مِنْ قَوْمٍ اجْتَمَعُوا عَلَى مُسْكِرٍ فِي الدُّنْيَا إِلَّا جَمَعَهُمُ اللهُ فِي النَّارِ فَيُقْبِلُ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ يَتَلَاوَمُونَ يَقُولُ أَحَدُهُمْ لِلْآخَرِ يَا فُلَانُ لَا جَزَاكَ اللهُ عَنِّي خَيْرًا فَأَنْتَ الَّذِي أَوْرَدْتَنِي هَذَا الْمَوْرِدَ فَيَقُولُ لَهُ الْآخَرُ مِثْلَ ذَلِكَ».[1]

کله چې د دُنيا يو قوم په حرام څيز او د نشې په څيز راجمع شي، دغسې به ئې الله په قيامت کښې په جهنم کښې راجمع کوي.

لکه نن چې دُنيا کښې نشه کوي، نو يو ځائے ته راجمع شي، دغسې به ئې قيامت کښې الله په اُور کښې راجمع کوي، او يو بل به ملامته کوي، يو به وائي: دا تا زهٔ په شرابو عادت کړے ووم، بل به ورته وائي: تا پرې عادت کړے ووم، نو دا ملامتيا بيا فائده نهٔ ورکوي.

### امام ذهبي رحمه الله يو واقعه ذکر کوي

عبد الملک بن مروان ته يو ځوان راغلے، او هغه ژړل، او ډير غمژن وو، ورته وائي: امير المؤمنين يو ډيرې لوې ګناه کښې مبتلا ووم، چې الله به راته ګناه معاف کړي او کهٔ نه؟ هغهٔ ورته اووئيل: څهٔ چل دې کړے دے؟ هغهٔ ورته اووئيل: ډيره لويه ګناه مې کړې ده، هغه ورته اووئيل: الله به دې توبه قبوله کړي، خو کهٔ تا الله ته توبه ويستله.

حديث قدسي دے، نبي ﷺ فرمائي: الله پخپله وائي: ابن آدمه کهٔ دومره لوې ګناهګار ئې چې کهٔ د زمکې نهٔ واخله او تر آسمانه پورې دا ټوله فضا يواځې ستا د ګناهونو نه ډکه شي، دومره ګناهونه دې کړې دي، او د زړه د اخلاص نه توبه اوباسې، چې الله ما معاف کړې، الله وائي: زهٔ به دې معاف کړم، زما پرې هيڅ پروا

(1) [کتاب الکبائر للذهبي: 85، طبع دار الندوة الجديدة-بيروت].

نشته دے، چې ته دومره هم اووائې: چې الله بغیر ستا د در نه بل در نشته، نو د الله مینه د اویا میندو نه سیوا ده، معاف به دې کړې.

نو هغه ځوان اووئیل: ډیر لوې ګناهونه مې کړې دې، اوس به مې الله معاف کړې او که نه؟ عبد الملک بن مروان ورته اووئیل: الله به دې معاف کړې، خو څه ګناه دې کړې ده؟ هغه ورته اووئیل: زما کار دا وو، چې کله به یَو انسان وفات شو، نو ما د هغهٔ نه کفن اویستلو، او هغه به مې ځان له خرڅ کړو، وائې: ما یَو څو قبرونه ولیدل چې د هغې د وجې نه څهٔ ویریدم، عبد الملک بن مروان ورته اووئیل: څنګه ویریدې؟ وائې: یَو قبر مې یَو شپه کولاؤ کړو، یَو سړے مې اوکتلو چې د هغهٔ مخ د قبلې نهٔ اړولے شوے وو، وائې: زهٔ ویریدم نو را اوتختیدم، نو ماله د هغې قبر نه آواز اوشو، چې ددې سړي د حال تپوس اوکړه، چې ددهٔ دا مخ ولې د قبلې نهٔ اړولے شوے دے؟ وائې: ما پهٔ هغې مَنده کښې تپوس اوکړو، چې ددهٔ دا مخ ولې د قبلې نه اړولے شوے دے؟ وائې: ما ته اووئیلے شول: دا هغه سړے وو، چې دهٔ دُنیا کښې مونځ ته سپک کتل، د مونځ څهٔ اهمیت او قدر ورسره نهٔ وو، نن ددهٔ مخ څکه د قبلې نه اړولے شوے دے، څکه مونځ کښې سړے قبلې طرف ته مخ کوي.

وائې: بله شپه بیا راغلم، بل قبر مې کولاؤ کړو، د هغه قبر هغه مړے مې اوکتلو چې د هغه شکل د خنزیر پهٔ شان جوړ شوے وو، د هغهٔ پهٔ سټ کښې زنځیرونه او لوې لوې توقونه وو، زهٔ ډیر زیات ویریدم، او د هغهٔ نه روان شوم، وائې: ما ته د هغه قبر نه آواز اوشو، چې ددهٔ تپوس اوکړه، چې دے ولې پهٔ داسې حالت کښې دے؟ وائې: ما تپوس اُوکړو، چې دا ولې ددهٔ نهٔ خنزیر جوړ شوے دے، او سټ کښې ئې زنځیرونه

او توقونه اچولے شوي دي؟ وائي: ما ته ئې اووئیل: چې دا هغه سړے وو، چې دهٔ به دُنیا کښې شراب څکل، او چې مړهٔ کیدو، نو توبه ئې نهٔ وه ایستې، دا ددهٔ سزا ده، نن د دهٔ نه قبر کښې خنزیر جوړ شوے دے.

وائي: بل قبر له لاړم چې بل قبر مې کولاؤ کړو، نو هغه سړي باندې قبر کښې د اُور میخونه لګیدلي وو، او ژبه ئې راوتې وه، او پهٔ سټ باندې پرته وه، او نهایت د رُعب پهٔ حالت کښې وو، وائي: زهٔ روان شوم، وائي: ما ته آواز اوشو، چې تپوس اُوکړه، چې دے ولې پهٔ داسې حالت کښې دے؟ وائي: ما تپوس اوکړو، چې دهٔ څهٔ داسې ګناه کړې ده، چې دهٔ له عذاب ورکولے شي؟ وائي: ددهٔ دا ګناه وه، چې دهٔ به د وړو بولو نهٔ ځان نهٔ بچ کولو، او دویم کار ئې دا وو، چې دهٔ به د خلقو مینځ کښې خبرې اُوړې راوړې، وائي: ددهٔ دا سزا ده چې نن ددهٔ ژبه راوتې ده، او پهٔ سټ پرته ده.

وائي: د هغه نه راغلم بل قبر مې کولاؤ کړو، چې هغې کښې یَو انسان پرُوت دے، چې د هغهٔ پهٔ ټول بدن اُور بلیږي، زهٔ اوتختیدم، وائي: آواز اوشو، چې تپوس اُوکړه چې دهٔ له ولې دا سزا ورکولے شي؟ ددهٔ څهٔ ګناه ده؟ وائي: ما تپوس اوکړو چې دهٔ له ولې دا سزا ورکولے کیږي؟ وائي: ما ته اووئیلے شو، چې دا هغه سړے وو، چې بالکل ئې مونځ نهٔ کولو، ددهٔ دا سزا ده، چې ټول بدن باندې ئې اُور بلیږي.

وائي: بل قبر له راغلم، چې قبر مې کولاؤ کړو، نو هغه قبر پهٔ مړې ډیر زیات کولاؤ وو، ډیر فراخه وو، څومره پورې چې نظر لګیدو، نو دومره پورې فراخهٔ قبر وو، (کله کله الله دا د عبرت دپاره ښائي) وائي: چې مې اوکتل پهٔ هغې کښې ډیرې خائسته رڼړا ګانې وې، دا مړے یَو بهترین پالنګ دپاسه پرُوت دے، او ډیرې خائسته

خوشبويانې د هغۀ نه راروانې وي، وائي: زۀ د هغۀ نه هم ويريدم، چې مړے خو پۀ داسې حالت کښې نۀ وي، نو زۀ د هغۀ نه هم واپس روان شوم، وائي: ما ته ئې آواز اُوکړو، چې دا څوک دے، او دے ولې پۀ دومره نعمتونو کښې دے؟ تۀ دا تپوس نۀ کوې؟ وائي: ما تپوس اُوکړو، چې دا څوک دے؟ وائي: ما ته ئې اووئيل: چې دا هغه ځوان دے، چې دۀ توله ځوانې د الله پۀ اطاعت او تابعدارئ کښې تيره کړې وه، نن ددۀ دا حالت دے، چې پۀ دومره نعمتونو کښې دے، او ددۀ قبر ددۀ دپاره فراخه شوے دے.[1]

### د نن دُور د ځوانانو حالت

نن د ځوانئ دُور دے، د سړي کله يَو ګناه ته خيال کيږي، او کله بلې ګناه ته، خو چې کله يَو ځوان خپله ځوانې د الله پۀ عبادت کښې تيره کړه، نو د هغۀ به آخرت کښې ډير خائسته حالت وي. حديث کښې راځي:نبي ﷺ فرمائي: د قيامت پۀ ورځ به الله اووۀ (7) کسان د خپل د عرش د سُورې لاندې اودرئ، پۀ هغه ورځ چې سخته ګرمي به وي، او صرف د الله د رحمت سُورے به وي، پۀ هغه اووۀ (7) کسانو کښې يَو کس هغه دے، چې ټوله ځوانې ئې د الله عبادت کښې تيره کړه. ددې زمانې ځوان نه تپوس اوکړه، زنا به کوې، شراب به څکې، چرس او فوډر به څکې، ګيره به خرئې، کۀ ورته وائې: چې دا ګناه مۀ کوه، نو وائي: الله دې توفيق راکړې، نو چې بوډا شې، نو ګيره به پريږدې، څۀ کوې الله له دهوکه ورکوې؟ ددې ځوانئ باره کښې به الله تپوس کوي.

### د ځوانئ باره کښې د نبي ﷺ فرمان

حديث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: الله به د ځوانئ باره کښې تپوس کوي، چې

---

(1) [كتاب الكبائر للذهبي: 90-91].

ځواني زما يَو جدا نعمت وو، تا له مې ځوانۍ درکړې وه» دا تا په څهٔ کښې تيره کړې وه؟ نو ځوان تو له ځوانۍ ګناهونو کښې تيره کړې وي، نو چې بوډا شي، نو د ځان نه ښهٔ سرے جوړ کړي. په ځوانۍ کښې توبه ايستل پکار دي؛ ځکه "اَلْمَوتُ يَأْتِيْ بَغْتَةً" مرګ ناساپه راځي.

نبي ﷺ صحابي ته فرمائي: «كُنْ فِي الدُّنْيَا كَأَنَّكَ غَرِيبٌ أَوْ عَابِرُ سَبِيلٍ».[1]

"په دُنيا کښې داسې ژوند تير کړه لکه چې مسافر ئې، يا په لاره تيريدونکے". چې سحر شې، نو دا مهٔ وايه چې ماښام له به رسم، او چې ماښام شې، نو دا مهٔ وايه چه سحر ته به اُورسم، او چې مونځ کوې، نو داسې مونځ اوکړه، چې تهٔ وائې: دا زما آخرې مونځ دے، چې بل مونځ ته به اُورسم او کهٔ نهٔ؟ او کهٔ اوږد اوږد اُميدونه کوې، نو بيا دين ته نهٔ اوزګاريږې.

حديث کښې راځي، نبي ﷺ يَو کرښه جوړه کړه، څلور ګوټه يَو کرښه ئې د هغې نه بهر ويستله، مينځ کښې وړې وړې کرښې جوړې کړې، بيا ئې اووئيل: دا څلور کوټه کرښه دا د انسان اجل او نيته ده، دا مينځ کښې وړې وړې کرښې، نبي ﷺ فرمائيلي دي چې دا په انسان باندې تکاليف دي، چې دا تکليف به پدې انسان باندې راځي، او دا اوږده کرښه چې ده، دا د انسان اُميد دے. نو انسان پدې خپل عمر کښې روان دے، او دلته ئې نيته ده، ددې نه خو مخکښې تلے نهٔ شي، او اُميد هغه ځائے کښې دے، اوس ددهٔ اُميد ډير اوږد دے، خو نيته ورباندې راغله، او مړهٔ شو.[2]

د انسان زړهٔ کښې ډير اوږدهٔ اوږدهٔ اُميدونه دي، نو مرګ ناساپه په سرې باندې راځي، د مرګ نه مخکښې الله رب العزت ته توبه ويستل پکار دي.

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



(1) [رواه البخاري، رقم: (6416)].

(2) [رواه البخاري، رقم: (6417)].

بسم الله الرحمن الرحيم

وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ عَلَىٰ يَدَيْهِ يَقُولُ يَا لَيْتَنِي اتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُولِ سَبِيلًا

(سورة الفرقان: 27)

# موضوع

# پهٔ قيامت كښې ارمان

بتاريخ: 2007-03-08

بمقام: جلبئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله

# په قیامت کښې ارمان

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْه وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِه اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدَهٗ وَرَسُوْلَهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ الله الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ عَلٰى يَدَيْهِ يَقُولُ يَا لَيْتَنِي اتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُولِ سَبِيلًا * يَا وَيْلَتٰى لَيْتَنِي لَمْ أَتَّخِذْ فُلَانًا خَلِيلًا * لَقَدْ أَضَلَّنِي عَنِ الذِّكْرِ بَعْدَ إِذْ جَاءَنِي وَكَانَ الشَّيْطَانُ لِلْإِنْسَانِ خَذُولًا * وَقَالَ الرَّسُولُ يَا رَبِّ إِنَّ قَوْمِي اتَّخَذُوا هٰذَا الْقُرْآنَ مَهْجُورًا﴾.[1]

وَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «اَلْقُرْآنُ حُجَّةٌ لَكَ أَوْ عَلَيْكَ». (أو كما قال رسول الله ﷺ).[2]

عزتمندو حاضرينو مسلمانانو رونړو! ما ستاسو په مخکښې د الله رب العزت د كتاب قرآن كريم نه د سورتِ فرقان يَو څو آياتونه تلاوت كړل، او د احاديثو د رسول الله ﷺ نه ما ستاسو وړاندې يَو حديث اولوستو، د الله په دربادر كښې دعا ده، چې زما د خُلې نه د قرآن او حديث مطابق خبرې اُباسي، او بيا حۀ هغې باندې مونږ او تاسو له د عمل كولو توفيق راكړې، پدې جامع مسجد كښې مونږ ډير ځله حاضرې اُوكړه، او بيانونه اوشول، او زمونږ د امير محترم مولانا عبد المقدس باچا صاحب بيانونه تاسو هر

---

(1) [سورة الفرقان: 27-30].

(2) [رواه مسلم، رقم: (223)، والترمذي، رقم: (3517)، والنسائي، رقم: (2437)، وابن ماجة، رقم: (280)].

وخت اوريځ، د هغې د دومره قيمتي بيان نه ورستو زما د بيان ضرورت نشته، خو دا د ملګرو يَو مينه وي، او د ملګرو سره ملاقات اوشي، او په هغې کښې د قال الله او قال الرسول خبرې هم اوشي، او زما دا يقين دے، چې تاسو د هرې مسئلې نه ښهٔ خبر يئ، ځکه دا ځائے د دين مرکز دے، او د ډير وخت نه د دين خدمت شروع دے.

نن چې مونږ او تاسو په کوم پروګرام کښې راجمع شوې يُو، چې يَو ماشوم د الله رب العزت کتاب ختم کړے دے، د هغې په خوشحالئ کښې دا پروګرام مقرر شوے دے.

حقيقت دا دے چې الله رب العزت قرآن کريم يَو داسې جامع کتاب راليږلے دے، چې داسې کتاب په آسماني کتابونو کښې بل نهٔ دے نازل شوے، په تمامو آسماني کتابونو کښې دا اوچت شان والا د اوچت مقام والا کتاب هغه صرف قرآن کريم دے، دومره عظيم الشان کتاب چې د قرآن کريم د نزول په وجه باندې الله مخکښې تمام آسماني کتابونه منسوخ کړل، دومره عظيم الشان کتاب چې د قرآن کريم وئيل هم ثواب دے، قرآن کريم ته کتل هم ثواب دے، قرآن کريم چې کوم ځائے بيانيږي هغه محفل کښې کيناستل هم ثواب دے، د خير او برکت نه ډک کتاب دے، تمامو علومو نه ډک کتاب هغه قرآن کريم دے، داسې يَو جامع کتاب چې د هرې مسئلې حل پکښې کورې نو هغه پکښې شته، شعر:

جميع العلم في القرآن لكن　　تقاصر عنه أفهام الرجال

تمام علوم په قرآن کريم کښې دي، ليکن د خلقو ذهن کمزورے دے، څوک ترې لږ اخذ اُوکړې، او څوک ترې ډير اخذ اُوکړي.

### د قرآن کريم مثال

د قرآن کريم مثال د يَو درياب دے، د خلقو د ذهن مثال د يَو لوښي دے، درياب کښې اوبهٔ نهٔ ختميږي، او سړے د خپل لوښي متعلق د هغې نه اوبهٔ راخلي، چا سره

پیالئ دہ، نو پیالئ کښې اوبۀ راخلې، څوک لږه کښې اوبۀ راخلې، څوک بالټې کښې اوبۀ راخلې، قرآن کریم د علومو یَو دریاب دے، د هر انسان چې څومره ذهن دے، او څومره وس او کوشش ئې دے، نو د هغې مطابق د هغې نه اخذ کوې، د قرآن کریم علوم د نۀ ختمیدو والا دې، د قرآن کریم خوند او لذت نۀ ختمیږي.

## د قرآن کریم باره کښې د نبي ﷺ فرمان

رسول الله ﷺ فرمائي: دا هغه کتاب دے چې «وَلاَ يَشْبَعُ مِنْهُ العُلَمَاءُ».[1]

"د قرآن کریم د بیان او وعظ نه علماء نۀ مړیږي".

د قرآن کریم عجائب او لذتونه او خوندونه نۀ ختمیږي، نو داسې عظیم الشان کتاب دے.

## قرآن کریم پیریانو کښې انقلاب راوستے دے

چې پیریانو کله قرآن کریم واوریدو نو هغوي کښې ئې انقلاب راوستو، او هغوي وائي: مونږه یَو نا اشنا کتاب واوریدو، او چې کله ئې قرآن اوریدلے دے، نو بیا ئې خپل قوم له دعوت ورکړے دے، کله چې یَو انسان د زړۀ پۀ سترګو قرآن واورې، نو پۀ انسان کښې هم انقلاب راولې، خو کاش چې انسان د زړۀ پۀ سترګو د الله کتاب واورې.

## د انسان پیدائش او د الله مشوره

کله چې الله دا انسانان پیدا کول نو الله د ملائکو نه مشوره اخلې، او ملائکو ته وائي: چې زۀ دنیا کښې یَو انسان پیدا کوم، داسې قوم پیدا کوم چې دنیا کښې به اوسیږي، او زما عبادت به کوې، ملائک ورته وائي: مۀ ئې پیدا کوه، الله د هغې تذکره کوې ﴿وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً قَالُوا أَتَجْعَلُ فِيهَا مَنْ يُفْسِدُ فِيهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَاءَ وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ قَالَ إِنِّي أَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾.[2]

---

(1) [رواه رواه الترمذي، رقم: (2906)].

(2) [سورة البقرة: 30].

"یاد کړه هغه وخت کله چې اووئیل ستا رب ملائکو ته چې زهٔ دنیا کښې یَو خلیفه پیدا کوم، یَو داسې قوم پیدا کوم چې یَو بل پسې به پیدا کیږي، او زما د دین خدمت به کوي، ملائکو ورته اووئیل آیا تهٔ پیدا کوې پدې زمکه کښې هغې چا لره چې هغه به پدې زمکه کښې فساد کوي، او د یَو بل وینې به تویئ". نو مهٔ ئې پیدا کوه.

## د علماؤ قول

علماء کرام ذکر کوي، چې الله خو هر کار پهٔ خپله کوي، د چا نه مجبوره نهٔ دے، ملائکو نه ئې ولې تپوس کولو؟ دا ما او تا له سبق راکوي چې تاسو به خپل مینځ کښې د یَو بل سره مشوره کوئ، د الله مشورې ته ضرورت نشته، لیکن الله د ملائکو نه مشوره اغستې ده، دا ما او تاله تعلیم راکوي، چې الله احکم الحاکمین دے، هیچا ته محتاج نهٔ دے، لیکن بیا هم د ملائکو رائے معلوموي، نو تاسو به هم خپل مینځ کښې مشوره کوئ.

او د مشورې طریقه او طرز درته ښائي، چې یَو سړي رائے درکړه، نو خامخا د هغهٔ هغه رائے به منې، نه کهٔ د هغهٔ رائے صحیح ده، نو اومنه، او کهٔ صحیح نهٔ ده، نو مهٔ منه، ملائکو مشوره پیش کړه، چې انسان مهٔ پیدا کوه، نو الله ورته وائي ﴿إِنِّي أَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾.

"زهٔ ښهٔ پوهیږم پهٔ هغه څهٔ چې تاسو پرې نهٔ پوهیږئ".

## ملائک خو عالم الغیب نهٔ دي

اوس دا یَو مسئله ده، چې ملائک خو عالم الغیب نهٔ دي، نو ملائکو څنګه الله ته اووئیل چې انسانان مهٔ پیدا کوه، دوي به شر او فساد کوي، نو ملائکو ته څهٔ پته وه؟ علماء کرام ذکر کوي، ملائکو له ځکه پته وه، چې د انسانانو نه مخکښې پدې زمکه پیریان اوسیدل نو پیریانو به شر او فساد کولو، او د یَو بل وینې به ئې تویولې، نو

ملائکو اوونیل کۀ دا انسانان پیدا شي، نو دوي به هم شر او فساد کوي.

لیکن الله رب العزت "مَا كان وما يكون" باندې پوهیدو، الله وئیلي وو، چې زۀ به دوي له داسې یَو قانون او نظام رالیږم، کچرې دوي پۀ هغې قانون او نظام باندې برابر چلیږي، نو دوي به شر او فساد نۀ کوي، دوي به خلاف کار نۀ کوي، نو ملائک عالم الغیب نۀ وو، ملائکو ته د پیریانو حال معلوم وو، پۀ هغوي باندې ئې قیاس اوکړو.

**د جماعت اشاعت التوحيد والسنه عقيده**

زمونږ دا عقیده ده، چې الله نه ما سیوا بل څوک پۀ غیبو باندې نۀ پوهیږي، عالم الغیب صرف یَو الله دے، ملائک عالم الغیب نۀ دي، ځکه ملائک څۀ وائي؟ چې کله الله آدم ﷺ پیدا کړو، اسماء او نومونه ئې ورته اوښودل، ملائکو ته نۀ وو معلوم، نو ملائکو اوونیل: ﴿سُبۡحَانَكَ لَا عِلۡمَ لَنَآ إِلَّا مَا عَلَّمۡتَنَآۖ إِنَّكَ أَنتَ ٱلۡعَلِيمُ ٱلۡحَكِيمُ﴾.(1)

پاکي ده تا لره، تۀ د هر قسمه شریک او حصه دار نه پاک یې، یا الله مونږ ته علم نشته، مونږ پۀ هغه څۀ پوهیږو چې تا راته ښودلي دي، یقینًا تۀ پوهه او حکمت والا ذات یې. یَواځې تۀ پوهه یې، او ستا پۀ هر کار کښې حکمت دے، د انسانانو پیدا کولو کښې ستا خپل حکمت دے، نو ملائک عالم الغیب نه دي.

**انبیاء علیهم السلام عالم الغیب نۀ دي**

قرآن کریم کښې د تمامو انبیاؤ نه نفي د علم غیب کوي، ﴿يَوۡمَ يَجۡمَعُ ٱللَّهُ ٱلرُّسُلَ فَيَقُولُ مَاذَآ أُجِبۡتُمۡۖ قَالُواْ لَا عِلۡمَ لَنَآۖ إِنَّكَ أَنتَ عَلَّٰمُ ٱلۡغُيُوبِ﴾.(2)

کله چې الله دا تمام انبیاء میدان محشر کښې را جمع کړي، الله رب العزت به

(1) [سورة البقرة: 32].

(2) [سورة المائدة: 109].

تپوس کوي، اے انبیاء! تاسو لهٔ ستاسو د قومونو د طرف نه څهٔ جواب در کړے شوے وو؟ انبیاء علیهم السلام به وائي: یا الله مونږ ته پته نشته. نو انبیاء علیهم السلام عالم الغیب نهٔ دي، عالم الغیب صرف یَو الله دے.

**امام الانبیاء محمد ﷺ عالم الغیب نهٔ دے**

نبي ﷺ عالم الغیب نهٔ دے، حاضر ناظر نهٔ دے، د چا د حال نه خبر نهٔ دے. الله نبي ﷺ ته وائي: چې دي خلقو ته اووایه: ﴿وَلَوْ كُنتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوءُ إِنْ أَنَا إِلَّا نَذِيرٌ وَبَشِيرٌ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ﴾.(1)

"کچرې زهٔ پهٔ غیبو باندې پوهیدم، ما به ځان دپاره ډیر خیر جمع کړے وے، او ماته به هیڅ قسم تکلیف او مصیت نهٔ وے رسیدلے، لیکن ماته د غیبو پته نشته".

الله خپل پیغمبر ﷺ ته وائي: ﴿وَلَا تَقُولَنَّ لِشَيْءٍ إِنِّي فَاعِلٌ ذَٰلِكَ غَدًا * إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ﴾.(2)

زما پیغمبره چې یَو کار کوې دا مهٔ وایه چې زهٔ به دا کار صبا کوم، مګر مخکښې د هغې نه ان شاء الله وایه؛ ځکه تا ته پته نشته چې تهٔ صبا پورې رسیدے شي او کهٔ نهٔ. عالم الغیب صرف یَو الله دے. نو چې انبیاء علیهم السلام عالم الغیب نهٔ دي، ملائک عالم الغیب نهٔ دي، نو بل څوک دے چې هغه به پهٔ پټو باندې پوهه شي.

**اولیاء کرام عالم الغیب نهٔ دي**

اصحاب کهف د دنیا لوې اولیاء کرام دي، د هغوي ولایت د قرآن نه ثابت دے، لوې اولیاء کرام دي، مړهٔ هم نهٔ دي، ژوندي دي، او اودهٔ دي، لیکن د اصحاب کهفو

(1) [سورة الأعراف: 188].

(2) [سورة الكهف: 23-24].

واقعه چې قرآن ذکر کوې، نو الله وائي: نهۀ دپاسه درې سوه (309) کاله ئې غار کښې تېر کړل، چې کله راپاسيدل، د ځان د حال نه خبردار نۀ دې، چې کله بيدار شول يَو کس د بل نه تپوس کوې ﴿قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ كَمْ لَبِثْتُمْ قَالُوا لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ﴾.(1)

"اووئيل يَو ويونکې څومره وخت مو تېر کړو؟ هغه بل ورته اووئيل: يا مو يَو ورځ تېره کړه، يا مو نيمه ورځ تېره کړه". او الله فرمائي: ﴿وَلَبِثُوا فِي كَهْفِهِمْ ثَلَاثَ مِائَةٍ سِنِينَ وَازْدَادُوا تِسْعًا﴾.(2)

نهۀ دپاسه درې سوه (309) کاله غار کښې پراتۀ دې، او د ځان د حال نه خبر نۀ دې، نۀ پۀ ورځ او نۀ پۀ شپه پوهيږي، او نۀ پۀ کال تيريدو پوهيږي، او نۀ د دنيا د حال نه خبردار دي.

## چې خلق ئې را مدد کوې د هغوي حال

کوم خلق چې نور چاله آوازونه کوې، نور چاله ژړا او فرياد کوې، نور څوک را مدد کوې، د هغوي حال قرآن ذکر کوې، چې نيکانو بندګانو ته ئې چغې وهلې وي، نو چې قيامت کښې راژوندې شي، نو الله رب العزت فرمائي: ﴿وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا مَكَانَكُمْ أَنْتُمْ وَشُرَكَاؤُكُمْ فَزَيَّلْنَا بَيْنَهُمْ وَقَالَ شُرَكَاؤُهُمْ مَا كُنْتُمْ إِيَّانَا تَعْبُدُونَ﴾.(3)

پۀ کومه ورځ چې مونږ دوي ټول راجمع کړو، بيا به ورته مونږه اووايو هغه کسانو ته چې هغوي شرک کړے وو، پۀ خپل ځائے باندې اودريږئ، تاسو هم او ستاسو د برخې هغه خاوندان دې هم اودريږي، حساب کتاب درسره کوو، مونږ به د دوي پۀ مينځ کښې جدا والے راولو، پيران يَو خوا او مريدان بل خوا، عابدان يَو طرف ته او معبودان بل طرف ته به اودرو، او به وائي د دوي د برخې هغه خاوندان د چا پۀ نوم ئې

(1) [سورة الكهف: 19].

(2) [سورة الكهف: 25].

(3) [سورة يونس: 28].

چې نذرانې ورکولې، چا ته چې په حاجتونو کښې را مدد شې وئیل، هغوي به ورته وائي: نهٔ وئ تاسو خاص مونږ له عبادت کوونکې، هغه به وائي: نا نا مونږ خو ستاسو عبادت کړے وو، ما درته فلانے شے راوړے وو، بل وائي: ما ستاسو د دربار مالکه خوړلې وه، هغوي به ورته وائي: ﴿فَكَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ إِن كُنَّا عَنْ عِبَادَتِكُمْ لَغَافِلِينَ﴾.[1]

"کافي دے الله ګواه زمونږ او ستاسو مینځ کښې یقینًا وو مونږ د عبادت ستاسو نه خامخا نا خبره". او دوي وائي: زمونږ د حال نه خبردار دي، هغوي به قسم خوري چې مونږ ستاسو د حال نه ناخبره وو، نو عالم الغیب صرف یَو الله دے.

**د ملائکو مشوره**

ملائکو چې مشوره ورکوله، نو هغوي عالم الغیب نهٔ وو، خو هغوي د پیریانو حال معلوم کړے وو، قیاس ئې کړے وو، چې پیریان شر او فساد کوي، نو انسان به هم دغسې کوي.

نو الله ورته اووئیل: ﴿إِنِّي أَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾

"اے زما ملائکو! زهٔ پوهیږم پهٔ هغه څهٔ چې تاسو وربانديې نهٔ پوهیږئ".

د دوي دپاره ما سره قانون شته، دوي به پهٔ هغې قانون عمل کوي، نو دوي به د شر او فساد نه بچ وي. الله به پیغمبران رالیږل او هغوي له به ئې کتاب ورکولو، دا سلسله شروع وه، تر دې پورې چې آخرې پیغمبر جناب محمد رسول الله ﷺ الله رب العزت را اولیږلو، او آخرې کتاب قرآن کریم ئې ورکړو، او قرآن کریم کښې ددې حکم اوکړو، چې ددې پیغمبر حکم اومنئ، دا زما پیغمبر دے، او ما رالیږلے دے، چا چې دنیا کښې د الله او د رسول الله تابعدارې اوکړه، دے به دنیا کښې هم خوشحاله وي، او آخرت

(1) [سورة یونس: 29].

کښې به هم خوشحاله وي، او چا چې د الله کتاب پرېښودو، د الله د پیغمبر تابعدارۍ ئې پرېښوده، په دنیا کښې به هم ذلیله وي، او آخرت کښې به هم ذلیله وي.

**قرآن کریم د درېو کسانو ارمان ذکر کړے دے**

چې دنیا کښې خو دا خلق په مزو او تماشو کښې دي، او د ځان د حال نه خبر نهٔ دي، خو کله چې د قیامت ورځ شي، او میدان محشر وي، درې کسان داسې دي چې هغوي به افسوس او ارمان کوي، خو بیا به د هغوي نه هغه وخت تلے وي.

**(1) یَو ارمان د کافرانو**

چې نن خو کافر د دنیا په مزو او خوندونو کښې دے، او مسلمان ورته ساده او بے وقوفه ښکارې، مسلمان ورته دهشت ګرد ښکارې، لیکن په قیامت کښې به دا کافران ارمان کوي، کاش! کهٔ مونږ مسلمانان وے.

او دا ارمان به هغه وخت کوي، چې کله الله مؤمنان د جهنم نه بَهر کوي، چې هغه کس د جهنم نه بَهر کړئ، چې هغه "لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ" وئیلې وي، د هغهٔ په زړهٔ کښې د اُورې د دانې هومره ایمان وي، نو د جهنم نه ئې بَهر کړئ، نو کافران به دغه وخت کښې وائي: هائے افسوس!!! کهٔ دا لږ ایمان را کښې وے، نو ښهٔ به وے. الله فرمائي: ﴿رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ﴾.[1]

"ډېر کرتې خوښه به ګڼړې په قیامت کښې کافران کهٔ دوي وے په دنیا کښې مسلمانان". دا ارمان به کوې خو بیا به ترې وخت تیر وي، افسوس به کوې، چې مونږ په دنیا کښې ایمان راوړے وے، نو نن به مونږ همیشه دپاره جهنم کښې نهٔ وو.

---

(1) [سورة الحجر: 2].

**(2) دويم ارمان د نبي ﷺ د تابعدارئ نه کونکو**

هغه سړے به ارمان کوي، چې کوم سړي دنيا کښې د الله د پيغمبر ﷺ د طريقې خلاف کړے وو، کوم سړي چې دنيا کښې د الله د پيغمبر ﷺ په طريقه ژوند نۀ وو تير کړے، د خپلې مرضئ ژوند ئې تير کړے وو، بيا به قيامت کښې افسوس او ارمان کوي. الله فرمائي: ﴿وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ عَلَىٰ يَدَيْهِ يَقُولُ يَا لَيْتَنِي اتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُولِ سَبِيلًا﴾.[1]

"په هغه ورځ باندې چې ظالم سړے به چک لګوي په خپل لاس باندې، وائي به: هائے هائے افسوس دے ما لره ارمان دے مالره!!! چې ما نيولے وے، په تابعدارئ د پيغمبر کښې لاره".

چې دنيا کښې مې د الله د پيغمبر تابعدارې کړے وے، نو نن به زۀ جهنم کښې نۀ وے، بيا به په دې خپلو لاسونو باندې چکونه لګوې، خو وخت به تېر تلے وي. دا چکونه به ولې لګوي؟، ځکه ډير کارونه د شريعت هغه سړے په لاس باندې کوي، او دۀ د شريعت کار نۀ وو کړے، نو ځکه به پرې چکونه لګوي. يا چک به لګوي؛ ځکه چې دا د پښيمانتيا يَو نښه ده، کله چې يَو سړے په خپل کار باندې خفه وي، نو دے خپله خُلۀ کښې ګوته ورکړي، او په هغوي چکونه لګوي، نو دے به ډير زيات خفه وي، خو ليکن هغه وخت به ددۀ نه تلے وي. يا چک به ځکه لګوي؛ چې دنيا کښې خپل لاس د پيغمبر ﷺ خلاف اوچت کړے وو، او په هغۀ ئې ګُزارونه کړي وو، خپل لاس ئې حق پرست باندې اوچت کړے وو؛ ځکه به پدې خپل لاس چک لګوي.

قرآن کريم کښې الله فرمائي: ﴿جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَرَدُّوا أَيْدِيَهُمْ فِي أَفْوَاهِهِمْ﴾.[2]

چې کله ورته پيغمبران په واضحه دلائلو باندې راغلل، د الله د کتاب

(1) [سورة الفرقان: 27].

(2) [سورة إبراهيم: 9].

بیان ئې کولو، نو کار ددې خلقو به دا وو، چې دې کافرانو به دا خپل لاسونه د انبیاء علیهم السلام پهٔ خُلهٔ باندې کیښودل، د هغهٔ خُلهٔ به ئې چپ کوله.

## علماء کرام مختلف معاني کوي

(1) یو معنیٰ دا ده: ﴿فَرَدُّوٓاْ أَيۡدِيَهُمۡ فِيٓ أَفۡوَٰهِهِمۡ﴾

واپس به کړل دې خلقو خپل لاسونه پهٔ خپلو خُلو کښې د وجې د غصې نه. چې انبیاء علیهم السلام ته به ډیر غصه وو، او پهٔ هغوي به ئې وس نهٔ رسیدو، نو په خپل لاس به ئې چک لګولو، نو الله وائي: قیامت کښې به پدې خپل لاس د افسوس د وجې نه چک لګوې. قرآن کریم کښې الله فرمائي: ﴿وَإِذَا لَقُوكُمۡ قَالُوٓاْ ءَامَنَّا وَإِذَا خَلَوۡاْ عَضُّواْ عَلَيۡكُمُ ٱلۡأَنَامِلَ مِنَ ٱلۡغَيۡظِ﴾.[1]

"دا منافقان او یهود چې تاسو سره میلاوْ شي، وائي: مونږه ایمان راوړے دے، او چې کله ستاسو د خوانه لاړ شي، نو بیا د ډیرې غصې د وجې نه په خپلو ګوتو باندې چکونه لګوي". چې څهٔ اوکړو، ورځ پهٔ ورځ سیوا کیږي، او ملګرې ئې ډیریږي، دا د بعضې سړي عادت وي، چې کله ئې حق پرستو باندې وس نهٔ رسي، نو د ډیرې غصې نه پهٔ خپل لاس چک لګوي، نو قیامت کښې به پدې خپلو لاسونو د افسوس د وجې نه چکونه لګوي.

(2) دویمه معنیٰ ﴿فَرَدُّوٓاْ أَيۡدِيَهُمۡ فِيٓ أَفۡوَٰهِهِمۡ﴾

واپس به کړل دې خلقو خپل لاسونه خپلو خُلو ته. اشاره به وه دیته چې چپ شئ. کله چې به انبیاوٗ بیان کولو، نو دوي به هغوي ته وئیل چې چپ شئ، پهٔ خپلې خُلې به ئې ورته لاس کیښودو. اشاره وه چپ کولو ته.

---

(1)

لکه یَو سړے چا ته وائي: چې چپ شه، نو هغه پهٔ خپله خُلهٔ لاس کیږدي، او هغهٔ ته وائي: چپ شه، دغسې به دې خلقو انبیاء علیهم السلام ته وئیل چې چپ شئ، نو الله وائي: چې قیامت کښې به پدې لاسونو چک لګوي.

(3) دریمه معنی زاد المسیر کړې ده ﴿فَرَدُّوٓاْ أَيۡدِيَهُمۡ فِيٓ أَفۡوَٰهِهِمۡ﴾

چې کله به انبیاء علیهم السلام بیان کولو، نو دوي به دا خپل لاسونه پهٔ خپلو خُلو باندې کیښودل د خندا د وجې نه. بعضې سړے چې خاندې، او خندا ورشي نو هغهٔ له ځان بد ښکارې؛ ځکه خُلهٔ ئې ډیره وازه وي، نو هغه د خپلې خُلې د پټولو دپاره خپل لاس پهٔ خُلهٔ باندې کیږدي.

نو دې مخالفینو بهٔ انبیاؤ علیهم السلام پورې دومره خاندل، چې خُلې به ئې ډیرې کولاؤ شوې، نو پهٔ خُلو به ئې لاس کیښودو. نو الله وائي: قیامت کښې به هم پهٔ دغه لاس چک لګوي.

(4) څلورمه معنی ﴿فَرَدُّوٓاْ أَيۡدِيَهُمۡ فِيٓ أَفۡوَٰهِهِمۡ﴾

واپس به ئې کړل لاسونه خپل پهٔ خُلو د انبیاء علیهم السلام باندې، چې کله به انبیاء علیهم السلام تقریر کولو، نو دے به راغے او دا خپل لاس به ئې د پیغمبر پهٔ خُلهٔ باندې کیښودو، چې بس کړه، بله خبره ونهٔ کړې. نو قیامت کښې به دا ظالم پدې خپلو لاسونو باندې چکونه لګوي.

نو قرآن کریم کښې الله فرمائي: ﴿وَيَوۡمَ يَعَضُّ ٱلظَّالِمُ عَلَىٰ يَدَيۡهِ يَقُولُ يَٰلَيۡتَنِي ٱتَّخَذۡتُ مَعَ ٱلرَّسُولِ سَبِيلٗا﴾.[1]

"پهٔ هغه ورځ باندې چې ظالم سړے به چک لګوي پهٔ خپل لاس باندې، وائي به:

---

(1) [سورة الفرقان: 27].

هائے هائے افسوس دے ما لره ارمان دے ماله!!! چې ما نیولے وے، په تابعدارئ د پیغمبر کښې لاره". ﴿يَاوَيْلَتَىٰ لَيْتَنِي لَمْ أَتَّخِذْ فُلَانًا خَلِيلًا﴾.[1]

هائے افسوس دے ما لره هائے تباهي ده!!! چې نۀ وے زۀ چې نۀ وے نیولے ما فلانکے سړے دوست. دا خو ما د فلانکي سړي د ملګرتوب د وجې نه د نبي ﷺ خلاف کړے وو، کۀ ما دنیا کښې د هغۀ ملګرتوب نۀ وے کړے نو دا به ډیره ښه وے.

**ناکاره ملګرے سړے ګمراه کوي**

قرآن کریم کښې ددې ډیر قباحت بیان شوے دے، چې د ناکاره خلقو د ملګرتوب نه ځان وساتئ، لکه سورتِ فرقان کښې تیرشول چې دے به وائي: زۀ د ناکاره ملګرې د وجې نه جهنم ته راغلم. نو دے به وائي: ﴿لَقَدْ أَضَلَّنِي عَنِ الذِّكْرِ بَعْدَ إِذْ جَاءَنِي وَكَانَ الشَّيْطَانُ لِلْإِنسَانِ خَذُولًا﴾.[2]

"په تحقیق سره اړولے وو هغۀ ما لره د الله د کتاب نه کله چې ما ته راغے، نو قیامت کښې به دا ارمان کوي، چې دنیا کښې ما ددۀ تابعدارې نۀ وه کړې، نو دا به ډیره ښه وے.

نن خو خلق د ډلې د وجې نه، د رشته دارۍ د وجې نه، د ملګرتوب د وجې نه د دین نه لرې شول، قرآن کریم ددې تذکره کوي.

﴿يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ يَقُولُونَ يَا لَيْتَنَا أَطَعْنَا اللَّهَ وَأَطَعْنَا الرَّسُولَا﴾.[3]

"په هغه ورځ چې اړولے راړولے به شي مخونه د دوي په اُور د جهنم کښې، وائي: به هائے هائے افسوس دے مونږ لره!!! چې مونږ دنیا کښې د الله خبره منلے وے، او د الله د پیغمبر ﷺ خبره مو منلے وے". د جهنم په اُور کښې به سوزي، او دا ارمان به

(1) [سورة الفرقان: 28].

(2) [سورة الفرقان: 29].

(3) [سورة الأحزاب: 66].

کوې، خو بیا دنیا ته راتلل نشته.

**د دنیا باره کښې د نبي ﷺ فرمان**

«فَإِنَّكُمُ الْيَوْمَ فِي دَارِ الْعَمَلِ وَلاَ حِسَابَ، وَأَنْتُمْ غَدًا فِي دَارِ الْحِسَابِ وَلاَ عَمَلَ».[1]

"نن تاسو د عمل په میدان کښې يئ حساب کتاب نشته، صبا به تاسو د حساب کتاب په میدان کښې يئ بیا عمل نه کیږي". بیا به افسوسونه کوې، نو بیا فائده نۀ ورکوې، نو دا کافران به جهنم کښې پراتۀ وي، او دا ارمان به کوې: ﴿يَالَيْتَنَا أَطَعْنَا اللَّهَ وَأَطَعْنَا الرَّسُولَا﴾ "هائے افسوس دے مونږ لره!!! چې مونږه تابعداري د الله کړے وے، او تابعداري مو د الله د پیغمبر ﷺ کړے وے". ﴿وَقَالُوا رَبَّنَا إِنَّا أَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَاءَنَا فَأَضَلُّونَا السَّبِيلَا﴾.[2]

"وائي به دوي: اے زمونږه ربه! یقینًا مونږ تابعداري کړې وه د خپلو مشرانو او د خپلو ناکاره مُلیانو نو مونږه ئې گمراه کړو، د سمې لارې نه".

بیا به وائي: ﴿رَبَّنَا آتِهِمْ ضِعْفَيْنِ مِنَ الْعَذَابِ وَالْعَنْهُمْ لَعْنًا كَبِيرًا﴾.[3]

"اے زمونږه ربه! ورکړې دوي ته دوچند عذاب او پۀ لعنت کړې دوي لره پۀ لعنت لوې باندې".

قرآن کریم کښې الله فرمائي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ كَثِيرًا مِنَ الْأَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَيَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ﴾.[4]

"اے مؤمنانو! یقینًا ډیر د ناکاره مُلیانو نه او ډیر د ناکاره پیرانو نه خامخا خُورې

---

(1) [رواه البيهقي في "شعب الإيمان"، رقم: (10132)].

(2) [سورة الأحزاب: 67].

(3) [سورة الأحزاب: 68].

(4) [سورة التوبه: 34].

مالونه د خلقو پهٔ غلطې طریقې سره او بندوې خلقو لره د الله د لارې نه".

یعني د الله د کتاب نه. د الله کتاب دروغ نهٔ وائي، مُلیانو کښې هم ښهٔ او بد خلق شته، او پیرانو کښې هم ښهٔ او بد خلق شته. نو تهٔ به د ښهٔ او بد تمیز کوې، بازار ته چې یَو کس لاړ شي، او سبزې اخلي نو هغې کښې کورې چې دا صفا ده، او دا گنده ده، دا سبزې ارزانه ده، او دا گرانه ده، یَو سړے پیزار (کیړۍ) اخلي، نو هغې کښې قیمتې او بے کاره کورې، او د دین پهٔ خبره کښې چې هر چا پسې چې لاړے، نو خیر دے، نه د دین پهٔ کار کښې به حق او باطل کورې، او دا خو کیدے نهٔ شي، چې هر یَو دې حق وي.

نو هغه سړے به ارمان او افسوس کوې، چې چا د الله د پیغمبر خلاف کړے دے، او دا خبره یاد وساتۍ چې هغه عمل نهٔ قبلیږي چې هغه پهٔ طریقه د نبي ﷺ باندې نهٔ وي.

رسول الله ﷺ فرمائي: «لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى يَكُونَ هَوَاهُ تَبَعًا لِمَا جِئْتُ بِهِ».[1]

تاسو کښې یَو سړے د کامل ایمان والا نهٔ شي جوړیدے، ترڅو پورې چې د هغه تمام خواهشات د هغه دین نهٔ وي تابع شوے کوم دین چې ما راوړے دے. هر سړے ځان ته وفادار د محمد رسول الله ﷺ وائي، هر سړے وائي چې زما د الله سره مینه ده، زما د الله د پیغمبر سره مینه ده، او عمل مهٔ کوه، صرف پهٔ دعوی باندې کار نهٔ کیږي، الله وائي: ﴿قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾.[2]

اے زما پیغمبره! دې خپل امت ته اعلان اوکړه، کهٔ تاسو د الله سره مینه کول غواړۍ، نو هسې محبت منظور نهٔ دے، هغه محبت به منظور وي، کوم محبت چې پهٔ طریقه د نبي ﷺ باندې وي، نو ستاسو محبت به د الله سره هله صحیح کیږي، چې تاسو زما تابعدارې اوکړۍ، نو الله به تاسو سره محبت اُوکړي، او الله به ستاسو گناهونه

---

(1) [رواه البغوي في "شرح السنة"، رقم: (104)].

(2) [سورة آل عمران: 31].

معاف کړي، يقينًا الله بخښونکی او مهربانه دی.

د دې آيت باره کښې اقوال

﴿قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ...إلخ﴾ دې آيت باره کښې تفسير ابن کثير وائي: "هَذِهِ الْآيَةُ الْكَرِيمَةُ حَاكِمَةٌ عَلَى كُلِّ مَنِ ادَّعَى مَحَبَّةَ اللهِ، وَلَيْسَ هُوَ عَلَى الطَّرِيقَةِ الْمُحَمَّدِيَّةِ فَإِنَّهُ كَاذِبٌ فِي دَعْوَاهُ فِي نَفْسِ الْأَمْرِ، حَتَّى يَتَّبِعَ الشَّرْعَ الْمُحَمَّدِيَّ وَالدِّينَ النَّبَوِيَّ فِي جَمِيعِ أَقْوَالِهِ وَأَحْوَالِهِ".[1]

وائي: دا آيت کريمه حاکم او فيصله کونکی دی، په هغه چا باندې، چې کوم سړی دعوی کوې، چې زما د الله سره مينه ده، او دا سړی په طريقه د محمد رسول الله باندې روان نهٔ دی، دا سړی پدې خپله دعوی کښې دروغژن دی، تر هغې پورې چې دهٔ د شريعتِ محمدې ﷺ تابعدارې نهٔ ده کړې، په ټول دين کښې په ټولو اقوالو افعالو او احوالو کښې، تر هغې پورې ددې سړي خبره رشتيا کيدی نهٔ شي.

د سهل بن عبد الله قول

"عَلَامَةُ حُبِّ اللهِ حُبُّ الْقُرْآنِ، وعَلَامَةُ حُبِّ الْقُرْآنِ حُبُّ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَعَلَامَةُ حُبِّ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُبُّ السُّنَّةِ".[2]

د الله سره د محبت نښه دا ده، چې د يو سړي د الله سره مينه ده، هغه به د الله د پيغمبر سره مينه ساتي، او د الله سره د محبت نښه دا ده، چې د قرآن سره به ئې مينه وي، او څوک چې د الله د کتاب سره مينه کوې، د هغې نښه دا ده، چې د الله د پيغمبر سره به ئې مينه وي، او څوک چې د الله پيغمبر سره مينه کوې، د هغې نښه به دا وي، چې د نبي ﷺ د طريقې سره به ئې مينه وي. نو دويم ارمان به هغه څوک کوې، چې هغه دنيا

(1) [تفسير ابن كثير: تحت آية سورة آل عمران: 31].

(2) [تفسير القرطبي: تحت آية سورة آل عمران: 31].

کښې د نبي ﷺ تابعدارۍ نۀ وه کړې.

**(3) دریم ارمان چې کوم سړي قرآن باندې عمل نۀ دے کړے**

کوم سړي چې دنیا کښې د الله کتاب نۀ اوریدلےوو، او نۀ ئې پرې عمل کړے وو، او نۀ ئې پرې ځان پوهه کړے وو، او نۀ ئې د الله کتاب له وخت ورکړے وو، نو دا سړے به افسوس او ارمان کوي.

قرآن کریم کښې الله ددې خلقو د ارمان ذکر کوي: ﴿كُلَّمَا أُلْقِيَ فِيهَا فَوْجٌ سَأَلَهُمْ خَزَنَتُهَا أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَذِيرٌ﴾.(1)

"کله چې جنهم کښې يَوه ډله د جهنميانو اوغورزولے شي، نو د جهنم هغه څوکيداران به ترې تپوس کوي، تاسو له څوک يرونکے پۀ دنيا کښې نۀ وو راغلے؟"
﴿قَالُوا بَلَىٰ قَدْ جَاءَنَا نَذِيرٌ فَكَذَّبْنَا وَقُلْنَا مَا نَزَّلَ اللَّهُ مِن شَيْءٍ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا فِي ضَلَالٍ كَبِيرٍ﴾.(2)

"دوي به ورته وائي: آؤ! ډير يرونکي راغلي وو، حق پرست خلق راغلي وو، ليکن مونږ د هغوي تکذيب کړے وو، او مونږ ورته وئيلي وو، چې الله هيڅ شے نۀ دے رالیږلے. ملائک به ورته وائي: نۀ وئ تاسو مګر لويه ګمراهئ کښې".

چې کله دا خلق جهنم کښي اوغورزولے شي، نو دوي به وائي: ﴿وَقَالُوا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِي أَصْحَابِ السَّعِيرِ﴾.(3)

"وائي به دا جهنميان: هائے افسوس دے مونږ لره!!! کچرې مونږ دنيا کښې د الله کتاب اوريدلے وے، يا مو د الله کتاب باندې ځان پوهه کړے وے، نو نن به مونږ جهنم ته نۀ وو راغلي".

---

(1) [سورة الملک: 8].

(2) [سورة الملک: 9].

(3) [سورة الملک: 10].

بیا به قیامت کښې دا افسوس او ارمان کوې، خو بیا به دا موقع زمونږ نه تللې وي، څومره د هیبت وخت به وي؟ چې میدانِ محشر به وي، او میدانِ محشر د شفاعت مقام دے، او هغه وخت کښې به هر سړے د شفاعت په طمع وي، چې څوک پیدا شې چې زما شفاعت اُوکړې، او قرآن کریم به زما او ستا خلاف وي، او د الله پیغمبر ﷺ به زما او ستا خلاف وي، نو زمونږه د خلاصون به کومه یَوه لار وي؟

**د قیامت په ورځ د نبي ﷺ شکایت**

الله رب العزت قرآن کریم کښې فرمائي: ﴿وَقَالَ الرَّسُولُ يَارَبِّ إِنَّ قَوْمِي اتَّخَذُوا هَذَا الْقُرْآنَ مَهْجُورًا﴾.[1]

بعض علماء وائي: دا ﴿قَالَ﴾ د ماضي صیغه ده، نبي ﷺ په مکه کښې وئیلې وو، او څوک وائي: نه ﴿قَالَ﴾ ماضي ده په معنی د مضارع باندې، یعنې قیامت کښې به نبي ﷺ دا شهادت کوي، قیامت کښې به نبي ﷺ وائي: اے زما ربه! زما دې قوم ستا دا کتاب پرېښودے وو، الله ستا په کتاب ئې عمل نهٔ وو کړے، نو چې نبي ﷺ داسې رپورټ کوي، نو زمونږ به څهٔ حال وي.

**د قرآن پرېښودل دوه قسمه دي**

**(1) اول قسم پرېښودل**

د الله د کتاب پرېښودل څهٔ دي، یَو هغه پرېښودل چې په لویه درجه کښې کافرانو پرېښودے وو، چې د الله کتاب ئې نهٔ اوریدو، الله د کافرانو حال بیانوي: ﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَسْمَعُوا لِهَذَا الْقُرْآنِ وَالْغَوْا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُونَ﴾.[2]

---

(1) [سورة الفرقان: 30].

(2) [سورة حم السجدة: 26].

"وئیل به کافرانو! چې دا قرآن مه اورئ، کله چې دا قرآن بیانیږي، نو تاسو شور کوئ، ددې دپاره چې تاسو غالبه شئ".

اوس هم د بعضې جاهلانو دا کار وي، چې کوم ځائے د الله کتاب بیانیږي، او نور وس ئې نه رسي، نو لوډ سپیکر باندې، نعتونه شروع کړې، او چې کوم سړي باندې د قرآن آواز بد لګي، نو هغه سړے به یا کافر وي، یا به منافق وي.

**(2) دویم قسم پریښودل**

د قرآن دویم قسم پریښودل، ابن کثیر لیکلي دي: "وَتَرْكُ الْإِيمَانِ بِهِ وَتَصْدِيقِهِ مِنْ هِجْرَانِهِ، وَتَرْكُ تَدَبُّرِهِ وَتَفَهُّمِهِ مِنْ هِجْرَانِهِ".[1]

"قرآن کریم باندې ایمان نه راوړل، د قرآن تصدیق نه کول، دا د قرآن پریښودل دي، قرآن کریم باندې ځان نه پوهه کول، قرآن کریم کښې سوچ او فکر نه کول، دا د قرآن پریښودل دي".

**مؤمنانو ته خطاب**

مؤمنانو ته الله ډیر په عجیب انداز سره خطاب کوي: ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾.[2]

"اے مؤمنانو! کله چې قرآن کریم بیانیږي نو تاسو غوږ کیدئ قرآن ته، او چپ شئ، ددې دپاره چې په تاسو مهرباني اوکړے شي. کهٔ د الله رحم غواړې نو چپ شه، او قرآن ته غوږ کیده، چې الله درباندې رحم اوکړي".

**د مسلمانانو د قرآن کریم نه غفلت**

نن د مسلمانانو دا حالت دے، چې په سلو کسانو کښې یَو کس هم د قرآن نه

---

(1) [تفسیر ابن کثیر: تحت آیة سورة الفرقان: 30].

(2) [سورة الأعراف: 204].

ځان نهٔ خبروي، د داسې خلقو مقابله کېنې به قرآن او نبي ﷺ ولاړ وي، چې الله دا هغه خلق وو، چې قرآن ئې پرېښودے وو، قرآن کریم الله د سوچ او فکر دپاره نازل کړے وو، نن مونږ قرآن پرېښودو، کهٔ مونږ د قرآن نه ځان خبر کړو، نو قرآن به زمونږ دپاره سفارش کوي، او کهٔ مونږ قرآن ته شاه کړه نو دا قرآن به زمونږ خلاف ګواهي ورکوي. الله دې زمونږ تعلق د قرآن سره پیدا کړي. (آمین)

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



بسم الله الرحمن الرحيم

وَاتَّبَعُوا مَا تَتْلُوا الشَّيَاطِينُ عَلَىٰ مُلْكِ سُلَيْمَانَ ۖ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَانُ وَلَٰكِنَّ الشَّيَاطِينَ كَفَرُوا يُعَلِّمُونَ النَّاسَ السِّحْرَ

(سورة البقرة; 102)

# موضوع

# سحر او جادو

**بمقام: جلسۍ**

**خطیب**

**فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله**

# سحر او جادو

اَلْحَمْدُ للهِ نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهُ وَلَا آخِرَ لَهُ لَا ضِدَّ لَهُ وَلَا نِدَّ لَهُ وَلَا مُمِدَّ لَهُ وَلَا بَشِيْرَ لَهُ وَلَا نَذِيْرَ لَهُ وَلَا وَزِيْرَ لَهُ وَلَا مُشِيْرَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهِ وَأَصْحَابِهِ وَسَلَّمَ عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿وَاتَّبَعُوا مَا تَتْلُو الشَّيَاطِينُ عَلَىٰ مُلْكِ سُلَيْمَانَ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَانُ وَلَٰكِنَّ الشَّيَاطِينَ كَفَرُوا يُعَلِّمُونَ النَّاسَ السِّحْرَ وَمَا أُنزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ هَارُوتَ وَمَارُوتَ وَمَا يُعَلِّمَانِ مِنْ أَحَدٍ حَتَّىٰ يَقُولَا إِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ فَيَتَعَلَّمُونَ مِنْهُمَا مَا يُفَرِّقُونَ بِهِ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهِ وَمَا هُم بِضَارِّينَ بِهِ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ وَيَتَعَلَّمُونَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنفَعُهُمْ وَلَقَدْ عَلِمُوا لَمَنِ اشْتَرَاهُ مَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهِ أَنفُسَهُمْ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ﴾. (1)

وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ عَقَدَ عُقْدَةً، ثُمَّ نَفَثَ فِيهَا فَقَدْ سَحَرَ، وَمَنْ سَحَرَ فَقَدْ أَشْرَكَ، وَمَنْ تَعَلَّقَ شَيْئًا وُكِلَ إِلَيْهِ». (2)

عزت مندو مسلمانانو رونړو ما ستاسو په وړاندې د قرآن كريم يو آيت اولوستو، او د احاديثو د رسول الله ﷺ نه ما يو حديث اولوستو، پدې جمعه كښې د يو بلې ګناه كبيره تذكره كوو، چې هغې ته سحر او جادو وائي. سحر او جادو، كوډې او منترې دا ګناهِ كبيره ده، په ګناهونو كښې لويه ګناه ده، او نن وخت كښې زيات خلق په دې ګناه

(1) [سورة البقرة: 102].

(2) [رواه النسائيخ رقم: (4079)].

کښې مبتلا دي، څوک د سحر والا عمل زده کوي دې کار ته ناست دے، او په دې بانديې پیسې اخلي، او خلقو له ئې کوي، او بعض خلق داسې دي چې هغه وائي: چې کوم ځائے به داسې استاذ وي چې هغه ما له کودې اوکړي، چې زما د فلانکي سره ورانه شي، یا زما د فلانکي سره محبت پیدا شي، او دده دا مال ختم شي، دده دا عزت ختم شي، او دوي مونږ ته محتاج شي، څوک په چا باندې کودې کوي، او څوک په چا باندې، زیات تر خلق پدې ګناه کښې مبتلا دي، او خبر نهٔ دي چې داسې کار کول دا په اسلام کښې څنګه دے؟ حقیقت دا دے چې سحر او جادو کول دا ګناهِ کبیره ده.

**د سحر او جادو اولنے ایجاد**

د سحر او جادو اولنے ایجاد شیطانانو کړے دے، د دې وجې نه په سحر کولو سره انسان شیطان ته نزدې کیږي؛ ځکه دا د شیطان عمل دے.

**د سحر تعریف**

سحر او جادو څهٔ ته وائي؟ "والسحر علم بألفاظ واعمال يتقرب بها الإنسان الى الشياطين تصير بها الشياطين مسخرات له فيعينونه على ما يريد وتؤثر تلك الألفاظ والأعمال في النفوس والأبدان بالأمراض والموت والجنون".[1]

"سحر دا په يَو داسې الفاظو باندې عمل حاصلول دي، داسې اعمال کول چې په هغې الفاظو او اعمالو انسان شیطان ته نزدې کیږي، او ددې سحر په وجه بیا شیطانان ددې انسان تابع شي چې دے ورباندې څهٔ کوي، نو هغوي به هغه د دهٔ دپاره کوي. لکه بعض خلقو پیریان ځان له تابع ګرځولي دي، بیا چې دے څهٔ غواړي نو هغه ورباندې کوي، دغه الفاظ دغه اعمال د انسان په نفس کښې هم اثر کوي، چا باندې چې دغه

(1) [التفسير المظهري: تحت آية سورة البقرة: 102].

سحر اوشي دغه کوډې اوشي، نو د هغهٔ بدن کښې نقصان پيدا شي بيمارۍ ورباندې راشي، مرګ پرې راشي، ليونتوب پرې راشي، دماغ ئې خراب شي". دا رنګه د هغهٔ په دماغو کښې وهم راځي، او دا د سحر هغه کارونه دي.

### د سحر نه انکار

بعض خلق وائي: سحر او جادو نشته. مسئله دا ده چې ابو بکر جصاص رحمه الله او نورو علماؤ ذکر کړي دي، چې د سحر حقيقت د اهل السنت والجماعت په نزد باندې شته سحر اثر کولے شي.[1]

### د علامه بغوي رحمه الله قول

"وَالسِّحْرُ وُجُودُهُ حَقِيقَةٌ عِنْدَ أَهْلِ السُّنَّةِ، وَعَلَيْهِ أَكْثَرُ الْأُمَمِ، وَلَكِنَّ الْعَمَلَ بِهِ كُفْرٌ".[2]

"سحر ددې حقيقت شته د اهل السنت والجماعت په نزد باندې، ليکن په سحر باندې عمل کول د سحر کار کول دا کفر دے. دا سحر کار کوې خو ليکن دا د کفر والا کار دے".

### مثالونه

بعض خلق وائي: نظر کار نهٔ کوې، وائي: خلق وائي چې دا شے د نظره شو، نو وائي: دا هسې دروغ وائي. تفسير قرطبي وائي: ددې نه انکار هغه خلق کوې چې هغوي جاهلان دي، چې علم ورسره نشته، نظر کار کوې، او بيا ئې حديث ذکر کړے دے، کهٔ د الله په عرش باندې څهٔ شي اثر کولے اول به پرې نظر کړے وے.

نبي عليه السلام فرمائي: «الْعَيْنُ حَقٌّ».[3]

---

(1) [أحكام القرآن].

(2) [تفسير معالم التنزيل: تحت آية سورة البقرة: 102].

(3) [رواه البخاري، رقم: (5740، و5944)، ومسلم، رقم: (2187، و2188)، والترمذي، رقم: (2061)، وأبو داود،=

"نظر حق دے، یعنې د انسان نظر لګي". د هغې نه سړے بیماریږي.

یَو روایت کښې راځي یَو صحابي لامبل بل صحابي ورته اوکتل، ورته وائي: څومره خائسته بدن دے، نو پهٔ هغه صحابي هغه ځائے کښې تبه (بخار) راغله، نبي ﷺ ته چا خبر را اولیږو، چې تاسو راشئ، فلانکے بیمار دے، وائي: ولې؟ وائي: دغسې چل اوشو، پیغمبر ﷺ ورغلے، او وې وئیل تاسو داسې وورور مسلمان ته ولې تکلیف رسوئ؟ چې تا لیدلے وے، نو تا به ددهٔ دپاره د برکت سوال کړے وے، "اللهم بَارِکْ فِیْهِ" به دې وئیلے وے، چې الله دهٔ له پدې بدن کښې خیر او برکت واچوې، نو بیا به دې نظر اثر نهٔ کولے، بیا نبي ﷺ هغهٔ ته اووئیل تهٔ غسل اوکړه، یا چار اندام اوکړه، نو چې کله پهٔ هغې اوبو سړے اولامبي، نو د هغهٔ نه د نظر هغه اثر ختمیږي.

بعض خلق نظر نهٔ مني، وائي: دا نظر پکښې چا را وستے دے؟ بعض خلق سحر او جادو نهٔ مني.

### د اهل السنت والجماعت مسلک

د اهل السنت والجماعت مسلک دا دے چې د سحر جادو اثر شته، خو دا خبره دہ چې د سحر کول کفر دے، سړے پرې د ایمان نه خلاصیږي.

### د سلیمان ﷺ زمانه

سلیمان ﷺ بادشاه وو، انسانان، پیریان او مارغان هر څهٔ ددهٔ تابع وو. کله چې سلیمان ﷺ وفات شو، شیطان د انسان پهٔ شکل کښې راغے، اول ئې یَو کتاب اولیکلو، د سحر او جادو، او د سلیمان ﷺ د تخت د لاندې ئې خخ کړو، او بیا ئې خلقو ته بیان شروع کړو، چې خلقو سلیمان ﷺ چې بادشاهي کوله، دا ئې پهٔ جادو باندې کوله، او

=رقم: (3879)، وابن ماجة، رقم: (3506)].

کۀ زما خبره نۀ منئ، نو د تخت د لاندې دا ځائے اولټوئ نو تاسو ته به خپله پته اولګي، خلقو چې هغه ځائے اولټولو، نو هغې کښې واقعې چې کتابونه ښخ وو، نو خلقو اووئيل: دا سليمان ﷺ چې بادشاه وو، پۀ انسانانو ئې هم بادشاهي وه، پۀ پيريانو ئې هم بادشاهي وه، او پۀ مارغانو ئې هم بادشاهي وه، دا خو دغه وجه وه، چې جادو ورسره وو، نو خلقو جادو زده کول شروع کړل. حقيقت دا وو، چې دا د شيطان يَو چال وو، سليمان ﷺ جادو کړ نۀ وو.

يَو حديث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: د اووۀ (7) هغه ګناهونو نه ځان اوساتئ! هغه ګناهونه چې سبب د هلاکت د انسان دپاره کرځي، هغه داسې ګناهونه دي چې د هغې د وجې نه انسان تباه کيږي، صحابه کرامو تپوس اوکړو، هغه اووۀ (7) کوم غټ غټ ګناهونه دي. رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل:

(1) «الشِّرْكُ بِاللهِ» يَو د الله سره شريک کرځول، دا لويه ګناه ده.

(2) «وَالسِّحْرُ» دويم سحر او جادو کول، دا لويه ګناه ده.

(3) «وَقَتْلُ النَّفْسِ الَّتِي حَرَّمَ اللهُ إِلاَّ بِالحَقِّ» دريم مسلمان بنده بغير د څۀ جرم نه وژل، دا لويه ګناه ده.

(4) «وَأَكْلُ الرِّبَا» څلورم د سود مال خوړل.

(5) «وَأَكْلُ مَالِ اليَتِيمِ» پنځم د يتيمانانو مال خوړل.

(6) «وَالتَّوَلِّي يَوْمَ الزَّحْفِ» ميدانِ جهاد کښې تيخته کول.

(7) «وَقَذْفُ المُحْصَنَاتِ المُؤْمِنَاتِ الغَافِلاَتِ» پۀ پاکدامنو مؤمنانو زنانو باندې بدنامه لګول.[1]

(1) [رواه البخاري: رقم: (2766)].

نو يَو ګناه پکښې دا وه جادو کول، نو دا لويه ګناه ده، او دومره لويه ګناه ده، چې سړے پرې د ايمان نه خلاصيږي.

### د ساحر حکم

### د امام ابو حنيفه رحمه الله مذهب

امام ابو حنيفه رحمه الله وائي: چې جادو ګر اونيولے شو، او سحر او جادو ئې کړے وو، ګواهان ورباندې پيش شول، يا هغهٔ پخپله اقرار اوکړو، نو هغه به وژلے شي، او توبه به ئې نهٔ شي قبلولے. خو دا زهٔ او تهٔ نهٔ شو وژلے، دا د مسلمان حاکم او بادشاه کار دے.

### د ابو بکر جصاص رحمه الله قول

عَنْ عَبْدِ اللهِ قَالَ: «مَنْ أَتَى كَاهِنًا أَوْ عَرَّافًا وْ سَاحِرًا فَصَدَّقَهُ بِمَا يَقُولُ فَقَدْ كَفَرَ بِمَا أُنْزِلَ عَلَى مُحَمَّدٍ ﷺ».[1] سيدنا عبد الله رضي الله عنه وائي: کوم سړے چې عرّاف ته راغے، (عرّاف هغه چا ته وائي چې د چا نه غلا شوې وي، او هغهٔ ته هغه غلا معلوموې، چې دا غلا درنه فلانکې سړي کړې ده) يا کاهن ته راغے (کاهن هغه سړي ته وائي چې يَو کار له شوے نهٔ دے، او دے وائي: چې صبا به داسې کار کيږي، يا پهٔ بل څهٔ معلومول کوي) يا ساحر سړي له راغے، هغه ورته سحر اوکړو، او هغهٔ ورته اووئيل: چې ذغسې به کيږي. او دهٔ پهٔ دې دريو واړو کسانو کښې د يَو کس تصديق اوکړو، چې آؤ، بالکل رشتيا وائي، نو دې سړي کفر اوکړو، پهٔ هغه کتاب کوم کتاب چې الله پهٔ رسول الله ﷺ باندې راليږلے دے. دا سړے کافر دے، چې د داسې غلطو خلقو تصديق کوي.

علامه تفتازاني ذکر کوي: "وكان في العرب كهنة يدعون معرفة الأمور فمنهم من كان يزعم أن له

(1) [رواه اللالكائي، في "شرح أصول اعتقاد أهل السنة والجماعة"، رقم: (1900)، والجصاص في أحكام القرآن، باب اختلاف الفقهاء في حكم الساحر وقول السلف فيه: 60/1، دار الكتب العلمية بيروت - لبنان-].

رئيا من الجن (أي: رفيقا) وتابعة يلقى إليه الأخبار، ومنهم من كان يزعم أنه يستدرك الأمور بفهمٍ أعطيه".[1]

بيا هغه ذکر کوې چې د داسې خلقو قتل پکار دے خو حاکمِ وقت به ئې قتل کوي.

دے وائي: سيدنا عبد الله هغه روايت نقل کوې، د نافع نه، هغه د عبد الله بن عمر ﷺ نه نقل کوې، چې د سيده حفصې ﷺ يَوه وينځه وه، چې هغې سحر او جادو کړے وو، نو د هغې هغه سحر ئې اوموندلو، بيا ئې د هغې نه تپوس اوکړو، چې دا جادو تا کړے دے؟ هغې ورته اووئيل: چې آؤ، ما کړے دے. اقرار ئې خپل ځان باندې اوکړو. نو سيده حفصې ﷺ عبد الرحمن بن زيد ﷺ ته اووئيل: چې دا قتل کړه، نو هغهٔ بوتله او قتل ئې کړه، چې کله ئې قتل کړه، نو د سيدنا عثمان ﷺ دورِ خلافت وو، چې هغهٔ ته پته اولګيده، نو هغه خفه شو، چې دا ئې ولې قتل کړې ده؟

علامه جصاص ليکي: چې هغهٔ پدې وجه نهٔ وو، خفه چې تا ولې قتل کړې ده، هغه پدې وجه خفه وو، چې زما د اجازت نه بغير دي ولې قتل کړې ده؟ يعنې حاکمِ وقت به ئې قتل کوې، داسې ساحر که سړے وي، او که ښځه وي. نو مسلمان بادشاه له پکار دې، چې داسې خلق د ملک نه ختم کړې، چې هغه خلقو له نقصان رسوې.

**د حسن بصري ﷺ قول**

ابو عاصم د اشعث نه ذکر کوي، هغه د حسن بصري ﷺ نه ذکر کوي: "يُقْتَلُ السَّاحِرُ وَلَا يُسْتَتَابُ".[2]

"ساحر سړے به وژلے کيږي، او د هغهٔ توبه به نهٔ شي قبلولے".

(1) [شرح العقائد].

(2) [أحكام القرآن للجصاص، باب اختلاف الفقهاء في حكم الساحر وقول السلف فيه: 60/1، دار الكتب العلمية بيروت لبنان–].

بیا وائي: «أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ أَخَذَ سَاحِرًا فَدَفَنَهُ إِلَى صَدْرِهِ ثُمَّ تَرَكَهُ حَتَّى مَاتَ».[1]

"عمر ﷺ يَو څل يَو ساحر اونيولو، او تر سينې پورې ورته كنده وكنستے شوه، تر سينې پورې ئې خخ كړو، بيا ئې پرېښودو، نو پۀ دغه حالت كښې هغه مړۀ شو. داسې د ذلت پۀ مرګ ئې مړه كړو". پۀ شريعت كښې د ساحرانو دا سزا ده.

بيا وائي: قيس بن سعد ﷺ دا پۀ يَو علاقه باندې امير وو، نو ددۀ چې كومه پټه خبره وه، او چې سحر (صُبح) به پاسيدو، نو هغه به ټول ملک كښې خوره وه، هغه پټ راز به ئې خوريدو، او خلقو له به رسيدو، وائي: دۀ معلومات كول چې زما دا رازونه څوک خوروي؟ زما د مشورې خلق امانتدار خلق دے، زما ملكرې خو دا خبرې نۀ خورې، چا ورته اووئيل: چې فلانكې ځائے كښې يَو جادو كر دے، او هغه ستا دا رازونه خلقو ته بيانوې، هغه جادو كر ئې را اوغوښتو، ورته ئې اووئيل: چې دا راته اووايه، چې دا رازونه تۀ خلقو ته څنګه ښكاره كوې؟ هغۀ ورته اووئيل: كله چې تاسو دا كتاب كولاؤ كړئ، نو مونږ چې ورته اوګورو، نو مونږ پرې پوهه شو، هغه پيرپانو وو، او چې كله بند وي، نو مونږ ورباندې نۀ پوهيږو، نو ددې وجې نه چې مونږ كله ستاسو دا كتاب اوګورو، نو بيا مونږ دا خلقو ته بيانوو، هغۀ هغه سړے اونيولو او قتل ئې كړو.[2]

اكثر پدې ميلو كښې داسې خلق ناست وي، چې پۀ مخ ئې كپړا خوره كړې وي، او تاته به وائي: ستا څۀ مقصد دے؟ ستا څۀ ضرورت دے؟ دا ولاړ كس ورته وائي: زما خو يَو كار دے، چې هغه به اوشي او كۀ نه؟ نو دے ورته وائي: ستا كار به اوشي. خبردار!!! د الله نه ما سيوا پۀ غيبو هيڅ څوک نۀ پوهيږي.

---

(1) [رواه عبد الرزاق في ومصنفه، رقم: (18755)].

(2) [أحكام القرآن للجصاص، باب اختلاف الفقهاء في حكم الساحر وقول السلف فيه: 60/1، دار الكتب العلمية بيروت -لبنان-].

## پیریان د سرکش انسان تابع وي

پیریان چې اکثر تابع کیږي، نو د هغه انسان تابع کیږي، چې هغه سرکش وي، او د پیریانو د تابع کیدو وظیفې چې څوک کوي، نو هغه اکثر شرکي الفاظ وائي، کله به درته وائي چې په حالت د جنابت کښې به گرځې، کله به درته وائي دومره ورځې به مونځونه نۀ کوې، چې اول دې د ایمان نه خلاص کړي، نو بیا به درسره دوي ملګرې شي. کله کله د صحیح سړي سره هم ملګرې شي، خو اکثر د سرکش انسان تابع کیږي. نو سحر او جادو ددې زده کول حرام دي.

نبي ﷺ فرمائي: «مَنْ عَقَدَ عُقْدَةً، ثُمَّ نَفَثَ فِيهَا فَقَدْ سَحَرَ، وَمَنْ سَحَرَ فَقَدْ أَشْرَكَ، وَمَنْ تَعَلَّقَ شَيْئًا وُكِلَ إِلَيْهِ».[1]

چا چې تار له غټه ورکړه، بیا ئې په هغې کښې پوکے اُوکړو، نو دغه سړي سحر اُوکړو، چا چې سحر او جادو اُوکړو، نو یقینًا دې سړي شرک اُوکړو، چا چې ځان له کوم شے زوړند کړو، نو دا سړے هغه شي ته اوسپارے شو.

پدې حدیث کښې لږ غور پکار دے، چې د الله پیغمبر ﷺ وائي: چې سحر ئې اُوکړو، نو دۀ شرک اُوکړو.

## صحیح دم

یَو صحیح دم دے، چې هغه د قرآن او حدیث نه ثابت دے، یا په هغه دعاګانو باندې چې هغه دعاګاني د احادیثو نه ثابت دي، نو دا دم جائز دے.

(1) [رواه النسائي، رقم: (4079)، و"السنن الكبرى"، رقم: (3528)، والطبراني في "المعجم الأوسط"، رقم: (1469)].

**(1) د سیدنا انس ﷺ روایت**

سیدنا انس ﷺ فرمائي: «رَخَّصَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرُّقْيَةِ مِنَ الْعَيْنِ، وَالْحُمَةِ، وَالنَّمْلَةِ».[1]

د الله پیغمبر ﷺ مونږ دپاره اجازت را کړے وو، چې مونږ دم اچوو د سترګو د نظر نه، یَو سړے د نظره شو، نو نبي ﷺ مونږ له د دم اجازت را کړے وو، دا رنګه یَو سړي باندې تبه (بخار) ده، نو نبي ﷺ مونږ له اجازت را کړے دے، چې هغهٔ باندې دم اچوو، یَو سړي باندې ننکئ او دانې دې نو نبي ﷺ مونږ له اجازت راکړے دے چې هغهٔ باندې دم واچوو. چې د قرآن او د سنتو نه ثابت وي، نو هغه دم جائز دے.

**(2) د سیده عائشه ﷺ روایت**

سیده عائشه ﷺ فرمائي: «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْمُرُهَا أَنْ تَسْتَرْقِيَ مِنَ الْعَيْنِ».[2]

سیده عائشه ﷺ فرمائي: چې د الله پیغمبر ﷺ مونږ له اجازت راکړے دے، چې یَو سړے د نظره شي، او مونږ پهٔ هغهٔ باندې دم واچوو. نو نبي ﷺ مونږ ته اجازت راکړے دے.

**(3) د امّ سلمٰی ﷺ روایت**

عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، ﷺ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى فِي بَيْتِهَا جَارِيَةً فِي وَجْهِهَا سَفْعَةٌ، فَقَالَ: «اسْتَرْقُوا لَهَا، فَإِنَّ بِهَا النَّظْرَةَ».[3]

د اُمّ سلمی ﷺ نه روایت دے، نبي ﷺ د هغې په کور کښې یَوه جینئ اولیده چې

---

(1) [راوه مسلم، رقم: (2196)، وأحمد في "مسنده"، رقم: (12282)].

(2) [راوه مسلم، رقم: (2195)، وابن حبان، رقم: (6103، و6109)].

(3) [رواه البخاري، رقم: (5739)، والبيهقي في "السنن الكبرى"، رقم: (19585)، والحاكم فی "المستدرك"، رقم: (7486)].

د هغې په مخ زیړے غوندې وو، نو نبي ﷺ اوفرمائیل: دا دم کړئ، پس یقینًا پدې باندې د نظر اثر دے.

دم چې د قرآن او سنت سره برابر وي، نو هغه مونږ منو، بعض خلق دم نۀ مني، وائي: پدې چپ چپ باندې څۀ کیږي؟ دم د قرآن کریم او د صحیح احادیثو نه ثابت دے.

**(4) د سیدنا عبد الله بن مسعود ﷺ روایت**

سیدنا عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «عَلَيْكُمْ بِالشِّفَاءَيْنِ: الْعَسَلِ وَالْقُرْآنِ».[1]

نبي ﷺ فرمائي: لازم دې په تاسو باندې علاج کول په دوو څیزونو باندې، چې هغه دواړه د شفاء نه ډک دي، یو ګبین دے او بل قرآن کریم دے. ګبین د شفاء دپاره استعمال کړئ، او بل د قرآن آیاتونه په دې سره به الله تاسو له شفاء درکوي؛ ځکه الله فرمائي: ﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ مَا هُوَ شِفَاءٌ وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ وَلَا يَزِيدُ الظَّالِمِينَ إِلَّا خَسَارًا﴾.[2]

رالیږو مونږ د قرآن کریم نه هغه آیاتونه چې هغه شفاء ده، او رحمت دے د مؤمنانو دپاره، قرآن کریم کښې شفاء ده، او نۀ زیاتوي ظالمانو لره مګر تاوان.

احادیثو کښې راځي: سیدنا عبد الملک بن عمیر ﷺ فرمائي: چې رسول الله فرمائي: «فِي فَاتِحَةِ الْكِتَابِ شِفَاءٌ مِنْ كُلِّ دَاءٍ».[3]

د سورت فاتحې لوستو کښې د هر مرض نه شفاء ده.

حدیث کښې راځي صحابه کرام ﷺ بهر وتلي وو، یو ځائے باندې تلل یو کافر

(1) [رواه ابن ماجة، رقم: (3452)، والبيهقي في "السنن الكبرى"، رقم: (19565)].

(2) [سورة الإسراء: 82].

(3) [رواه الدارمي في "سننه"، رقم: (3691)، والبيهقي في "شعب الإيمان"، رقم: (2154)].

لړم چيچلے وو، صحابه کرامو ﷺ نه ئې تپوس اُوکړو چې تاسو کښې څوک دم اچولو والا شته؟ چې ما باندې دم واچوي، صحابو ﷺ ورته اووئيل: آؤ، دم اچولو والا شته، خو هغې کافرانو صحابو ﷺ له ميلماستوب نۀ وو ورکړے، صحابو ﷺ ورته اووئيل: دم در باندې اچوو خو دومره کډې به موثر له راکوې، کډې ترې واغستې سورت فاتحه برې لوسته تردې چې هغه روغ شو، کډې ترې ځان سره راوستې، نو هغوي ووئيل دا نۀ خورو؛ ځکه مونږ پۀ قرآن باندې اغستل اُوکړل، نو چې دا به جائز وي او کۀ نه؟ نبي ﷺ ته راغلل، نبي ﷺ ورته اُووئيل تاسو چې پۀ کوم شي اغستل اُوکړل نو دا ډير زيات ښۀ وو، او نبي ﷺ ورته اُووئيل: چې ما له ترې هم راکړئ، نو معلومه شوه، چې سورت فاتحه کښې شفاء ده.

خو کۀ يَو سړے نور شرکي الفاظ وائي، نو دا دم جائز نۀ دے، ټول علماء د داسې دم خلاف دي.

بله خبره دا ده چې پښتو کښې دم اچول نشته، اکثر خلق چې دم اچوي، نو هغوي وائي: "پۀ دُرخۀ د فلانکي بابا، او پۀ دُرخۀ د فلانکي بابا" نو داسې دم نه ځان ساتل پکار دي، دا هم يَو قسم منتر دے، بعض خلق پۀ پښتو کښې د نظر دم اچوي نو هغوي د لارو کوڅو نۀ خسنړې راجمع کړي، وائي: "د سرو سترګو، د شنو سترګو، د تورو سترګو د فلانکي نظر مات" دا دمونه د ښځو کار دے، دا دمونه شريعت کښې نشته. کله داسې اُوکړې چې د ځان نه دم جوړ کړې ﴿وَمَآ أَنفَقْتُم مِّن نَّفَقَةٍ أَوْ نَذَرْتُم مِّن نَّذْرٍ فَإِنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُهُۥ وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ﴾[1]

وائي: دا د نظر دم دے، د نظر دم پۀ احاديثو کښې شته، پۀ قرآن کريم کښې صحيح

(1) [سورة البقرة: 270].

دمونه شته، او دلته په آیت کښې ﴿نَلْبِر﴾ لفظ راغلے دے، خو خلق وائي: دا د نظر دم دے، "نذر" منختې ته وائي. نو بهر حال هغه دم جائز نۀ دے، چې هغه پښتو کښې وي.

**د ملا علي قاري ﷫ قول:**

"إِنَّ الرُّقَى يُكْرَهُ مِنْهَا مَا كَانَ بِغَيْرِ اللِّسَانِ الْعَرَبِيِّ، وَبِغَيْرِ أَسْمَاءِ اللهِ تَعَالَى وَصِفَاتِهِ وكَلَامِهِ فِي كُتُبِهِ الْمُنَزَّلَةِ ".[1]

هغه دم مکروه دے چې هغه بغیر د عربۍ د ژبې نه وي، او هغه دمونه هم مکروه دي چې بغیر د الله د نوم نه وي، او بغیر د هغۀ د صفاتو نه وي، او دَ هغۀ دَ رالیږلے شوو کتابونو دَ کلام نه وي.

بعض مداریان چې کوم دم وائي، نو هغه نۀ عربي ده، نۀ پښتو ده، نۀ اُردو ده، هغه بل څۀ شے دے، داسې دم وئیل مکروه دي.

**تارونه دمول**

تارونه دمول، تارونو له غوټې ورکول، کونجکې دمول، او هغه غاړه کښې اچول دا هم مکروه دي. یَو حدیث کښې راځي سیده زینب ﷵ د عبد الله بن مسعود ﷛ بي بي ده، هغه فرمائي: زما په غاړه کښې یَو تار وو، هغه تار عبد الله بن مسعود ﷛ اولیدو، نو هغه راپاسیدو او هغه تار ئې زما د غاړې نه اوشلولو، او هغه ئې اوغورزولو، بیا ئې اوفرمائیل: اے د عبد الله بن مسعود د کور خلقه تاسو د شرک نه بالکل بچ یئ، تاسو ولې شرک کوئ؟ او بیا ئې اوفرمائیل: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ يَقُولُ: «إِنَّ الرُّقَى، وَالتَّمَائِمَ، وَالتِّوَلَةَ شِرْكٌ».[2]

(1) [مرقاة المفاتيح: 2869/7، طبع؛ دار الفكر، بيروت - لبنان].

(2) [رواه أبو داود، رقم: (3883)].

ما د نبي ﷺ نه اوریدلې دي، چې نبي ﷺ به فرمائیل: یقینًا دم اچول (دم نه مراد بغیر د الله د کتاب نه) او کونجکي اویزاندول.

"بعضې خلق د تمائم نه مراد هر څۀ اغستې دي، وائي: تعویذ غاړه کښې اچول گناه ده" تعویذ استعمالول جائز دي، خو هغه تعویذ چې هغې کښې د قرآن کریم آیاتونه وي، یا هغه دعاګانې وي، چې هغه د صحیح احادیثو نه ثابت وي.

حدیث کښې راځي سیدنا عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه فرمائي: چې نبي ﷺ فرمائي: چې کله يَو سړے په خوب کښې ویریږي، نو هغۀ دې دا کلمات اووئي: «أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّةِ، مِنْ غَضَبِهِ وَ عِقَابِهِ وَشَرِّ عِبَادِهِ، وَمِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِينِ وَأَنْ يَحْضُرُونِ».[1]

"پناه غواړم د الله کلِمو پورې چې هغه بالکل پوره دي، د الله د غضب نه د الله د ناکاره عذاب نه او د الله تعالی د ناکاره بندګانو نه او د شیطانانو د وسوسو نه، چې هغوي ماته راجمع شي. دا دعا دې اووائي".

وائي: عمرو بن العاص رضي الله عنه چې وو، د هغۀ چې کوم ځامن بالغان وو، نو خپلو بالغانو ځامنو ته ئې دا دعا یاده کړې وه، او چې د هغۀ کوم ځامن نا بالغه وو، ماشومان وو، هغوي نۀ شوه یادولے، نو دا دعا به ئې کاغذ کښې اولیکله او د هغۀ په غاړه به ئې اویزانده کړه، تعویذ به ئې ترې جوړ کړو، او د هغۀ په غاړه کښې به ئې واچولو.[2]

نو چې کوم خلق وائي: چې تعویذ اویزاندول شرک دے، نو عمرو بن العاص رضي الله عنه چې اویزان کړے وو.

(1) [رواه الترمذي، رقم: (3528)، أبو داود، رقم: (3893)].

(2) [تفسیر القرطبي: تحت آیة سورة الإسراء: 82].

د امام مالک رحمه الله قول

"لَا بَأْسَ بِتَعْلِيقِ الْكُتُبِ الَّتِي فِيهَا أَسْمَاءُ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ عَلَى أَعْنَاقِ الْمَرْضَى عَلَى وَجْهِ التَّبَرُّكِ بِهَا إِذَا لَمْ يُرِدْ مُعَلِّقُهَا بِتَعْلِيقِهَا مُدَافَعَةَ الْعَيْنِ".[1]

هيڅ ګناه نشته په زوړندلو د هغې تعويذونو کښې چې هغې کښې د الله د کتاب آياتونه ليکلي شوې وي، او د الله نومونه پکښې ليکلے شوې وي، نو کۀ مريض له ئې سټ کښې واچوې، نو څۀ ګناه پکښې نشته د تبرک دپاره، دا عقيده به دې نۀ وي، چې دا تعويذ به نظر دفع کوې، نو بيا شرک نۀ دے.

د امام مسيب رحمه الله قول

علامه قرطبي وائي: چې د امام مسيب رحمه الله نه چا تپوس اوکړو، چې غاړه کښې تعويذ اويزاندول څنګه دې؟ نو هغۀ ورته اوونئيل: "إِذَا كَانَ فِي قَصَبَةٍ أَوْ رُقْعَةٍ يُحْرَزُ فَلَا بَأْسَ بِهِ".[2]

"کله چې تعويذ په يو نَل کښې دے، يا په کاغذ کښې دے، او هغۀ د اوبو او د ګندګۍ نه بچ کولے شي، نو بيا د هغې غاړه کښې اويزاندول جائز دې".

د امام ضحاک رحمه الله قول

"أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ يَرَى بَأْسًا أَنْ يُعَلِّقَ الرَّجُلُ الشَّيْءَ مِنْ كِتَابِ اللهِ إِذَا وَضَعَهُ عِنْدَ الْجِمَاعِ وَعِنْدَ الْغَائِطِ".[3]

"يو سړے د قرآن کريم څۀ الفاظ غاړې ته اويزان کړې، نو هغې کښې ګناه نشته، خو چې کله ئې د جماع او د لويو بولو وخت کښې کيدي".

نو تميمه څۀ ته وائي؟ نو د تميمې معنٰی هغه کونجکې دې، چې د جهالت دور

(1) [تفسير القرطبي: تحت آية سورة الإسراء: 82].

(2) [تفسير القرطبي: تحت آية سورة الإسراء: 82].

(3) [تفسير القرطبي: تحت آية سورة الإسراء: 82].

كنبې به خلقو خپلو بچو ته زوړندولې. تفسير قرطبي معنى كوي: قَالَ الْخَلِيلُ بْنُ أَحْمَدَ: "التَّمِيمَةُ قِلَادَةٌ فِيهَا عُوَذٌ، وَالْوَدَعَةُ خَرَزٌ".[1]

تميمه هغې كونجكو ته وائي، هغې څيزونو ته وائي، چې عربو به د جهالت په دور كنبې خپلو بچو ته اويزاندول. اوس هم اكثر خلق داسې كوې، چې خپلو بچو ته كونجكې اچوې، پدې خيال چې دے به د نظر نه بچ شي، پدې خيال ماشومانو ته كونجكې اچول شرک دے. څوک ماشومانو ته خپو كنبې جرسونه اچوي. حديث كنبې راځي: «الْجَرَسُ مَزَامِيرُ الشَّيْطَانِ».[2]

"جرس د شيطان شپيلۍ ده". مسلمانانو له پكار دي چې د خپلو ماشومانو د لاسونو او خپو نه دا څيزونه اُوباسي.

**امام منذري رحمه الله قول**

"التَّمِيمَةُ يُقَالُ إِنَّهَا خَرَزَة كَانُوْا يُعَلِّقُوْنَهَا يَرَوْنَ أَنَّهَا تَدْفَعُ عَنْهُمُ الْآفَاتُ".[3]

تميمه دا هغه كونجكو ته وائي: چې هغوي به خپلو بچو ته زوړندولې، او د هغوي دا عقيده وه چې پدې باندې د هغوي نه مصيبتونه لرې كيږي، تعويذ ته تميمه نۀ وائي، او كۀ وائي نو پۀ يَو قول كنبې به وائي. خو هغه تعويذ چې هغه د الله د كتاب او د احاديثو د نبي ﷺ نه وي نو هغه زوړندول جائز دي.

**رسول الله ﷺ باندې د سحر اثر**

رسول الله ﷺ باندې سحر شوے وو، او رسول الله ﷺ ته پته نۀ وه. رسول الله ﷺ باندې چې كله سحر اوشو. حديث كنبې راځي نبي ﷺ فرمائي: زۀ د دين پۀ كارونو

(1) [تفسير القرطبي: تحت آية سورة الإسراء: 82].

(2) [رواه مسلم، رقم: (2114)].

(3) [الترغيب والترهيب: 157/4، طبع دار الكتب العلمية - بيروت].

کښې خو تهيک ووم، د دنيا په کارونو کښې داسې ووم، چې ما به يَو کار کړے وو، نو زما ذهن کښې به دا وو، چې ما دا کار نۀ دے کړے، او چې کله به مې يَو کار نۀ وو کړے، نو ما به اووئيل چې ما دا کار کړے دے، وائي: زۀ يَو شپه اودۀ ووم، (خو نبي ﷺ ته پته نۀ وه چې ما باندې چا جادو کړے دے) وائي: دې کښې دوه ملائکې راغلې، وائي: ملائکې وائي چې پدې سړي باندې چا جادو کړے دے، (د سړو په شکل کښې راغلې وي، او د نبي ﷺ صفت دا وو چې سترګې به ئې پټې وي، خو زړۀ به ئې بيدار وو) وائي: ملائکې يَو بل ته وائي: چې دا سړے بيمار دے، دۀ باندې چا جادو کړے دے، وائي: هغه يَوه ملائکې بلې ته ملائکې ته وائي: چې دا جادوورباندې چا کړے دے؟ وائي: دۀ باندې جادو لبيد بن اعصم، او د هغۀ لُوريانو کړے دے، دا تپوس ددې دپاره کوې، چې نبي ﷺ ته پته اولګې، هغه بله ملائکه ورته وائي: چې کوم ځائے پرې کړے دے، او کوم ځائے کښې پروت دے؟ هغه بله ملائکه ورته وائي: بئر زروان کښې پروت دے، بئر زروان کښې څۀ کښې پروت دے؟ وائي: د منکز (کمنز) په غاښونو کښې د نبي ويښتۀ ئې پکښې لګولې دې، نبي ﷺ چې راپاسيدو، صحابه کرام ﷺ ئې اوليږل چې تاسو لاړ شئ، تاسو بئر زروان کښې اوګورئ، چې هغوي راغلل، نو هغه منکز (کمنز) ئې را اُويستۀ او هغۀ ويښتۀ ئې هم را ويستل، صحابي ﷺ ذکر کوې چې مونږ لاړو، نو د هغې کوهې اُوبۀ تکې سپينې وې، ددې سحر او جادو د وجې نه زيړې شوې وې، لکه چې سړے پکښې د نکريزو کپړې او سر اووينځې، هغه منکز (کمنز) او ويښتۀ مو نبي ﷺ ته راوړل، او دا دوه سورتونه آخرې نازل شول، چې ﴿قُلۡ أَعُوذُ بِرَبِّ ٱلۡفَلَقِ﴾ او ﴿قُلۡ أَعُوذُ بِرَبِّ ٱلنَّاسِ﴾ يوولس آياتونه دې، او هغې له ئې يوولس غوټې ورکړې وې، نبي ﷺ يَو يَو آيت وائي، چې يوولس آياتونه ختم شول، يوولس غوټې کهولاؤ کړے شوې، د پيغمبر ﷺ بدن روغ شو.

نبي ﷺ باندې سحر شوے دے، نبي ﷺ ته پته نشته چې ما باندې چا سحر کړے دے، کله ئې کړے دے، او کوم ځائے کښې کیښودے دے، نو بل څوک پیر دے، بل څوک مُلا دے چې هغهٔ ته پته ولګي، چې فلانکي درباندې سحر کړے دے، دا تولې دهوکې دي.

## نبي ﷺ عالم الغيب نهٔ دے

رسول الله ﷺ عالم الغیب نهٔ دے، د نبي ﷺ بي بي ده، سیده عائشه ﷞ د نبي ﷺ سره پهٔ سفر کښې ده، د سیده عائشي ﷞ هار (امیل) اوشلیدو، او د هغې هار (امیل) دپاسه اوښ ناست دے، نبي ﷺ چې سید الانبیاء دے، او پته ورته نشته چې کوم ځائے پریوتے دے، نبي ﷺ پهٔ خپله هغه هار (امیل) پسې ګرځي.

## سیدنا ابو بکر صدیق ﷛ عالم الغیب نهٔ دے

سیدنا ابو بکر صدیق ﷛ چې صحابو کښې لوې مقام والا صحابي دے، چې د هغهٔ د صحابیت نهٔ څوک انکار کوې نو هغه سړے کافر دے؛ ځکه چې د هغهٔ صحابیت د قرآن نه ثابت دے؛ ځکه قرآن کښې راځي: ﴿إِذۡ هُمَا فِي ٱلۡغَارِ إِذۡ يَقُولُ لِصَٰحِبِهِۦ لَا تَحۡزَنۡ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَنَا﴾.[1]

ابو بکر صدیق ﷛ د نبي ﷺ صاحب او ملګرے دے. او کهٔ څوک ترې انکار کوې، نو سړے کافر کیږي، دومره لوې صحابي دے. لیکن ابو بکر صدیق ﷛ ته پته نشته، چې د سیده عائشي ﷞ هار (امیل) کوم ځائے کښې غورځیدلے دے، نور صحابه ورسره هم دي، خو هیچا ته پته نشته، د سیده عائشې ﷞ د غاړې نه هار (امیل) پریوتے دے، ام المؤمنین ده د مؤمنانو مور ده، پته ورته نشته د نبي ﷺ بي بي ده،

(1) [سورة التوبة: 40].

پته ورته نشته، چې کله روانیدل، او اوښ پاسیدو نو هار (امیل) د اوښ دلاندې وو.

**اوس ستا نه تپوس کوم!!!**

چې رسول الله ﷺ سردار د انبیاء علیهم السلام دے، هغهٔ ته د هار (امیل) پته نهٔ لګي چې خوا کښې ورسره ورک شوے دے، او د خپلې بي بي نه ئې ورک شوے دے، او پته ورته نشته، نو هغه سړي ته څنګه پته لګي؟ چې تهٔ د يَو کلي نه روان شې، او بل کلي ته ورپسې ځې، او تهٔ ورته وائي چې زما د کور نه بيګا چا غلا کړې ده، چې چا به کړې وي، تا ته څهٔ پته شته، نو ولې هغهٔ عالم الغيب دے؟ يا خو دا (تهٔ چې چاله ځې، او هغه تا ته وائي چې فلانکې طرف ته ئې بوتلې ده) نو پدې خبره خو هغه کافر دے؛ ځکه عالم الغيب خو يَو الله دے، او يا دا چې دا سړے پخپله غل دے، او يا دا چې دا سړے به د غلو ملګرے وي، دے به ورسره پدې غلا کښې شريک وي، چې دا څاروے فلانکې طرف ته بوځو؛ ځکه ده ته پته ده، هسې دهٔ ته څنګه پته اولګيده؟ چې دا شے فلانکې طرف ته تلے دے، دا صرف د پيسو دپاره چل دے، پدې طريقه ستا نه پيسې اخلي.

**د زنانو عمل**

کله چې د چا نه څهٔ شے ورک شي، نو وړوکے ماشوم راولي، او هغهٔ له لاس تور کړي، نو هغهٔ ته وائي ديکښې اوګوره چې دې کښې څوک شته؟ نو هغه ماشوم ورته وائي: آؤ، يَو سړے يا يَوه ښځه پکښې ښکاري، نو پهٔ تور لاس کښې به تهٔ څنګه څوک معلوم کړې، خو بس هسې څهٔ شکل غوندې ورله ښکاره شي، او پهٔ هغې ترې پيسې واخلي، او دے وائي دا هغه فلانکے وو، نو هغه پکښې هسې راولي، او هغه کار هغهٔ نهٔ وي کړے.

يَو حديث کښې راځي: «إِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِي مِنَ الإِنْسَانِ مَجْرَى الدَّمِ».[1]

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (2038، و3281)، ومسلم، رقم: (2174، 2175)، وأبو داود، رقم: (2470، 4719)،

"شیطان د انسان په بدن کښې رګونو کښې ګرځي، لکه څنګه چې وینه بدن کښې ګرځي". د انسان د زړهٔ حال معلومولے شي، د انسان په بدن د هغهٔ پوره تسلط دے.

نو چې کله د یَو انسان په زړهٔ کښې دا شک دے، چې زما نه غلا فلانکي سړي کړې ده، نو چې کله دے عرّاف (ترویټې، پالکر) له لاړ شي، نو هغهٔ سره خو پیریان تابع وي، نو هغهٔ ته وائي: زما نه چا څهٔ شے پټ کړے دے، چې دا به چا پټ کړے وي؟ تاسو ما دپاره کتاب اوګورئ، ولې پدې کښې د هغه غل نوم لیکلے شوے دے؟ چې دا فلانکي غلا کړې ده، دومره نا پوهه خلق دے، بیا وائي: چې کتاب ئې راکولاؤ کړو، نو د فلانکي نوم ئې پکښې را اوباسو، چې دا فلانکي پټ کړے دے، نو دا څیز فلانکي پټ کړے نهٔ دے، خو اصل وجه دا ده چې د هغهٔ سره پیریان تابع دې، نو ددې سړي زړهٔ کښې شک وي، چې دا شے زما نه فلانکي سړي پټ کړے دے. نو پیریانو خو د انسان په زړهٔ پوهیږي، نو دے ددهٔ د زړهٔ هغه خبره کوي، وائي: ستاسو کلي کښې یَو سړے دے داسې نوم ئې دے، نو دے وائي: آؤ، زما پوره پوره پدې سړي باندې شک وو، نو دے شک دا سړے تباه کړو، هغه شک ئې ورته ښکاره کړو، نو دے ورته پیسې ورکړې، او چې کلي ته راشي، نو د هغه سړي سره دشمني شروع کړي.

د پټو څیزونو علم خو صرف یَو الله ته دے، نو د سحر او جادو نه ځان ساتل پکار دي، دغه شان ماشومانو له تارونه زوړندول دا ناروا دي، او شرک دے. صحیح تعویذ چې قرآن او د احادیثو نه ثابت دعاګانې وي، نو د هغې اچول جائز دي.

خو پهٔ نن دُور کښې د هغې نه هم ځان ساتل پکار دي؛ ځکه د اکثرو خلقو عقائد خراب دي، د ثواب پهٔ ځائے پهٔ ګناه کښې مبتلا شي.

---

.[4994

### د خلقو خراب عقائد

بعضې خلق داسې کوي، چې هغوي د خپلو کورونو مخې ته سپیاکې کېدې په دې خیال چې پدې به د خلقو نظر لګي او زمونږ کور به نهٔ د نظره کیږي، نو دا شرک دے.

بعضې خلق د څاروو ښکر راوړي، او هغه د خپلو کورونو په دروازو باندې اودروي، نو ددې سرې دا خیال وي چې دا به زما د کور نه نظر دفع کوي.

نو ستا نظریه خو هغه شان شوه، څنګه چې د هغه خلقو عقیده وه چې هغوي د غُوا عبادت کولو، چې د غوا ښکر به زمونږ د کور نه نظر لرې کوي، او دا ددې دپاره چې اول نظر به پدې ښکر باندې لګي، بیا به کور باندې لګي، نو بیا به نظر کور ته نقصان نهٔ ورکوي.

او دا خو ډیره بے کاره عقیده ده، چې اول نظر به پهٔ ښکر لګي او بیا به کور باندې لګي، خلق خو اول ښهٔ شي ته ګوري، او چې تا پرې ښکرونه لګولي دي، نو خلق به وائي: چې څومره ښکلې ښکله ده، خو پدې ښکرونو ئي شرمولې ده.

د بعضې خلقو دا عادت دے، چې هغوي زړې کتوئ د خپل کور دپاسه کېدي، وائي: ددې سره نظر دفع کیږي، دا ګنده څیزونه چې د کور نه لرې کړي، نو ان شاء الله چې بیماریٔ به درکره ختمې شي.

صرف د الله پهٔ ذات عقیده جوړه کړه، څومره چې دې د الله پهٔ ذات اعتماد وي، دومره به دې الله د هر شر او فساد نه بچ کوي، او څومره چې د هر شي نه یریږې نو دومره به هر مصیبت کښې مبتلا کیږې.

### د عمران بن حصین ﷺ روایت

قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَيْسَ مِنَّا مَنْ تَطَيَّرَ أَوْ تُطُيِّرَ لَهُ، أَوْ تَكَهَّنَ أَوْ تُكُهِّنَ لَهُ، أَوْ سَحَرَ أَوْ سُحِرَ لَهُ، وَمَنْ عَقَدَ عُقْدَةً - أَوْ قَالَ: مَنْ عَقَدَ عُقْدَةً - وَمَنْ أَتَى كَاهِنًا

فَصَدَّقَهُ بِمَا يَقُولُ فَقَدْ كَفَرَ بِمَا أُنْزِلَ عَلَى مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». [1]

نبي ﷺ وئیلي دي: هغه سړے زما اُمتي نهٔ دے، چې هغهٔ پهٔ څهٔ شي باندې بدفالي اونیوله، یا د هغهٔ دپاره بدفالي اوکتلے شوه، چا خپل فال اوکتو، یا څوک خلقو له فال کوري، او چا له چې فال کوري، دا دواړه زما اُمتیان نهٔ دي، او نبي ﷺ فرمائي: هغه سړے زما اُمتي نهٔ دے چې هغه کهانت اُوکړو، چې خلقو ته وائي: چې صبا به داسې کیږي، او بله ورځ به داسې کیږي، او چې چا دپاره ئې کوي، نبي ﷺ فرمائي: دغه هم زما اُمتي نهٔ دے، یا ئې جادو اُوکړو، او یا چې د چا دپاره جادو لیکلے کیږي، نبي ﷺ فرمائي: دا زما اُمتیان نهٔ دي.

او بیا نبي ﷺ فرمائي: کوم سړے چې کاهن او نجومي له راغے، او د هغهٔ تصدیق ئې اُوکړو، نو دې سړي پهٔ هغه کتاب باندې کفر اوکړو، کوم کتاب چې پهٔ نبي ﷺ باندې نازل دے.

**د سیدنا عبد الله بن عباس رضي الله عنهما روایت**

قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «ثَلَاثٌ مَنْ لَمْ يَكُنْ فِيهِ، فَإِنَّهُ يَغْفِرُ لَهُ مَا سِوَى ذَلِكَ، لِمَنْ يَشَاءُ اللهُ: مَنْ مَاتَ لَا يُشْرِكُ بِاللهِ، وَمَنْ لَمْ يَكُنْ سَاحِرًا يَتَّبِعُ السَّحَرَةَ، وَمَنْ لَمْ يَحْقِدْ عَلَى أَخِيهِ». [2]

نبي ﷺ فرمائیلي دي: درې څیزونه داسې دي، چې چا کښې یَو هم نهٔ وي نو الله به ورته ما سیوا ګناهونه معاف کړي، او کهٔ پدې درې واړو ګناهونو کښې یَو ګناه کوي، نو دا سړے جهنمي دے، یَو کوم سړے چې مړ شو، او د الله سره ئې شریک نهٔ دے پیدا کړے، نو الله به ئې معاف کړي، دویم چې ساحر نهٔ دے، سحر او جادو نهٔ کوي، نو الله به ئې معاف کړي، او کهٔ سحر جادو کوي، نو الله ئې نهٔ معاف کوي،

(1) [رواه البزار في "مسنده"، رقم: (3578)].

(2) [رواه الطبراني في "المعجم الأوسط"، رقم: (5230)].

دریم خپل رور مسلمان سره بغض او حسد نهٔ کوي، نو الله به ئې معاف کړي، او کهٔ د مسلمان سره بغض او حسد کوي، نو الله ئې نهٔ معاف کوي.

نو سحر کول گناهِ کبیره ده، او چې څوک ساحر له ځي، نو هغه هم گناهگار دے، کوم سړے چې تصدیق کوي، نو هغه هم گناهگار دے.

**خلاصه دا ده**

دم اچول جائز دي، خو هغه دم چې د قرآن او سنت نه ثابت وي، کوم دم چې د قرآن او سنت نه ثابت نهٔ وي، نو د هغې دم نه ځان ساتل پکار دي، پښتو، اُردو او انګلش وغیره کښې دم نشته، بغیر د عربۍ نه نورو ژبو کښې دم نشته.

بعضې خلق وائي: زهٔ هډو جادو نهٔ منم، نو اهل السنت والجماعت وائي: چې د سحر او جادو اثر شته.

نجومیان د دوي دا کار هم د کفر دے. نبي ﷺ فرمائي: کوم سړے چې د نجوم والا کار کوي دا سړے هم کافر دے.

**د سیدنا قتاده رحمه الله قول**

د سیدنا قتاده رحمه الله قول امام بخاري رحمه الله ذکر کړے دے، چې ستورې الله د دریو فائدو دپاره پیدا کړې دي، دا درې فائدې پکښې اولټوئ، ددې نه ما سیوا نورې فائدې پکښې مهٔ لټوئ.

**د ستورو درې فائدې**

(1) یَوه فائده د ستورو د آسمان خائست دے، لکه قرآن کریم کښې الله تعالی فرمائي: ﴿وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيحَ﴾.[1]

(1) [سورة الملك: 5].

"په تحقیق سره خائسته کړے دے مونږه آسمان نزدې په ستورو باندې".

(2) دویمه فائده د ستورو شیطانان پرې ویشتلے شي، لکه قرآن کریم کښې الله تعالى فرمائي: ﴿وَجَعَلْنَاهَا رُجُومًا لِلشَّيَاطِينِ﴾.[1]

"او کرځولې دي مونږه دا ستورې ویشتل دپاره د شیطانانو".

(3) دریمه فائده د ستورو خلق پرې لارې معلوموي، لکه قرآن مجید کښې الله فرمائي: ﴿وَعَلَامَاتٍ وَبِالنَّجْمِ هُمْ يَهْتَدُونَ﴾.[2]

"نورې ډیرې نښې دې د الله د قدرت، او ستورو باندې دوي لار معلوموي". دا درې طریقې جائز دي، د دې نه علاوه په ستورو کښې تاثیر ګڼړل ناروا دي.

**د زمیندارو عقیده**

اکثر زمینداران وائي: چې فلانکے ستورے را اوخیژي، نو باران به کیږي، دا عقیده ساتل صحیح نه دي.

حدیث کښې راځي، يَو شپه باران وشو، سحر نبي ﷺ صحابو ته وائي چې الله وائي: زما بندګانو کښې دوه قسمه خلق دي: يَو مسلمانان او بعض کافران شول، نو الله وائي: ما باران اُوکړو، نو بعضِ خلقو اووئيل: «مُطِرْنَا بِفَضْلِ اللهِ وَرَحْمَتِه».[3]

"مونږ باندې د الله په فضل باندې باران اوشو". او بعض خلقو دا اووئيل: چې دا فلانکے ستورے را اوختو نو باران اوشو. د هغوي دا عقیده وه، چې دا باران ددې

---

(1) [سورة الملك: 5].

(2) [سورة النحل: 16].

(3) [رواه البخاري، رقم: (846، و1038)، ومسلم، رقم: (71)].

ستورې د راختو په وجه کيږي. نو دا عقيده د کفر او شرک ده. دا عقيده اوساته چې باران صرف يو الله کوي ﴿وَهُوَ الَّذِي يُنَزِّلُ الْغَيْثَ﴾.[1]

"الله هغه ذات دے چې باران را ورروي". نو ستورو کښې تاثير ګنړل ګناه ده. نو بهر حال د سحر او جادو نه ځان ساتل پکار دي. الله دې مونږ له د عمل کولو توفيق راکړي.

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



(1) [سورة الشورى: 28].

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ ۚ وَحَسُنَ أُولَٰئِكَ رَفِيقًا

(سورة النساء: 69)

# موضوع

# نبي ﷺ سره د صحابو مينه

بمقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# نبی ﷺ سره د صحابو مینه

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِه اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدَهٗ وَرَسُوْلَهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ الله الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿قُلْ إِنْ كَانَ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ وَإِخْوَانُكُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَالٌ اقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَاكِنُ تَرْضَوْنَهَا أَحَبَّ إِلَيْكُمْ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَجِهَادٍ فِي سَبِيلِهِ فَتَرَبَّصُوا حَتَّى يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ﴾.[1]

وقال الله تبارك وتعالى: ﴿وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَحَسُنَ أُولَئِكَ رَفِيقًا﴾.[2]

عزتمندو مسلمانانو رونړو محبت د رسول الله ﷺ سره دا پهٔ هر مسلمان باندې لازم او واجب دے، چې سړے به د خپل پیغمبر ﷺ سره مینه او محبت ساتي، او دغه وجه ده، چې هغه پیغمبر چې د هغهٔ سره محبت کول هغه هم سبب د کامیابۍ دے، او سبب د بچ کیدو د الله د عذاب نه دے، محبت د نبي علیه السلام سره هغه جدا حیثیت لري، او محبت د

(1) [سورة التوبة: 24].

(2) [سورة النساء: 69].

نبي ﷺ د سنت طريقې سره هغه جدا حيثيت لري، کامل ايمان دا دے چې يَو سړے محبت د الله د پيغمبر سره هم ساتي، او د هغهٔ د سنت طريقې سره هم محبت ساتي، او کهٔ د خُلې دعوىٰ دا وي چې زما د الله او د الله د پيغمبر سره مينه ده، او د هغهٔ پهٔ سنت طريقې عمل نهٔ کوي، نو دا صرف د خُلې وينا ده، او ددې دپاره څهٔ اعتبار نشته.

**د نبي ﷺ سره د صحابو محبت**

يَو حديث کښې راځي، يَو صحابي راغلو، او نبي ﷺ ته وائي: د الله محبوب پيغمبره تهٔ ما ته زما د نفس نه هم ډير زيات محبوب ئې، ما ته دا خپل نفس دومره محبوب نهٔ دے، لکه څومره چې راته تاسو محبوب او خوښ يئ، او بيا ورته وائي: د الله پيغمبره تهٔ ما ته د خپل اولاد نه هم ډير محبوب ئې.

د انسان د خپل اولاد سره ډيره زياته مينه وي؛ ځکه دا د انسان د بدن ټکړه وي.او حديث کښې تير شوې وو، چې اولاد د زړهٔ ميوه ده، چې کله فرشتې راشي، او د انسان د نابالغه بچي نه روح اخلي، پهٔ وړوکي بچي دمور پلار زړهٔ درد کوي، نو الله ملائکو ته وائي: «قَبَضْتُمْ ثَمَرَةَ فُؤَادِهِ» تاسو خو زما د بنده د زړهٔ ميوه اوشوکوله، نو زما هغه بنده څهٔ اووئيل؟ نو چې بنده صبر کړے وي، او ملائکو د هغهٔ هغه حمد وثناء اوريدلې وي، نو ملائک وائي: الله ستا حمد وثناء ئې اووئيله، او دا ئې اووئيل چې: «إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ» "مونږ هم د الله يُو او الله ته به واپس کيږو"، نبي ﷺ فرمائي: الله ملائکو ته وائي: چې تاسو ګواه شئ، چې ما د هغې خپل بنده دپاره پهٔ جنت کښې يَوه بنګله جوړ کړه، او ما هغې له "بيت الحمد" نوم کيخودو.

نو مقصد مې دا وو، چې بچے د انسان د زړهٔ ميوه ده. ليکن هغه صحابي نبي ﷺ ته اووئيل: زما د نفس او زما د اولاد نه هم ما ته محبوب ئې. يَو زما او ستا خبره ده، چې زړهٔ کښې يَو څهٔ وي، او پهٔ خُلهٔ بل څهٔ وي، يَو د صحابه کرامو خبره به وه، چې زړهٔ

کښېږي به څۀ وو نو هغه به په خُلهٔ باندې هم وو.[1]

بيا هغه صحابي نبي ﷺ ته وائي: د الله پيغمبره کله کله زۀ کور ناست يم، د خپلې ښځې او د خپل اولاد سره، نو چې تاسو راته را ياد شئ، نو بيا زۀ نور صبر نۀ شم کولے، نو د کور نه را بهر شم، او ستاسو ملاقات له راشم، نو چې ستا ملاقات اُوکړم، نو زما زړۀ صبر شي، نو چې کله زۀ سوچ اُوکړم، او خپل مرګ ياد کړم، او ستا مرګ ياد کړم، نو زۀ پدې پوهيږم، کۀ چرته زۀ جنت له دننه شوم، نو ستاسو مقام ته خو زۀ نۀ شم رسيدلے؛ ځکه ستاسو مقام ډير اوچت دے، وائ زۀ ډير پريشانه يم، چې زما به تا سره جنت کښې ملاقات نۀ کيږي.[2]

جنت کښې الله د انسان تمام ارمانونه پوره کوي، ليکن هغه صحابي دا نۀ وائي: چې جنت ته لا ړ شم، نو بيا پۀ نبي ﷺ باندې څۀ کوم، هغه ټول نعمتونه ئې شاته کړي دي، او دا سوچ ئې دے، چې جنت ته به لاړ شم، خو د نبي ﷺ سره به مې ملاقات نۀ کيږي؛ ځکه د هغۀ مقام به اوچت وي، او زما مقام به ښکته وي، نبي ﷺ خاموش شو، جواب نۀ ورکوي؛ ځکه د ځان نه خبرې نۀ کوي، الله فرمائي: ﴿وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ﴾.[3]

"دا پيغمبر د خپل ځان نه خبرې نۀ کوي، دے چې تاسو ته کومه خبره کوي دا د الله د طرف نه دۀ ته وحې شوې ده"

او دے خلقو ته بيانوي. نو نبي ﷺ جواب نۀ ورکوي، پدې کښې جبريل امين ﷺ راغلے، نو دا آيت کريمه ئې راوړو: ﴿وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ

---

(1) [رواه الترمذي، رقم: (1021)].

(2) [رواه الطبراني في "المعجم الأوسط"، رقم: (477)].

(3) [سورة النجم: 3-4].

﴿...أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَحَسُنَ أُولَٰئِكَ رَفِيقًا﴾.[1]

"چا چې د الله او د الله د پیغمبر تابعداري اُوکړه، دا کسان به الله د هغه کسانو سره ملګري کوي چې الله په هغوي باندې نعمتونه کړي دي، چې هغه انبياء عليهم السلام، صديقين، شهداء او صالحين رحمهم الله دي، د هغوي صف کښې به ولاړ وي".

هغه صحابي چې دا آيت واوريدو نو ډير زيات خوشحاله شو. صحابه کرام وائي: مونږ پدې آيت دومره خوشحاله شو، چې دومره مونږ په بل څۀ نۀ يو خوشحاله شوې.

**د نبي ﷺ فرمان**

«إِنَّهُ مَنْ أَحْيَا سُنَّةً مِنْ سُنَّتِي قَدْ أُمِيتَتْ بَعْدِي» چا چې زما يَو سنت ژوندے کړو، چې خلقو په هغې باندې خاورې اړولې وي، خلقو پريښودے وو، دغه انسان هغه طريقه بيا ژوندې کړه، نبي ﷺ فرمائي: زۀ او دغه انسان د دوو ګوتو په شان به روان يو، داسې به يَو بل سره نزدې يو لکه دا دوه ګوتې.[2]

**د نبي ﷺ سره د محبت فائده**

نبي ﷺ فرمائي: «مَنْ أَحْيَا سُنَّتِي فَقَدْ أَحَبَّنِي، وَمَنْ أَحَبَّنِي كَانَ مَعِي فِي الجَنَّةِ» چا چې زما سنت ژوندے کړو، او زما د طريقې سره ئې مينه اوکړه، دې انسان زما سره محبت اُوکړو، او چا چې ما سره محبت اُوکړو دا انسان به جنت کښې ما سره ملګرے وي.

ليکن نن د مسلمان په حال باندې افسوس دے، چې په خُلۀ دعوٰی کوي چې زمونږ د پيغمبر سره مينه ده، ليکن کارونه ئې د پيغمبر د طريقې خلاف دي، د نبي ﷺ په سنت ورته ځان بد ښکارې، د هغۀ په سنتو ورته ځان سپک ښکارې، د هغۀ د سنتو سره ئې محبت نشته، بلکه د غير د طريقو سره ئې مينه ده، او په هغې ورته ځان ښۀ ښکاري.

---

(1) [سورة النساء: 69].

(2) [رواه الترمذي، رقم: (2677)].

## نبي ﷺ نه د قيامت باره کښې تپوس

يَو صحابي راغلو، او رسول الله ﷺ نه تپوس کوې «مَتَى السَّاعَةُ؟» "قيامت به کله وي؟" نبي ﷺ جواب نهٔ ورکوې؛ ځکه د قيامت پته چا ته نشته، او نبي ﷺ عالم الغيب نهٔ دے، نبي ﷺ هغه صحابي ته وائي: «وَمَاذَا أَعْدَدْتَ لَهَا» "تهٔ چې زما نه د قيامت تپوس کوې، نو تا د قيامت دپاره څهٔ تيارے کړے دے؟" هغهٔ صحابي ورته وائي: «لاَ شَيْءَ» "هيڅ تيارے مې نهٔ دے کړے"، دا د صحابه کرامو عاجزي وه، چې شپه او ورځ به عبادت کښې مشغول وو، جهاد به ئې کولو، ليکن سره د هغې به ورته خپل عبادت څهٔ نهٔ ښکاره کيدلو، نو هغه صحابي وائي: نور مې څهٔ عمل نهٔ دے کړے، صرف يَو کار مې کړے دے «إِلاَّ أَنِّي أُحِبُّ اللهَ وَرَسُولَهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» "ليکن زما د الله او د الله د پيغمبر ﷺ سره ډيره مينه ده". نبي ﷺ ورته وائي: «أَنْتَ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ» "د قيامت پهٔ ورځ به تهٔ د هغه چا سره ئې، چا سره چې ستا دنيا کښې مينه او محبت وو."[1]

سيدنا انس ﷺ فرمائي: مونږ پهٔ يَو جمله دومره نهٔ يو خوشحاله شوې، څومره چې پدې جمله خوشحاله شوې وو؛ ځکه د هر يَو صحابي د الله سره او د الله د پيغمبر ﷺ سره مينه وه. نو هغوي وئيل: چې مونږ به الله د خپل پيغمبر سره يَوځائے کوې.

## نبي ﷺ سره د سيدنا ابو ذر غفاري ﷺ محبت

سيدنا ابو ذر غفاري ﷺ فرمائي: چې ما نبي ﷺ ته اووئيل: چې اے د الله د پيغمبره ﷺ! «الرَّجُلُ يُحِبُّ الْقَوْمَ، وَلاَ يَسْتَطِيعُ أَنْ يَعْمَلَ كَعَمَلِهِمْ» "د هغه سړي باره کښې راته جواب راکړه، چې د هغهٔ د يَو قوم سره مينه او محبت شته، ليکن دومره طاقت ئې نشته چې د هغوي پهٔ شان عمل اوکړي" نبي ﷺ پرې پوهه شو، چې ددهٔ خو دا مطلب

(1) [رواه البخاري، رقم: (3688، و6171، و7153)، ومسلم، رقم: (2639)].

دے، چې زما تا سره مينه ده، دے ما يا دوي، خو ستا په شان عمل نه شم کولے، نو څنګه چل به وي؟ نبي فرمائي: «أَنْتَ يَا أَبَا ذَرٍّ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ» "اے ابو ذره! ته به په ورځ د قيامت د هغه چا سره ئې، چې چا سره ستا مينه ده".

سيدنا ابو ذر غفاري ﷺ بيا تپوس کوي، چې اے د الله پيغمبره صحيح جواب راته راکړه، چې د يَو سړي د چا سره مينه ده، خو د هغهٔ په شان عمل نهٔ شي کولے، نبي ﷺ ورته فرمائي: «أَنْتَ يَا أَبَا ذَرٍّ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ» "اے ابو ذره! ته به د قيامت په ورځ د هغه چا سره ئې، چې چا سره ستا مينه او محبت وو، نو چې د چا د الله د پيغمبر ﷺ سره محبت وي، د قيامت په ورځ به د نبي ﷺ سره وي.[1]

**د سيدنا طلحه بن براء ﷺ محبت**

سيدنا طلحه بن براء ﷺ چې کله به د نبي ﷺ سره ميلاؤ شو، پس شروع به شو، چې د الله د پيغمبر ﷺ سره به ئې خپل ځان جوختولو، او د الله د پيغمبر خپې به ئې ښکولولې. داسې مينه ئې وه د الله د پيغمبر ﷺ سره.

يَو ځل نبي ﷺ ته فرمائي: «يَا رَسُولَ اللهِ مُرْنِي بِمَا أَحْبَبْتَ وَلَا أَعْصِي لَكَ أَمْرًا».

"د الله پيغمبره ما ته اووايه څهٔ چې ستا خوښه وي، حکم راته ته کوه، زهٔ به ستا د خبرې خلاف نهٔ کوم".

سيدنا طلحه ﷺ د ځوانئ دور کښې وو، نبي ﷺ د هغهٔ هغه محبت ته حيران وو، چې دې نوجوان ته اوکوره، او ددهٔ دې محبت ته اوکوره، نبي ﷺ د هغهٔ امتحان اغستو چې ددهٔ ما سره مينه شته او کهٔ نه، نبي ﷺ ورته وائي: «اذْهَبْ فَاقْتُلْ أَبَاكَ» "څه لاړ شه، او خپل پلار مړ کړه، او قتل ئې کړه"، «فَخَرَجَ مُوَلِّيًا لِيَفْعَلَ» "هغه روان شو، چې لړ

(1) [رواه ابو داود، رقم: (5126)].

مخکښې لاړو" نبي ﷺ ورته اوونیل: راشه، چې کله راغلے، نبي ﷺ ورته وائي: پلار مه وژنه «فَإِنِّي لَمْ أُبْعَثْ بِقَطِيعَةِ رَحِمٍ».[1] "زهٔ خو الله ددې دپاره نهٔ يم راليږلے، چې زهٔ په خلقو د هغوي رشته دارئ ختمې کړم". دا خو مي ستا محبت کتلو.

يو حديث کښې راځي، سيدنا طلحه ﷺ يو ځل بيمار شو، «فَأَتَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُهُ» "نبي د هغهٔ تپوس له راغلو" داسې وخت وو، چې ژمے وو، وريځ وه، کله چې نبي ﷺ را اوتلو، نو نبي ﷺ د هغهٔ د کور خلقو ته وائي، زما په خيال زما خو دا ګمان دے، چې سيدنا طلحه باندې د مرګ علامات شروع دي، او وفات کيږي، خو چې کله دے وفات شي، نو ما له به خبر راکوئ، چې زهٔ پرې جنازه اُوکړم، کله چې نبي ﷺ د سيدنا طلحه د کور نه روان شو، نو د سيدنا طلحه کور د نبي ﷺ د کور نه لرې وو، نبي ﷺ د بني سالم علاقې ته رسيدلے وو، چې سيدنا طلحه ﷺ وفات شو، او د شپې وخت وو، سيدنا طلحه ﷺ چې وفات کيدو، نو هغهٔ دا وصيت کړے وو، چې شپه ده کهٔ زهٔ وفات شوم، تاسو به نبي ﷺ نهٔ خبروئ، (او صحابه کرامو داسې نهٔ کول چې ماسخوتن وفات شوے دے، او صبا لَس بجې به ئې جنازه وي، چې تول خلق ورته راشي. دا د شريعت خلاف کار دے، نبي ﷺ فرمائي: کله چې يو سړے وفات شي، نو مسلمانانو له پکار نهٔ دي، چې د مړهٔ مسلمان بدن کور کښې حصار کړي. نبي ﷺ فرمائي: جنازې باندې تلوار کوئ، کهٔ نيک عمله انسان دے، نو زر ئې ورسوئ، او کهٔ بدعمله انسان وي نو دا خو شر دے، د خپلو اوګو نه ئې لرې کړئ) نو طلحه ﷺ اوفرمائيل: کهٔ زهٔ وفات شوم، ما به د شپې دفن کوئ، نبي ﷺ به نهٔ خبروئ، ما به خپل رب ته زر رسوئ. کله چې هغهٔ وفات شو، شپه وه، صحابو اوونيل: چې دهٔ خو وصيت هم

(1) [رواه الطبراني في "المعجم الكبير"، رقم: (3554)].

کړے دے، چې ما دفن کړئ، د الله پیغمبر ﷺ ته مه وایئ، صحابو دفن کړو، سحر چې نبي ﷺ راغلے تپوس ئې اوکړو، چې بیګا سیدنا طلحه باندې شپه څنګه وه؟ چا ورته اووئیل: چې د الله پیغمبره سیدنا طلحه خو وفات شوے دے، او د شپې مونږ دفن کړے دے، نبي ﷺ اودریدو، او د هغهٔ په قبر ئې جنازه کوله.

دا جنازه ئې ولې کوله؟ مسئله دا ده: چې وارث په مړي جنازه نهٔ وي کړې، هغهٔ بیا دوباره جنازه کولے شي، او چې وارث جنازه کړې وي، نو بیا دوباره جنازه نهٔ کیږي.او نبي ﷺ خو د تمامو امتیانو وارث دے، نبي ﷺ د هغهٔ په قبر جنازه کوله، صحابو کرام وریسې دي، لاسونه ئې اوچت کړي دي، او دعا غواړي: «اللّٰهُمَّ الْقَ طَلْحَةَ يَضْحَكُ إِلَيْكَ وَتَضْحَكُ إِلَيْهِ» "یا الله د طلحه سره داسې طریقې سره ملاقات اوکړه، چې هغه تاته خاندي، او تهٔ هغهٔ ته خاندې".[1] داسې ترې رضا شه. وجه څهٔ ده؟ بل روایت کښې راځي، دا هغه سړے وو، چې د الله سره او د الله د پیغمبر ﷺ سره ئې ډیره مینه وه، دا د هغه محبت اثرات وو.

## د عبد الله بن خزافه رضي الله عنه محبت د نبي ﷺ سره

نبي ﷺ ته یَو صحابي راغلے، ورته وائي: اے د الله پیغمبره! عبد الله بن خزافه رضي الله عنه داسې انسان دے، چې هر وخت توقې کوي، تهٔ ورته اووایه، چې ډیرې خبرې او توقې نهٔ کوي، نبي ﷺ ورته اوفرمائیل: «فَإِنَّ لَه بِطَانَةً يُحِبُّ اللهَ وَرَسُوْلَه» "هغه پریدوئ د هغهٔ یَو پټ راز دے د الله سره او د الله د پیغمبر سره ئې ډیره مینه ده" د هغې مینې په وجه تاسو هغهٔ ته څهٔ مهٔ وایئ. یَو حدیث کښې راځي: یَو صحابي دے عبد الله ذُو الْبِجَادَيْن. (وجه تسمیه ئې دا ده، چې دے کله مسلمان شو نو تره یعني کاکا ئې ورته

(1) [رواه الطبراني في "المعجم الكبير"، رقم: (3554)].

اوونیل: زما جوړه اوباسه؛ ځکه جوړه ورته هغه کړې وه، مور ته راغے هغې ورته خپله کپړه دوه ټوټې کړه، نیمې نه ئې لنګ اووهو، او نیمه ئې څادر کړه، او ترۀ ته ئې خپله جوړه ورکړه، "بجاد" کرخې دارې کپړې ته وائي، نو ځکه ورته "ذُو البِجادَين" وائي) نبي ﷺ راغلے او د هغه صحابي جنازه روانه ده، نبي ﷺ اوفرمائیل: نرمې کوئ د کټ نه ئې ونۀ غورځوئ، الله دي ورسره نرمې اوکړې «إِنَّهُ كَانَ يُحِبُّ اللهَ وَرَسُولَهُ» "دا هغه صحابي دے چې د الله او د الله د پیغمبر سره ئې ډیره مینه وه"، بیا نبي ﷺ د هغۀ قبر له لاړو، او قبر والا ته اوونیل: چې قبر ئې ښۀ کهولاؤ کړئ، الله دې پرې دا قبر کهولاؤ کړي. [1] دا هغه صحابي دے چې د الله او د الله د پیغمبر سره ئې ډیره مینه وه، داسې مینه ئې وه د الله د پیغمبر سره چې نبي ﷺ به ګواهي کوله.

### د کعب بن عجره ﷺ محبت د نبي ﷺ سره

یَو حدیث کښې راځي، یَو ځل کعب بن عجره ﷺ راغے، نبي ﷺ خواته راغے، نبي ﷺ ته ئې چې اوکتل، نو د نبي ﷺ رنګ نهایت متغیره وو، بدل وو، صحابه کرام ﷺ به پوهیدل، چې نبي ﷺ غصه دے، یا خوشحاله دے، او چې راغے، نو نبي ﷺ ته وائي: «بِأَبِي أَنْتَ» "د الله پیغمبره زما پلار دي پۀ تا قربان شي" دا د مینې هغه الفاظ دي، «مَا لِي أَرَاكَ مُتَغَيِّرًا؟» "څۀ وجه ده چې ستا رنګ بدل لګي؟"، نبي ﷺ ورته وائي: څویمه ورځ ده، چې زما خیټې ته چرته دومره خوراک هم نۀ دے دننه شوے، لکه د یَو جګر والا خیټې ته چې دننه کیږي، څۀ مې خوړلي نۀ دي، ډیر زیات اوږے شوے یم، د لوږې د وجې نه مې رنګ بدل دے، دریمه ورځ ده چې ما خوراک نۀ دے

---

(1) [رواه ابن ماجة، رقم: (1559)].

کړې. امام الانبياء دے، د انبياء سردار دے، ليکن د دنيا په اعتبار ئې څومره تکليفونه برداشت کړي دي. هغه صحابي روان وو، نو کور کښې ورسره څه نه وو، «قَالَ: فَذَهَبْتُ» "نو هغه صحابي وائي: زه لاړم"، نو يَو يهودي سرې اوښان اوبه کول، او د هغې اوښانو دپاره ئې بوقې راوېستلې، ما ورته اووئيل: څه کوې؟ وائي: هغه اووئيل: اوښان اوبه کوم، وائي: ما ورته اووئيل: چې زه به درته اوښان اوبه کړم، او ما له به لږه غوندې مزدوري راکړې، وائي: ما د هغه هغه اوښان اوبه کړل، په يَو بوقې به ئې ما له يَو کجوره راکوله، چې څومره بوقې مې راوېستلې، نو کجورې مې راوړې، او نبي ﷺ له مې ورکړې، چې دا اُوخورئ، کله چې ما کجورې نبي ﷺ له ورکړې، وائي: ما ته نبي ﷺ اووئيل: «مِنْ أَيْنَ لَكَ يَا كَعْبُ؟» "اے کعبه رضي الله عنه! دا کجورې تا چرته نه راوړې؟" هغه ورته وائي: د الله پيغمبره کور کښې ما کره نه وې، نو زه لاړم فلانکې يهودي له مې اوښان اوبه کړل، نو د هغه نه مې دا کجورې راوړې، وائي: نبي ﷺ اوفرمائيل: اے کعبه رضي الله عنه! دا دې ولې کړې دي؟ تا ولې دومره تکليف اوکړو؟ «أَتُحِبُّنِي يَا كَعْبُ؟» "اے کعبه! آيا ستا ما سره مينه شته؟" آيا ته ما سره مينه کوې، سيدنا کعب ﷺ فرمائي: ما ورته اووئيل: اے د الله پيغمبره زما پلار دې په تا قربان شي، زما ستا سره ډيره مينه ده، نبي ﷺ ورته فرمائي: اے کعبه! چې ما سره څوک هم محبت کوې، نو هغه باندې يَو شے ضرور راځي، هغې ته به غاړه کيدې، وائي: ما ورته اووئيل: چې څه؟ وائي: نبي ﷺ اوفرمائيل: غريبي په هغه انسان ډيره زر راځي، کوم سړے چې ما سره محبت کوې، داسې زر په هغه باندې غريبي راځي، لکه څنګه چې سيلاب يَو ډنډ له ورځي.[1] دا ئې سيدنا کعب ﷺ ته تسلّي ورکوله.

---

(1) [رواه الطبراني في "المعجم الأوسط"، رقم: (7157)].

## د سيدنا علي ﷺ محبت د نبي ﷺ سره

سيدنا علي ﷺ فرمائي: يَو ځل نبي ﷺ اوږے وو، نو ما ته چا خبر راوړو، چې نبي ﷺ اوږے دے، سيدنا علي ﷺ د نبي ﷺ د ترۀ زوې وو، نو سيدنا علي ﷺ وائي: زۀ لاړم، ما داسې کار کتلو چې زۀ هغې کښې مزدورې اوکړم، او د الله پيغمبر له خوراک راوړم، چې نبي ﷺ خوراک اوکړي، وائي: هيڅ هم ميلاؤ نۀ شول، «فَأَتَيْتُ بُسْتَانًا» "نو زۀ يَو باغ ته راغلم" نو هغه باغ د يَو يهودې سړي وو، نو هغۀ خپل فصل اوبۀ کولو، نو ما د هغۀ دپاره اُولَس (17) بوقې راويستلې، ما د هغۀ بوټې اوبۀ کړل، پۀ يَو بوقه به ئې ما له يَوه کجوره راکوله، هغه کجورې مې نبي ﷺ ته راوړې، نبي ﷺ ما ته فرمائي: «مِنْ أَيْنَ لَكَ يَا أَبَا الْحَسَنِ؟» "اے د حسن پلاره! دا کجورې تا چرته نه راوړې؟" وائي: ما ورته اووئيل: چې د الله پيغمبره زۀ خبر شوے يم، چې تۀ اوږے شوے ئې، وائي: زۀ لاړم، ما ځان له مزدورې کتله، نو مزدورې راته ميلاؤ شوې، نو تا له مې د هغې کجورې راوړې، وائي: نبي ﷺ اوفرمائيل: چې اے علي رضي الله عنه! دا کار تا ولې کړے دے؟ څۀ وجې نه دې اوکړو؟ پدې وجه دې کړے وو، چې ستا د الله او د الله د پيغمبر سره مينه وه، سيدنا علي ﷺ وائي: ما ورته اووئيل: چې آؤ، د الله د پيغمبر سره مې مينه ده، پدې وجه مې کړے دے، وائي: نبي ﷺ ما ته اوفرمائيل: اے علي! خوک چې ما سره مينه کوې، پۀ هغۀ به غريبې ډيره زر راځي، بيا غريبئ ته غاړه کيده.[1]

مقصد دا دے چې صحابو لوږې پۀ ځان برداشت کړې دي، غريبې ئې تيره کړې ده، خو د الله د پيغمبر محبت کښې کمے نۀ وو راوستے.

(1) [رواه ابن ماجة، رقم: (2446)].

کافرانو نیولے دے، او کافران ورته وائي: که ستا خوښه وي، نو مونږ به تا پریدو، او ستا په ځائے به مونږ نبي ﷺ اونیسو، او نبي ﷺ به مړه کړو، دا دې خوښه ده؟ هغه صحابي ورته وائي: تاسو خو دا وایئ چې تاسو ما پریدئ او زما په ځائے به نبي ﷺ شهید کړئ، دا خو ډیره لویه خبره ده، کچرې زه ژوندے پاتې کیږم، او که د نبي ﷺ په خپه کښې ازغے ماتیږي، نو دا هم ما ته منظوره نه ده، خپل مرګ مې خوښ دے، خو د نبي ﷺ په خپه کښې ازغے ماتیدل ما ته ګران لګي. داسې محبت ئې وو د نبي ﷺ سره.

## د سیدنا ابو بکر صدیق ﷺ محبت د نبي ﷺ سره

سیدنا ابو بکر صدیق ﷺ خپل پلار را روان کړے وو، په سترګو باندې ړوند وو، د لاس نه ئې نیولے وو، نبي ﷺ ته ئې راوستو، نبي ﷺ ته وائي: چې ده ته کلمه اُووایه، چې مسلمان شي، نبي ﷺ ورته وائي: دا بوډا سړے تا ولې د خپل کور نه را روان کړے دے، مونږ به هلته ورغلے وے، او کلمه شهادت به مو ورته وئیلے وے، ولې دومره لرې دې راوستو؟ هغه ورته اووئیل: د الله پیغمبره ددې وجې نه مې دومره لرې نه راوستو، چې الله ده له پدې راتلو هم اجر او ثواب ورکړي، کله چې نبي ﷺ هغه ته لاس اوږد کړو، او هغه هم لاس را اوږد کړو، بیعت ئې په اسلام باندې کولو، مسلمان کیدو، نو ابو بکر صدیق ﷺ په ژړا شو، نبي ﷺ هغه ته فرمائي: څه وجه ده چې ته ژاړې، دا خو د خوشحالۍ مقام دے، چې د سړي پلار مسلمان کیږي، او د جهنم د عذاب نه بچ کیږي؟ ابو بکر صدیق ﷺ ورته وائي: د الله پیغمبره ژړا پدې وجه راغله، چې زما دا پلار مسلمان شي، نو زما سترګې به یخې شي، زه به خوشحاله شم، که دده په ځائے ستا تره ابو طالب مسلمان شوے وے، نو د هغه په وجه به ته خوشحاله شې، او چې ته خوشحاله شوې، نو دا زما دپاره لویه خوشحالي ده.

## د سيدنا عمر فاروق ﷺ محبت د نبي ﷺ سره

يَو حديث كښې راځي، چې يَو ځل عمر فاروق ﷺ سيده فاطمې ﷺ ته وائي: اے فاطمې! زما دي په الله باندې قسم وي، چې د الله پيغمبر ژوندے وو، نو په تمامو خلقو كښې زياته مينه زما د الله د پيغمبر ﷺ سره وه، خو چې كله د الله پيغمبر وفات شوے، نو په ټولو خلقو كښې زما زياته مينه تا سره ده، او وجه دا ده، چې تا سره د الله د پيغمبر مينه وه، نو ځكه زما تا سره مينه ده. د نبي ﷺ د مينې د وجې نه به هغوي يَو كار كولو.

يَو حديث كښې راځي، سيدنا عباس ﷺ له مسلمان شوے نۀ وو، كله چې اونيولے شو په جنګ بدر كښې، او قيديانو كښې راوستے شو، سيدنا عمر فاروق ﷺ د لاس نه نيولے دے، او ورته وائي: اے عباسه! كچرې تۀ مسلمان شوې، نو زما دې په الله باندې قسم وي، چې دا ما له زما د پلار د ايمان نه ډير محبوبه ده، د خپل پلار خطّاب په ايمان دومره نۀ خوشحاليږم، لكه څومره چې ستا په ايمان راوړلو باندې خوشحاليږم، وجه دا ده كۀ چرته تۀ مسلمان شوې، نو د الله پيغمبر ﷺ به خوشحاله شي، او د الله پيغمبر چې خوشحاله شي، نو دا زما دپاره لويه خوشحالي ده، او كۀ زما پلار مسلمان شي، نو يَواځې زۀ به خوشحاله شم، حالانكه هغه هم د الله د پيغمبر خوشحالي وه، چې د هغۀ يَو اُمتي د جهنم د اُور نۀ بچ شي، خو ليكن څومره چې پۀ ترونو او د هغې پۀ زامنو مئين وو دومره خو سرے پۀ بل چا نۀ وي مئين، نو عباس ﷺ ته وائي: چې ستا پۀ ايمان نبي ﷺ خوشحاليږي؛ نو ځكه ستا ايمان ما ته ډير خوښ دے زما د پلار د ايمان نه.

داسې مينه ئې وه د الله د پيغمبر ﷺ سره، دومره محبت ئې وو د الله د پيغمبر سره. او دومره هيبت وو ورباندې د نبي ﷺ چې كله به نبي ﷺ ناست وو، صحابه كرامو به نبي ﷺ ته بره نۀ كتل، مينه ئې ورسره هم ډيره وه، خو ادب به ئې هم ډير كولو، چې بره ئې ورته نۀ شو كتلے.

**د ترمذي روایت**

کله چې نبي ﷺ به بهر راووتو، نو صحابه کرامو به خپل نظر نبي ﷺ ته نهٔ شو اوچتولے، ما سیوا د دوو کسانو نه یَو ابو بکر صدیق او بل عمر فاروق رضي الله عنهما نه، چې دوي به نبي ﷺ ته کتل او نبي ﷺ به دوي ته کتل، د دوي نه ما سیوا د بل صحابي دا جرأت نهٔ وو، چې د دوي نه ئې تپوس کړے وو، د ډیر ادب د وجې نه.

**د براء بن عازب رضي الله عنه واقعه**

یَو صحابي دے براء بن عازب رضي الله عنه هغه وائي: دوه کاله زما پهٔ زړهٔ کښې یَو مسئله اوریده راوریده، لیکن دوه کاله کښې ما د الله د پیغمبر نه د مسئلې تپوس نهٔ وو کړے، وجه دا وه چې دومره هیبت وو ما باندې د الله د پیغمبر چې زهٔ به نزدې شوم، نو ما باندې به یره راغله. دومره هیبت وو د نبي ﷺ.

عروه بن مسروق رحمه الله... هغه ذکر کوي، هغه وخت کښې دے له کافر وو، روستو بیا مسلمان شوے وو، دے د کفر په حالت کښې وو، چې دے راغلے صلح حدیبیه کیدله، نبي ﷺ سره ئې خبرې کولې، کله چې نبي ﷺ او صحابه کرام رضي الله عنهم عمرې له تلل نو هغوي نهٔ پریښودل، نو دهٔ به د نبي ﷺ سره خبرې هم کولې، او د نظر د لاندې به ئې صحابه کرامو ته هم کتل، چې وي لیدل چې نبي ﷺ به لاړې (توکانړې) اُغورزولې، صحابي به ورته خپل لاس مخکښې کړو، د نبي لاړې به ئې پهٔ زمکه نهٔ پریښودلې، د نبي ﷺ هغه لاړې به ئې راغستلې، او هغه به ئې پهٔ خپل بدن راښکلې، کهٔ نبي ﷺ به حکم اُوکړو، چې فلانکے کار کول غواړې نو یَو صحابي به د بل نه مخکښې منډه وهله.

کله چې به نبي ﷺ اودس کولو، چار اندام به ئې کولو نو قریبه وه، چې صحابو یَو بل د تیل د وجې نه مړهٔ کړے وے، هغه اوبهٔ به ئې راغستې، او پهٔ خپل بدن به ئې اوچولې.

يَو حديث کښې راځي، نبي ﷺ څار اندام اوکړو، صحابه کرام ﷺ وائي: مونږه هغه اوبۀ اوڅکلې، دومره ئې محبت وو، او چې نبي ﷺ به خبرې کولې نو صحابه کرام به چپ ناست وو، او د نبي ﷺ خبرو ته به ئې غوږ ايخے وو. عروه ﷺ چې کله واپس لاړو، دے خو د کافرانو د طرف نه راغلے وو، د نبي ﷺ سره خبرو له، هغوي ته وائي: چې داسې سړي سره تاسو جنګ نۀ شئ کولے، او ورته وائي: اے زما قومه! زما دي پۀ الله باندې قسم وي، زۀ د لويو لويو بادشاهانو سره تلے يم، زۀ د کِسری د بادشاه سره تلے يم، زۀ د قيصر بادشاه سره تلے يم، زۀ د نجاشي بادشاه سره تلے يم، وائي: زما دي پۀ الله باندې قسم وي، کۀ يَو بادشاه ما داسې کتلے وي، چې د هغۀ قوم د هغۀ دومره عزت کړے وي، څومره چې د نبي ﷺ ملګرې د خپل پيغمبر عزت کوې. هغه سره تاسو جنګ نۀ شئ کولے، کافران هم پدې خبره باندې ګواه وو. د نبي ﷺ چې به څۀ شے خوښ وو، هغه شے به د صحابه کرامو هم خوښ وو، او چې د نبي ﷺ به يَو شے ناخوښ وو، د صحابه کرامو به هم هغه شے ناخوښ وو. الله زمونږ د نبي ﷺ سره مينه او محبت پيدا کړي.

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



بسم الله الرحمن الرحيم

وَاعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَبِذِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ وَالْجَارِ الْجُنُبِ...الخ

(سورة النساء: 36)

# موضوع

# دَ ګاونډي حقوق

بمقام: جلسې

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# د ګاونډي حقوق

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْه وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِه اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهُ وَلَا آخِرَ لَهُ لَا ضِدَّ لَهُ وَلَا نِدَّ لَهُ وَلَا مُمِدَّ لَهُ وَلَا بَشِيْرَ لَهُ وَلَا نَذِيْرَ لَهُ وَلَا وَزِيْرَ لَهُ وَلَا مُشِيْرَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدَهُ وَرَسُوْلَهُ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ الله الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿وَاعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَبِذِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالْجَنبِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ مَن كَانَ مُخْتَالًا فَخُورًا﴾. [1]

وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَالله لَا يُؤْمِنُ، وَالله لَا يُؤْمِنُ، وَالله لَا يُؤْمِنُ قِيلَ: وَمَنْ يَا رَسُولَ الله؟ قَالَ: الَّذِي لَا يَأْمَنُ جَارُهُ بَوَايِقَهُ». [2]

عزتمندو حاضرينو مسلمانانو رونړو! نن دا ذکر کوو، چې د يو ګاونډي په بل ګاونډي څۀ حق دے؟ او يو ګاونډي به د بل ګاونډي سره څنګه رويّه کوي؟ او د مسلمان دپاره د ګاونډي څنګه خيال ساتل پکار دي؟ علماء کرام ذکر کوې د انسان سره خوا کښې چې ګاونډي وي نو يا به هغه ګاونډي مسلمان وي يا به کافر وي؟

**مسلمان رشته دار ګاونډي**

کچرې ستا پۀ خوا کښې ګاونډي دے، مسلمان هم دے، او ستا رشته دار هم

---

(1) [سورة النساء: 36]

(2) [رواه البخاري، رقم: (6016)]

دے، او ستا په ګاونډ کښې هم دے نو ته به د هغه سره تعلق ساتې؛ ځکه چې د هغه په تا باندې حقوق دي، يَو خو ستا خپل دے، د رشته دارۍ حق ئې درباندې دے، چې ته به د هغه سره رشته دارې پالې، او که رشته دارې ورسره نه پالې، نو نبي ﷺ فرمائي: «لاَ يَدْخُلُ الجَنَّةَ قَاطِعٌ». (1)

"د خپلولۍ ختمولو والا سړے به جنت ته نه ځي".

د قيامت په ورځ به خپلولي د عرش د سورې لاندې زونډه وي، او آواز به کوي چا چې زه دنيا کښې پاللې ووم، الله دې د خپل رحمت سره يَوځائے کړي، چا چې زه دنيا کښې ختمه کړې ووم، الله دې د خپل رحمت نه جدا کړي.

نو چې يَو ستا ګاونډي دے، او رشته دار دې هم دے، نو د هغه درباندې د رشته دارۍ حق هم دے، چې د هغه سره به ښه سلوک کوې، دويم ستا ګاونډي دے، نو په تا ئې د ګاونډ ګيرۍ حق هم دے، چې ته به د هغه سره ښه سلوک کوې، او دريم هغه مسلمان دے، نو يَو مسلمان به د بل مسلمان د اصلاح کوشش کوې، د هغه د خير کوشش به کوې، نو چې مسلمان هم دے، او ستا رشته دار هم دے، د هغه په تا درې (3) حقونه دي، يَو د رشته دارۍ حق، بل د ګاونډ ګيرۍ حق، او بل د اسلام او ايمان حق دے.

**مسلمان ګاونډي**

که يَو سړے ستا ګاونډ کښې اوسيږي مسلمان دے، خو ستا رشته دار نه دے، ستا په ټبر او ستا خاندان کښې نه دے، ستا نه لرې دے، خو ستا ګاونډي دے، د هغه په تا باندې دوه حقونه دي: يَو د هغه د اسلامي رورولۍ حق دے ﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ﴾. (2)

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (5984)، ومسلم، رقم: (2556)، والترمذي، رقم: (1909)، وأبو داود، رقم: (1696)]

(2) [سورة الحجرات: 10]

الله وائي: "مسلمانان رونړه رونړه دي"، «المُسْلِمُ أَخُو المُسْلِمِ».[1]

"يَو مسلمان د بل مسلمان ورور دے".

او دويم هغه ستا پهٔ ګاوند کښې دے، نو د هغهٔ د ګاوند ګيرئ حق دے.

**کافر ګاونډي**

چې کله يَو سړے ستا پهٔ ګاوند کښې اوسيږي، او هغه کافر دے، نو د هغهٔ پهٔ تا باندې يَو حق دے، چې هغه د ګاوند ګيرئ حق دے، هغه خو مسلمان نهٔ دے، ليکن تهٔ به د کافر ګاونډي سره هم ښهٔ سلوک کوې؛ ځکه چې ستا ګاوند کښې اوسيږي، نو چې هغه ستا د اخلاقو او ستا د معاملاتو نه متأثره شي، او ستا د اخلاقو د وجې نه ايمان راوړي، او هغه مسلمان شي، دا د يَو ګاونډي پهٔ بل ګاونډي باندې حق دے، او دا حق به اداء کوې، ما چې کوم آيت لوستلے وو، پدې آيت کښې الله يَو څو حقونه ذکر کوي، اول الله خپل حق ذکر کوي.

(1) ﴿وَاعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا﴾.[2]

"عبادت به د يَو الله کوئ، د الله سره هيڅ شے شريک مهٔ جوړوئ".

﴿شَيْئًا﴾ عام دے، علماء کرام ذکر کوي، کله چې نکره پهٔ سياق د نفې کښې راشي نو مراد ترې عموم وي. هيڅ شے به د الله سره نهٔ شريک کوئ، نهٔ به ورسره څوک پيغمبر مرتبه کښې شريک کوئ، نهٔ به ورسره څوک انسان پهٔ مرتبه کښې شريک کوئ، نهٔ به ورسره څوک ولي مرتبه کښې شريک کوئ، نهٔ به ورسره مرتبه کښې مړے شريک کوئ، نهٔ به ورسره ژوندے شريک کوئ، نهٔ به ورسره نمر شريک کوئ، نهٔ به ورسره سپوږمۍ شريک کوئ، نهٔ به ورسره ملائک شريک کوئ.

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (2442، و6951) ومسلم، رقم: (2564، و2570)، والترمذي، رقم: (1426، و1927)، وأبو داود، رقم: (4893)].

(2) [سورة النساء: 36].

د سیدنا عبد الله بن عباس رضي الله عنهما قول

«كُلُّ عِبَادَةٍ فِي الْقُرْآنِ فَهُوَ التَّوْحِيدُ».[1]

"قرآن کریم کښې چې کوم ځائے د عبادت لفظ راشي نو مراد به ترې توحید وي".

ځکه کافرانو هم عبادت کولو، مونځ به ئې کولو، روژه به ئې نیوله، حجونه به ئې کول. ابو جهل دوه پنځوس (52) حجونه کړي وو، هغوي عبادت کولو، خو یَواځې د الله عبادت ئې نهٔ کولو، لات، منات او عُزّی ته ئې را مدد شي وئیلو، الله به ئې هم را مدد کولو، او غیر الله به ئې هم را مدد کولو، د نن زمانې نا پوهه مسلمانان هم دغسې کوي، بعضې وخت د الله نه سوال نه کوي، او بعضې وخت غیر الله ته چغې وهي، الله وائي: داسې مهٔ کوئ، الله خپل حق ذکر کړو.

(2) دویم ﴿وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا﴾.[2]

"د مور پلار سره احسان کوئ".

علماء کرام وائي: احسان څنګه دے؟ احسان عام دے، د هغوي سره خبرو کښې احسان به کوې، د هغوي سره پهٔ کاروبار کښې به احسان کوې، هغوي باندې به مال لګوې، چې کله مال ته محتاج وي، هرې طریقې باندې به هغوي سره احسان کوې، کهٔ مور پلار دې بوډاګان دې، نو د هغوي پهٔ خدمت به اُف هم نهٔ وائې، پهٔ هغوي به مال لګوې د بالغ بچي مال دا خو د بچي دے، لیکن چې کله والدین بوډاګان دې، او هغوي سره نور مال نشته، نو نبي عليه السلام صحابي ته وائي: «أَنْتَ وَمَالُكَ لِأَبِيكَ» "تهٔ او ستا مال ستا د پلار دے"، بیا به تهٔ دا خپل کټلے مال پهٔ مور او پلار لګوې، او کهٔ مالدار وي نو پهٔ خپل ځان دې خرج کوي، او تهٔ ترې خلاص ئې.

---

(1) [تفسير القرطبي، تحت آية سورة التحريم: 5].

(2) [سورة النساء: 36].

(3) دریم ﴿وَبِذِي الْقُرْبَىٰ﴾.[1]

"د خپلو خپلوانو سره به احسان کوې".

د هغوي سره به رشته دارې پالې، د هغوي سره به ښۀ سلوک کوې، د هغوي سره به ښه معامله کوې.

(4) څلورم ﴿وَالْيَتَامَىٰ﴾.[2]

"د يتيمانانو سره به احسان کوې".

يتيم ډير مظلوم وو، زمونږ په معاشره کښې چې پلار به ئې مړۀ شو، مشران به راجمع شول، او د يتيمانانو مال به ئې لکولو. نا نا د يتيم سره به ښۀ سلوک کوئ. نبي ﷺ فرمائي: «كَافِلُ الْيَتِيمِ لَهُ أَوْ لِغَيْرِهِ أَنَا وَهُوَ كَهَاتَيْنِ فِي الْجَنَّةِ».[3]

"د يتيم پرورش کونکے که ددۀ يتيم دے او که د بل چا يتيم دے، د قيامت په ورځ به دغه سړے او زۀ جنت کښې داسې يُو، لکه دا دواړه گوتې چې دي".

څوک چې د يتيم سره ښۀ سلوک کوې. د يتيم په سر دي لاس کيښودو، څومره ويښتۀ چې ستا د لاس د لاندې راغلل دومره اجر او ثواب ستا اُوشو.

(5) پنځم ﴿وَالْمَسَاكِينِ﴾.[4]

"مسکينانو او غريبانانو سره ښۀ سلوک کوه".

هغوي ته سپک مۀ گوره، هغوي مۀ رټه، هغوي ته کنځلې مۀ کوه.

(6) شپږم ﴿وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ وَالْجَارِ الْجُنُبِ﴾.[1]

---

(1) [سورة النساء: 36].

(2) [سورة النساء: 36].

(3) [رواه مسلم، رقم: (2983)].

(4) [سورة النساء: 36].

"هغه ګاونډي چې ستا خوا کښې دے، ستا رشته دار دے".

(1) يو معنى دا ده ﴿وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ﴾ "ستا دروازه او د هغهٔ دروازه جوختې دې" د هغهٔ سره ښهٔ سلوک کوه، او هغه ګاونډې چې هغه درنه لرِ لرے دے، د هغهٔ سره هم ښهٔ سلوک کوه.

(2) دويم معنى ﴿وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ﴾ "هغه ګاونډي چې هغهٔ ستا رشته دار دے، ستا خپلوانو کښې هم دے، هغهٔ سره هم ښهٔ سلوک کوه".

﴿وَالْجَارِ الْجُنُبِ﴾ "او هغه ګاونډي چې ستا ګاونډي دے، خو ستا رشته دار نهٔ دے" د هغهٔ سره هم ښهٔ سلوک کوه. دا د اسلام حکم دے.

(7) اُووم ﴿وَالصَّاحِبِ بِالْجَنبِ﴾.[2]

"او هغه ملګرے چې ستا پهٔ اَړخ کښې دے"

ددې نه څوک مراد دي؟ (1) يو قول دا دے: چې مراد ترې ښځه ده، د هغې سره خائسته زندګي تيروه، هغې ته پهٔ سپک نظر مهٔ ګوره. (2) ﴿وَالصَّاحِبِ بِالْجَنبِ﴾ "هغه ملګرے چې ستا پهٔ اړخ کښې دے"، يعنې تا سره جوښت دے، کوم ملګرے چې تاسره پهٔ سفر روان وي، نو د سفر ملګرې سره ښهٔ سلوک کوه، هغهٔ سره مينه کوه، هغهٔ ته څهٔ نقصان مهٔ رسوه.

(8) اَتم ﴿وَابْنِ السَّبِيلِ﴾.[3]

"د لارې مسافر سره احسان کوه".

(9) نهم ﴿وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾.[4]

---

(1) [سورة النساء: 36].

(2) [سورة النساء: 36].

(3) [سورة النساء: 36].

(4) [سورة النساء: 36].

هغې خلقو سره ښهٔ سلوک کوه چې "ستاسو غلامان دي، ستاسو نوکران او خدمت کاران دې".

یا هغه کس چې ستا مزدور او ستا نوکر دے، د هغهٔ سره ښهٔ سلوک کوه، چې هغهٔ باندې کوم کار کوې نو د هغهٔ وس او طاقت ته ګوره، چې هغه درنه خفه نهٔ شي، مزدور سره ښهٔ سلوک کوه، زمونږ خلق مزدور باندې کار کوې او پیسې بیا نهٔ ورکوې. نبي ﷺ فرمائي: «أَعْطوا الأَجِيرَ أَجْرَهُ قَبْلَ أَنْ يَجِفَّ عَرَقُهُ».[1]

"مزدور له د هغهٔ مزدورې د خُولې وچیدو نه مخکښې ورکړئ".

چې خوشحاله شي، دا ورسره احسان دے، مزدورئ له دي راوستو مازیګره پورې دي پرې کار اوکړو، نو پیسې ورله ورکړه، چې دا ستا حق دے. نو دے مزدور باندې کار اوکړې، او ورته وائې: پیسې به دوه ورځې پس درکړم، نو هغه دوه ورځې نهٔ وي، هغه دوه کاله وي. پدې یَو آیت کښې چې الله کوم حقوق ذکر کړل کهٔ پدې چا عمل کړے وے، نن به معاشره ولې خرابه وه، مسلمان به څومره ترقئ باندې وو!!!؟ نو پدې آیت کښې الله د ګاونډي حق هم ذکر کړو، او ددې دپاره نبي ﷺ ډیر ترغیبات ورکړې دې.

### د ګاونډي د حقوقو باره کښې احادیث مبارکه

### (1) اول روایت

نبي ﷺ فرمائي: «مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلاَ يُؤْذِي جَارَهُ».[2]

"د کوم سړي چې پهٔ الله او پهٔ ورځ د قیامت باندې ایمان وي دا سړے دي خپل

---

(1) [رواه ابن ماجة، رقم: (2423)].

(2) [رواه البخاري، رقم: (5185) ومسلم، رقم: (47)، وأبو داود، رقم: (5154)].

کاونډي ته هيڅ ضرر نهٔ رسوي".

او بيا نبي ﷺ فرمائي: «مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا أَوْ لِيَصْمُتْ».[1]
"د چا چې پهٔ الله او پهٔ ورځ د قيامت باندې ايمان وي دا سړے چې خبره کوي يا دې د خير خبره کوي، يا دې چپ پاتې شي"

د شر خبرې دې نهٔ کوي، د شرکياتو او بدعاتو خبرې دې نهٔ کوي. او نبي ﷺ فرمائي: «وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ».[2]

"د چا چې پهٔ الله او پهٔ ورځ د قيامت باندې ايمان وي نو دا سړے دې د خپل ميلمه عزت کوي"

## (2) دويم روايت

نبي ﷺ فرمائي: «وَاللهِ لاَ يُؤْمِنُ، وَاللهِ لاَ يُؤْمِنُ، وَاللهِ لاَ يُؤْمِنُ قِيلَ: وَمَنْ يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ: «الَّذِي لاَ يَأْمَنُ جَارُهُ بَوَايِقَهُ».

"زما دې پهٔ الله باندې قسم وي چې مؤمن نهٔ دے" (درې ځله نبي ﷺ دا جمله اوفرمائيله)، يَو صحابي پاسيدو، او وائي: «وَمَنْ يَا رَسُولَ اللهِ؟».

"اے د الله پيغمبره! څوک يادوې چې مؤمن نهٔ دے؟"، نبي ﷺ ورته فرمائي: «الَّذِي لاَ يَأْمَنُ جَارُهُ بَوَايِقَهُ».[3]

"هغهٔ سړے مؤمن نهٔ دے چې د هغهٔ کاونډي د هغهٔ د شر نه پهٔ امن باندې پاتې نهٔ شي"، زما دې پهٔ الله قسم وي، چې دا سړے مؤمن نهٔ دے، د مؤمن شان خو دا دے

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (6135، و6475)، ومسلم، رقم: (47، و48)، وأبو داود، رقم: (5154)].

(2) [رواه البخاري، رقم: (6135، و6138)، ومسلم، رقم: (48)، والترمذي، رقم: (1967، و2500)، وأبو داود، رقم: (3748، و5154)].

(3) [رواه البخا ري، رقم: (6016)].

چې هغه به د کافرانو سره هم ښهٔ سلوک کوې.

**د نبي ﷺ او د صحابه کرامو د اخلاقو اثرات**

کافران به راغلل، او چې د نبي ﷺ مخ ته به ئې اوکتل، نو هغوي به ایمان راوړو. یَو صحابي فرمائي: ایمان ئې له نهٔ وو راوړے، وائي: زهٔ راغلم ما د نبي ﷺ مخ مبارک ته اوکتل «عَرَفْتُ أَنَّ وَجْهَهُ لَيْسَ بِوَجْهِ كَذَّابٍ».[1]

: "زهٔ پوهه شوم، چې د رسول الله مخ چې دے، نو دا د دروغژن سړي مخ نهٔ دے".

صحابه کرامو یَو سړے اونیولو، ثمامه دا مشهور سړے وو، د نبي ﷺ سخت مخالف وو، چې کله ئې راوستو، نبي ﷺ اووئیل: د مسجد نبوي ستنې سره ئې اوتړئ، صحابو اوتړلو، دغسې ولاړ وو، نبي ﷺ راغے، او ثمامه ټوله شپه پهٔ ولاړه تیره کړه، کافر وو، نبي ﷺ ورته وائي: «كَيْفَ بِكَ يَا ثَمَامَةُ» "ثمامه څنګه حال دے، ایمان راوړې او کنه؟" ثمامه ورته وائي: «إِنْ تَقْتُلْنِي تَقْتُلْ ذَا دَمٍ، وَإِنْ تُنْعِمْ تُنْعِمْ عَلَى شَاكِرٍ، وَإِنْ كُنْتَ تُرِيدُ المَالَ فَسَلْ مِنْهُ مَا شِئْتَ، فَتَرَكَ حَتَّى كَانَ الغَدُ» "کهٔ تهٔ ما قتل کوې، نو زهٔ د وینې یَو سړے یم، ما به مړهٔ کړې، نو زما وارثان به درنه بدل واخلي، او کهٔ ما باندې احسان کوې، نو احسان دي منم، او کهٔ مال او دولت غواړې نو چې څومره مال دولت غواړې نو مال دولت درکوم"، نبي ﷺ اووئیل: پریږدئ، چې دغسې تړلے وي، پهٔ دویمه ورځ بیا نبي ﷺ راغے، ورته وائي: «كَيْفَ بِكَ يَا ثَمَامَةُ» "ثمامه څنګه حال دے، ایمان راوړې او کنهٔ؟" هغه ورته وائي: کهٔ مړهٔ دي کړم، نو زما وارثان به درنه بدل واخلي، او کهٔ ما باندې احسان کوې، نو احسان دي منم، او کهٔ مال او دولت غواړې نو چې څومره مال دولت غواړې نو مال دولت درکوم، نبي ﷺ صحابو ته اووئیل: دغسې

(1) [رواه الترمذي، رقم: (2485)، وابن ماجة، رقم: (1334، و3251)].

پرېږدوئ؛ په دريمه ورځ بيا نبي ﷺ راغے، بيا ورته وائي: «كَيْفَ بِكَ يَا ثُمَامَةُ» "ثمامه څنګه حال دے، ايمان راوړې او کنه؟" هغه ورته وائي: کۀ مړۀ دې کړم، نو زما وارثان به درنه بدل واخلي، او کۀ ما باندې احسان کوې، نو احسان دې منم، او کۀ مال او دولت غواړې نو چې څومره مال دولت غواړې نو مال دولت درکوم، نبي ﷺ صحابو ته اووئيل: «اُتْرُكُوْهُ» "دے پرېږدئ" چې ځي، چې کله صحابه کرامو پرانستو، نو هغه روان شو، د مسجد نبوي نه اخوا يَو چينه وه، مزيدارې اوبۀ ئې وې، ثمامه راغے او هغې کښې ئې غسل اوکړو، او بيا راغے نبي ﷺ ته وائي: اوس ما ته کلمه وايه، زۀ ايمان راوړم، درې ورځې دې ستنې سره تړے ووم، ما ايمان نۀ راوړو، اوس ايمان راوړم، او چې کله ئې کلمه اووئيله: «أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ»، بيا نبي ﷺ ته وائي: اوس زما خبره واوره، کله چې تا زۀ د ستنې سره تړلے ووم؛ ځکه مې ايمان نۀ راوړو چې بيا به خلقو وئيل چې ثمامه د مرګ نه وېرېدو، نو ځکه مې ايمان نۀ راوړو، اوس خو تاسو پرېښودم، نو ځکه مې ايمان راوړو، او بيا ورته وائي: چې اے د الله پيغمبره! زما دې د الله پۀ ذات قسم وي، پۀ تمامو کلو او ښارونو کښې دا مدينه ماته ډير ناخوښ کلے وو؛ ځکه چې تۀ پکښې اوسيدې، ماته چې به چا د مدينې نوم واغستو، نو دا نوم به ما باندې بد لګيدو، نن پۀ تمام کلو او ښارونو کښې ماته خوښ کلے او محبوب کلے هغه مدينه ده.

او بيا ورته وائي: زما دې د الله پۀ ذات قسم وي، ماته چې به چا ستا نوم واغستو چې محمد ﷺ، نو ماته به ډيره زياته غُصه راتله، نن پۀ تمامو خلقو کښې تۀ ماته خوښ او محبوب ئې، او ستا مخ ماته پۀ تمام مخونو کښې محبوب مخ دے، او بيا ورته وائي: زما دې د الله پۀ ذات قسم وي، چې پۀ تمامو دينونو کښې ستا دا دين ماته نۀ وو خوښ، ما ته ډير ناپسند وو، چې چا به ماته د اسلام نوم اغستو، نو ماله به غُصه راتله، نن پۀ

تمامو دینونو کښې محبوب دین ماته دينِ اسلام دے.[1]

دا د څۀ د وجې نه دومره متأثره شو؟ کۀ پۀ زور وے، نو هغه خو ئې د سټنې سره تړلے وو، نو ایمان به ئې راوړے وے، دا د نبي ﷺ او د صحابو د اخلاقو نه متأثره شو، ایمان ئې راوړو. داسې اخلاق ئې وو، چې يو غير مذهبه انسان به راغے، او د هغوي اخلاق به ئې اوکتل، نو ایمان به ئې راوړو. نن مسلمان داسې حد ته رسیدلے دے، چې نورو مسلمانانو سره ښۀ سلوک خو پریده، چې د خپل ګاونډي سره هم ښۀ سلوک نۀ کوي.

**(3) دريم روايت**

نبي ﷺ ته يو صحابي راغے، وائي: «إِنِّي نَزَلْتُ فِي مَحِلَّةِ بَنِي فُلَانٍ، وَإِنَّ أَشَدَّهُمْ لِي أَذًى أَقْدَمُهُمْ لِي جِوَارًا» "اے د الله پیغمبره ﷺ فلانکي کلي کښې زما کور دے، او هغې کلي ډیر زیاتے چې ما سره کوي، نو زما ګاونډي کوي، نور چانه دومره تنګ نۀ یم، څومره چې د خپل ګاونډي نه تنګ یم"، نو څۀ چل اوکړم؟ نبي ﷺ سیدنا ابو بکر، سیدنا عمر او سیدنا علي رضي الله عنهم اولیږل، چې لاړ شئ جومات ته ورشئ، چې کله لاړل «فَيَقُومُونَ عَلَى بَابِهِ فَيَصِيحُونَ» "تاسو به پۀ چغه چغه باندې وایئ" «أَلَا إِنَّ أَرْبَعِينَ دَارًا جَارٌ» "خبردار!!! څلویښت کورونه چې دي، دا ټول يو ګاونډ دے، د يو سړي سره څلویښت کورونه پۀ ګاونډ کښې حسابیږي"، او نبي ﷺ فرمائي: «وَلَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ خَافَ جَارُهُ بَوَائِقَهُ» "هغه سړے به جنت له لاړ نۀ شي، چې د هغۀ ګاونډي د هغۀ د شر نه يريږي، چې نن به ما له ضرر را رسوي، صباء به ما له ضرور را رسوي، داسې سړے چرې هم جنت ته نۀ شي تللے"، نبي ﷺ صحابو ته اووئیل: ورشئ جومات کښې پۀ چغه چغه باندې وایئ.[2]

(1) [رواه البخاري، رقم: (4372)].

(2) [رواه الطبراني، رقم: (143)].

نن د مسلمان حال اوګوره، چې ددهٔ څهٔ رویّه ده؟

**(4) څلورم روایت**

نبي ﷺ فرمائي: «لاَ يَسْتَقِيمُ إِيمَانُ عَبْدٍ حَتَّى يَسْتَقِيمَ قَلْبُهُ» "تر هغې وخته پورې د يَو سړي ايمان نهٔ برابرېږي تر څو پورې چې د هغهٔ زړهٔ نهٔ دے صحيح شوے"، «وَلاَ يَسْتَقِيمُ قَلْبُهُ حَتَّى يَسْتَقِيمَ لِسَانُهُ» "تر هغې وخته پورې د انسان زړهٔ نهٔ شي صحيح کيدلے تر څو پورې چې د هغهٔ د ژبې خبرې صحيح شوې نهٔ دي"، او آخر کښې نبي ﷺ فرمائي: «وَلاَ يَدْخُلُ رَجُلٌ الْجَنَّةَ لاَ يَأْمَنُ جَارُهُ بَوَائِقَهُ» "او تر هغې وخته پورې يَو انسان جنت ته نهٔ شي دننه کيدلے تر څو چې ګاونډي د هغهٔ د شر نه محفوظ شوے نهٔ وي".[1] نبي ﷺ دې طرف ته ترغيب ورکړے چې د خپلو ګاونډيانو سره ښهٔ سلوک کوئ.

**مؤمن چا ته وائي؟**

نبي ﷺ فرمائي: «الْمُؤْمِنُ مَنْ أَمِنَهُ النَّاسُ» "مؤمن هغه څوک دے چې نور خلق د دهٔ نه پهٔ امن باندې پاتې شول".[2] او کهٔ نه خلقو ته کنځلې کوې، خلقو ته ردې بدې وائي، نو ددهٔ ايمان ناقص دے.

**مسلمان چا ته وائي؟**

نبي ﷺ فرمائي: «الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ».

"کامل مسلمان هغه څوک دے، چې نور مسلمانان ددهٔ د ژبې او د ددهٔ د لاس نه محفوظ پاتې شول". نو دا صحيح مسلمان دے، او کهٔ پهٔ ژبه او لاس نورو مسلمانانو ته تکليف رسوې، نو دا سړے کامل مسلمان نهٔ دے، ددهٔ مسلمانې ناقصه ده.

---

(1) [رواه أحمد في "مسنده"، رقم: (13048)].

(2) [رواه ابن ماجة، رقم: (3934)].

**مهاجر چا ته وائي؟**

نبي ﷺ فرمائي: «وَالمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ مَا نَهَى اللهُ عَنْهُ».

"مهاجر هغه چا ته وائي چې هغه ټول ناکاره کارونه پریدي". د هجرت لوی ثواب دے، چې یَو سړے د الله د رضا دپاره هجرت اوکړي، او کۀ مهاجر دے خو غلا کوي زنا کوي مسلمان باندې بدنامه لګوي دا مهاجر نۀ دے، دۀ ته پۀ هجرت ثواب نۀ میلاویږي.

او بیا نبي ﷺ فرمائي: «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَبْدٌ لَا يَأْمَنُ جَارُهُ بَوَائِقَهُ».(1)

"زما دي پۀ هغه ذات باندې قسم وي چې د هغۀ پۀ قبضه او لاس کښې زما ساه ده چې هغه سړے جنت ته نۀ شي ننه کیدے، چې د هغۀ نه ګاونډي محفوظ پاتې نۀ شي". خومره تاکید سره نبي ﷺ وائي.

**(5) پنځم روایت**

سیدنا انس بن مالک رضي الله عنه د نبي ﷺ نه حدیث نقل کوي: «مَنْ آذَى جَارَهُ فَقَدْ آذَانِي وَمَنْ آذَانِي فَقَدْ آذَى اللهَ».(2)

"سیدنا انس رضي الله عنه د نبي ﷺ نه روایت نقل کوي، وائي: چا چې خپل ګاونډي ته ضرر او نقصان اورسولو، دې سړي ما ته تکلیف را اورسولو، چا چې زۀ خفه کړم ما ته ئې تکلیف را اورسولو، نو دۀ الله ته ضرر اورسولو، دۀ الله خفه کړو".

اوس کۀ یَو سړے وائي: چې زۀ خو ډیر ښه سړے یم، خو زما دا ګاونډي ډیر ناکاره سړے دے، نو ستا ګاونډي له پکار دي، چې هغه ځان نه ښۀ سړے جوړ کړي، او کۀ بیا هم ستا هغه ګاونډي نۀ سمیږي، نو تۀ صبر کوه، الله به درله اجر درکړي،

---

(1) [رواه أحمد في "مسنده"، رقم: (12561)].

(2) [رواه المنذري في "الترغيب والترهيب"، رقم: (3863)].

صبر ډیر ښهٔ شے دے، ﴿وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾.[1]

"الله د صبرناکو ملګرے دے".

کله الله وائي: ﴿إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾.[2]

"یقینًا الله دَ صبر کونکو ملګرے دے".

او کله الله وائي: ﴿وَاللَّهُ يُحِبُّ الصَّابِرِينَ﴾.[3]

"الله مینه کوي د صبرناکو سره".

او کله الله وائي: ﴿وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ﴾.[4]

"او زیرے ورکړه صبرناکو ته".

او کله الله وائي: ﴿إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾.[5]

"صبرناکو له به الله بے حسابه اجر ورکوي".

ستا ګاونډي دے، او تا سره ښهٔ سلوک نهٔ کوي نو تهٔ ورسره بد مهٔ کوه، تهٔ ورسره احسان اوکړه، احسان خو دیته وائي: چې یو سړے تا سره احسان نهٔ کوي، او تهٔ ورسره احسان کوې. او کهٔ هغه تا سره احسان کوي، او تهٔ هغهٔ سره احسان کوې نو دا خو تهٔ د هغهٔ د احسان بدله کوزوې. ګاونډي درسره بد سلوک کوي، نو تهٔ ورسره ښهٔ سلوک کوه، او کهٔ هغه تا سره خبرې نهٔ کوي او تهٔ هغهٔ سره خبرې نهٔ کوې، نو دا خو خبره نوره هم لرې کیږي، کهٔ هغه درسره جنګ کوي، نو تهٔ ورسره جنګ مهٔ کوه.

---

(1) [سورة البقرة: 249].

(2) [سورة البقرة: 153].

(3) [سورة آل عمران: 146].

(4) [سورة البقرة: 155].

(5) [سورة الزمر: 10].

## (6) شپږم روايت

نبي ﷺ فرمائي: «مَنْ حَارَبَ جَارَه فَقَدْ حَارَبَنِيْ وَمَنْ حَارَبَنِيْ فَقَدْ حَارَبَ اللهَ».[1]

"چا چې د خپل ګاونډي سره جنګ اُوکړو، دۀ ما سره جنګ اُوکړو، او څوک چې ما سره جنګ کوي نو دے د الله سره جنګ کوي". نو د الله سره خو جنګ نۀ شي کولے، خو الله به سزا ورکړي.

## (7) اُووم روايت

نبي ﷺ فرمائي: ړومبے چې د الله دربار کښې اودريږي دوه جګړه کونکي ګاونډيان به اودريږي، يَو به وائي: يا الله دۀ ما له دنيا کښې تکليف را رسولے وو، ړومبۍ مقدمه به د ګاونډيانو نه شروع کيږي.

نبي ﷺ فرمائي: «مَا آمَنَ بِيْ مَنْ بَاتَ شَبْعَانًا، وَجَارُهُ جَائِعٌ إِلَى جَنْبِه ، وَهو يَعْلَمُ بِهِ».[2]

"هغه سړي پۀ ما ايمان نۀ دے راوړے، چې هغۀ خپل کور کښې پۀ مړه باندې شپه تيره کړه، او ګاونډ کښې ګاونډي اوږے دے، او دۀ ته پته وه".

## (8) اَتم روايت

نبي ﷺ فرمائي: «لَيْسَ الْمُؤْمِنُ بِالَّذِي يَشْبَعُ وَجَارُهُ جَائِعٌ إِلَى جَنْبِهِ».[3]

"هغه سړے کامل ايمان والا نۀ دے، چې دے خپل ځان مړوي او ګاونډي ئې اوږے دے". د هغۀ سره امداد اوکړه.

نبي ﷺ سيدنا ابو ذر ﷺ ته وائي: اے ابو ذره! چې ستا پۀ کور کښې ستا زنانه کټوئ پخوي اوبۀ پکښې لږې زياتې کړه، او د خپل ګاونډي امداد اُوکړه، ددې پۀ وجه

---

(1) [رواه المنذري في "الترغيب والترهيب"، رقم: (3863)].

(2) [رواه الطبراني في "المعجم الكبير"، رقم: (751)].

(3) [رواه البيهقي في "الآداب"، رقم: (71)].

به الله ستاسو مينځ کښې محبت پيدا کوي.

**(9) نَهم روايت**

حديث کښې راځي، نبي ﷺ نه چا تپوس اُوکړو، د يَو ګاونډي په بل ګاونډي څۀ حق دے؟ نبي ﷺ اوفرمائيل: د يَو ګاونډي په بل ګاونډي دا حق دے:

(1) يو چې کله ګاونډي ستا نه امداد اوغوښتو، نو تۀ د خپل ګاونډي سره امداد اُوکړه، يَو بل سره امداد اُوکړئ.

(2) دويم کۀ چرته د ګاونډي پيسو ته ضرورت شو، ستا نه ئې قرض پيسې اوغوښتې، نو تۀ هغۀ له قرض پيسې ورکړه، دا د هغۀ حق دے په تا باندې.

(3) دريم کۀ ستا ګاونډي محتاج دے، نو خرچ خوراک ورته ورکوه، الله به درته اجر درکوي.

(4) څلورم نبي ﷺ فرمائي: چې کله ستا ګاونډي بيمار دے، نو تپوس له ئې لاړ شه، د هغۀ بيمار پرُسې اُوکړه، د هغۀ سره په دغه تکليف کښې شريک شه.

(5) پنځم نبي ﷺ فرمائي: کۀ ستا ګاونډي له خوشحالي اورسيږي، نو خوشحاله شه، او کۀ ستا ګاونډي ته تکليف اُورسي، نو د هغۀ په تکليف خفه شه.

(6) شپږم نبي ﷺ فرمائي: کۀ ستا ګاونډ کښې مسلمان وفات شو، نو تۀ به د هغۀ جنازه کوې، او کۀ کافر وفات شو، بيا به ئې جنازه نۀ کوې. جنازه دا د مسلمان حق دے.

(7) اُووم نبي ﷺ فرمائي: چې کله ستا خوا کښې ګاونډي دے نو د هغۀ سره ظلم او زياتے مۀ کوه، او په هغۀ باندې خپل آبادے مۀ اوچتوه، چې هغۀ کره تَوله ورځ سورے وي، او کۀ ګاونډي اجازت درکړو نو بيا خير دے.

(8) اَتم نبي ﷺ فرمائي: تۀ خپل ګاونډي ته ضرر او نقصان مۀ رسوه، او دومره پورې د ګاونډي سره احسان کوه، کچرته بازار ته لاړ شې، او تا د بازار نه ميوه راوړه، نو

د خپل ګاونډي کور ته هم لږه میوه اولیږه، او که ستا وس او طاقت نۀ رسیږي، نو بیا ئې خپل کور ته پټه راوړه.[1]

نن دور کښې زیات نقصان چې ګاونډي ته رسیږي نو پدې کښې د بل ګاونډي لاس وي، که د ګاونډي نه غلا کیږي نو پدې کښې د ګاونډي لاس وي.

**(10) لَسم روایت**

حدیث کښې راځي: نبي ﷺ صحابو ته اوفرمائیل: «مَا تَقُولُونَ فِي الزِّنَا؟» "اے زما صحابو د زنا متعلق ستاسو څۀ خیال دے؟"، صحابو ورته اووئیل: زنا حرامه ده، الله او د الله پیغبر حرامه کړې ده، او قیامته پورې به زنا حرامه وي، نبي ﷺ ورته اوفرمائیل: اے زما صحابو! یَو سړے چې د لَسو (10) زنانو سره زنا اوکړې نو دا دومره لویه ګناه نۀ ده، لکه څومره ګناه چې د ګاونډي د ښځې سره ده، چا چې د ګاونډي د ښځې سره زنا اوکړه، او بل ځائے ئې لَس (10) زناګانې اوکړې، د ګاونډي د ښځې سره زنا ترې لویه ګناه ده؛ ځکه تا باندې د ګاونډي حفاظت لازم وو، او بیا نبي ﷺ اوفرمائیل: اے زما صحابو ستاسو د غلا متعلق څۀ خیال دے؟ نبي ﷺ ته صحابو اوفرمائیل: اے د الله پیغمبره غلا حرامه ده، الله او د الله پیغمبر حرامه کړې ده، نبي ﷺ ورته اوفرمائیل: کۀ یَو مسلمان بنده پۀ نورو لَسو کورنو کښې غلا اُوکړې، دا دومره جرم او ګناه نۀ ده، څومره ګناه چې دا ده چې یَو سړے د خپل ګاونډي نه غلا اوکړې.[2] تا باندې د ګاونډي خیال ساتل لازم وو.

نبي ﷺ ته یَو سړے راغے، وائي: اے د الله پیغمبره یَو زنانه ده، مونځ هم کوي، روژې هم نیسي، حج ئې هم کړے دے، صدقې او خیراتونه هم ډېر کوي، لیکن دا

(1) [رواه الطبراني في "مسند الشاميين"، رقم: (2430)، والبيهقي في "شعب الإيمان"، رقم: (9113)].

(2) [رواه أحمد في "مسنده"، رقم: (23854)].

زنانه بد اخلاقه ده، کاونډ کښې ترې نور خلق تنګ دي، هر چا سره شر او فساد کوي، نبي ﷺ اوفرمائيل: دا ښځه به جهنم ته ځي، بيا ورته وائي: اے د الله پيغمبره يو زنانه ده مونځ هم کم کوي، يعنې نفل مونځ نۀ کوي، خيرات او صدقې ډيري نۀ ورکوي، ليکن اخلاق ئې ښائسته دي، ټول کاونډ ترې خوشحاله دے، نبي ﷺ اوفرمائيل: دا زنانه به جنت ته ځي.

کۀ نارينۀ دي، او کۀ زنانه دي، پکار دي چې خپلو کاونډيانو سره ښائسته سلوک اُوکړي. الله دې مونږ له د عمل کولو توفيق راکړي. آمين.

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



بسم الله الرحمن الرحيم

وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِالْأُنثَىٰ ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا وَهُوَ كَظِيمٌ * يَتَوَارَىٰ مِنَ الْقَوْمِ مِن سُوءِ مَا بُشِّرَ بِهِ أَيُمْسِكُهُ عَلَىٰ هُونٍ أَمْ يَدُسُّهُ فِي التُّرَابِ...الخ

(سورة النحل: 58-59)

# موضوع

# دَاولاد ترتبيت

بتاريخ: 2006-02-09

بمقام: توردهير

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# داولاد تربيت

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِينُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآت أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآت أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآت أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِه اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدَهٗ وَرَسُوْلَهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِالْأُنثَىٰ ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا وَهُوَ كَظِيمٌ ★ يَتَوَارَىٰ مِنَ الْقَوْمِ مِن سُوءِ مَا بُشِّرَ بِهِ أَيُمْسِكُهُ عَلَىٰ هُونٍ أَمْ يَدُسُّهُ فِي التُّرَابِ أَلَا سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ﴾.(1)

عزتمندو حاضرينو مسلمانانو رونړو! ما ستاسو وړاندې د پروردګار عالم د خوږ او معزز کتاب قرآن مجيد نه يو دوه آياتونه تلاوت کړل. اله العالمين دي پدې مختصر وخت کښې زما د خُلې نه د قرآن کريم او د سنتو د رسول الله ﷺ برابر خبرې اوباسي، او بيا مونږه او تاسو ټولو لره دې الله په هغې باندې د صحيح عمل کولو توفيق راکړي، ددې پروګرام سببِ انعقاد دا دے، چې يوه ماشومه پيدا شوې ده، او د هغې عقيقه ده. دا د الله رب العزت احسان دے، چې په پښتون قوم کښې داسې خلق شته، چې هغوي په دين اسلام باندې مئين دي.

د اسلام د راتلو نه مخکښې دورِ جاهليت وو، نو هغوي به جينۍ ډيره ناخوښه

(1) [سورة النحل: 58-59].

ګڼرله ما چې کوم آياتونه لوستلي وو، قرآن کريم د هغې تذکره کوي ﴿وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِالْأُنثَىٰ ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا وَهُوَ كَظِيمٌ﴾.[1]

د اسلام نه مخکښې چې به چا يَو سړي ته اووئيل: چې ستا لُور شوې ده، نو د ډيرې غصې نه به ئې مخ تَک تُور شو، او دے به د غصې نه ډک وو، چې داسې خراب زيرے ما باندې ولې اوشو؟ چې ستا لُور شوې ده، د قوم د خلقو نه به پټيدو، د وجې د بد ګڼړلو د هغې نه چې کوم زيرے ورته ورکړے شوے وو، او د ځان سره به ئې سوچ کولو، چې دا لُور ژوندئ پريدم او د ځان سره ئې حصاره کړم، او کۀ نه خاورو کښې ئې ښخه کړم. خبردار!!! ډير ناکاره دے هغه چې دوي ئې فيصله کوې، د جاهليت هغه دور پښتون کښې هم راغلے دے، چې پښتون قوم به داسې کول، چې کله به ورته الله زوې ورکړو، نو د ډيرې خوشحالئ نه به ئې ډزې کولې، او کۀ الله به ورله لُور ورکړه، نو د خفګان د وجې نه به د کور نه نۀ راوتلو. چا به دا نۀ وے وئيلے چې د فلانکي لُور شوې ده، هغۀ له مبارکئ له ځو، اوس هم خلقو کښې دا رواج دے، که د چا لُور شوې وي، نو هغۀ له څوک مبارکئ له نه ځي، او کۀ د چا زوې شوے وي، نو هغۀ له خلق مبارکئ له ځي؛ ځکه د لُور مبارکئ له تلل شرم ګڼړي، دا نۀ وائي چې دا خو د بره نه فيصلې دي، پدې باندې خفګان پکار نۀ دے.

**د الله رب العزت تقسيم**

قرآن کريم کښې الله فرمائي: ﴿لِّلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ يَهَبُ لِمَن يَشَاءُ إِنَاثًا وَيَهَبُ لِمَن يَشَاءُ الذُّكُورَ ★ أَوْ يُزَوِّجُهُمْ ذُكْرَانًا وَإِنَاثًا وَيَجْعَلُ مَن يَشَاءُ عَقِيمًا إِنَّهُ عَلِيمٌ قَدِيرٌ﴾.[2]

اولاد ورکول دا د الله کار دے، پدې کښې نۀ نارينه څۀ نقصان شته، او نۀ

---

(1) [سورة النحل: 58].

(2) [سورة الشورى: 49-50].

ښځې د زنانه څۀ نقصان شته، اولاد الله ورکوي او الله چې څنګه اوغواړي هغه شان اولاد ورکوي.

چا له چې الله اوغواړي صرف جينکۍ ورکوي، او چا له چې الله اوغواړي نو الله ورله نارينه اولاد ورکوي، يا الله جوړې جوړې ورکوي يعني جينکۍ او هلکان، او کرځۍ الله چا له چې اوغواړي شندې.

نو بعضې سړے د الله فيصله باندې خفه وي، شکر اوباسه چې الله درته لُور درکړې ده، کۀ الله درته نۀ درکولے نو چا به درله درکړے وے؟ دا د جاهلانو خلقو کار دے.

## د دورِ جاهليت حالت

پۀ دورِ جاهليت کښې چې به د چا لُور اوشوه، نو هغه به ئې ژوندۍ ښخوله، لُور ساتل ئې يَو شرم ګنړلو، ددې وجې به ئې لُور ژوندۍ ښخوله، چې کله اسلام راغے نو خلقو د لُور سره مينه او محبت شروع کړو.

## د لُور د تربيت باره کښې د نبي ﷺ فرمان

رسول الله ﷺ فرمائي: چې د کوم سړي لُورياني دي، او د هغوي ئې صحيح تربيت اُوکړو، د نارينو بچو نه ئې ورته سپک اونۀ کتل، لُوريانو ته ئې بد اونۀ کتل، د هغوي پۀ رزق کښې ئې څۀ کمے اونۀ کړو، خفګان ئې پرې ښکاره نۀ کړو، نبي ﷺ فرمائي: دغه سړے او زۀ به د قيامت پۀ ورځ داسې راروان يُو (يعنې يَوځائے)، دا ولې؟ د زوې تربيت کښې هم ثواب وو، کۀ زوې باندې مال لګوې، کۀ لُور باندې مال لګوې، او کۀ خپله ښځه باندې مال لګوې، نو دا يَوه صدقه ده، خو لُور باندې مال لګول څکه زيات ثواب دے؛ چې لُور ته خلق سپک ګوري. نو اسلام دغه رسم ختموي.

سيده عائشه ﷺ فرمائي: ما سره يَوه زنانه راغله، او د هغې دوه لورياني وي، او

هغې سوال کولو، لوریانې ورسره وې، نو ما سره نور څۀ نۀ وو، ما سره یَوه کجوره وه، هغه کجوره مې ورکړه، چې دا واخله، نور څۀ راسره نشته، هغه کجوره هغې واغسته، او هغه ئې پۀ مینځ دوه ټوټې کړه، یَوه ئې یَو لُور له ورکړه، او بله ئې بلې لُور له ورکړه، او لا ړه، بځپله ئې اونۀ خوړه، رسول الله ﷺ راغے، ما ورته حالت بیان کړو، نبي ﷺ اوفرمائیل: دا امتحان دے، د الله بځپلو بندګانو باندې کوې، او کوم انسان چې پدې دنیا کښې د خپلو لُوریانو صحیح تربیت اُوکړې، د ځامنو نه ئې ورته سپک اونۀ کتل، د قیامت پۀ ورځ به دغه لُوریانې د دۀ دپاره د جهنم د اُور نه پرده اُوګرځي.[1] څومره لوئے اجر دے!

**د سیده فاطمة الزهراء رضي الله عنها باره کښې د نبي ﷺ فرمان**

د نبي ﷺ حالت چې سړے اُوګورې. سیده فاطمة الزهراء رضي الله عنها د نبي ﷺ لُور وه، څومره مینه ئې ورسره وه! چې نبي ﷺ فرمائي: سیده فاطمه رضي الله عنها خو زما د زړۀ ټکړه ده. او کله کله چې به فاطمه رضي الله عنها راغله، نو نبي ﷺ به بشکل کړه، او د ځان سره به ئې جوښته کینوله. دا ئې خلقو ته ښودل چې خپلو لُوریانو ته به سپک نۀ ګورئ.

پښتون څۀ کوې؟ چې د زوې ئې وادۀ وي، نو څومره خوشحاله وي، او چې د لُور ئې وادۀ وي، نو سړے وائي چې غم ورکړه شوے دے، او د لُور د وادۀ پۀ وخت کښې پلار ئې نۀ وي، ورور ئې نۀ وي، ټول پکښې شرمیږي.

نبي ﷺ د سیده فاطمې رضي الله عنها نکاح بځپله تړلې وه، او سیدنا علي رضي الله عنه ته ئې وئیلې وو راشه چې نکاح درله اُوتړم. لُور او زوې دواړو ته به پۀ صحیح نظر ګورې؛ ځکه دا دواړه ستا نه پیدا دي.

(1) [رواه مسلم، رقم: (2629)].

## علامه قرطبي ليکلي دي

تفسير قرطبي واقعه ليکلې ده، د هغه صحابي چې هغهٔ وروستو اسلام راوړے وو.
نبي ﷺ ته ئې وئيل: د الله پيغمبره ډيره لويه ګناه رانه شوې ده، نبي ﷺ ورته اووئيل:
وائې څهٔ، وائي: د الله پيغمبره زهٔ پهٔ سفر باندې تلم، نو ښځې ته مې اووئيل: کهٔ الله
درته بچے درکړو، نو کهٔ هلک وي نو ښهٔ خيال ئې ساته، او کهٔ جينۍ وه، نو چې بلې
ورځې ته ئې پرې نږدې، وائي: زهٔ پهٔ سفر تلے ووم، او چې کله زهٔ د سفر نه راغلم، نو
الله زما بي بي له لور ورکړې وه، هغه ډيره زياته خائسته وه، نو هغه زما بې بي اوساتله،
او زهٔ چې کله د سفر نه راغلم، نو ما اوکتل نو زمونږ کور کښې جينۍ ګرځيدله، ما
ورته اووئيل: دا څوک ده؟ نو بي بي ما ته بهانې اُوکړې، چې دا د فلانکې ګاونډي لور
ده، نو زهٔ پوهه شوم چې دازما لور ده، نو ما هغه لور بوتله او ما يَو کوهي ته اُوغورځوله،
او هغې چغې وهلې چې ما مهٔ غورځوه، او زما زړهٔ کښې رحم نهٔ راتلو. دا د دورِ
جاهليت حال وو، چې هغوي به خپلې لورياني ژوندۍ بوتلې او هغه به ئې ښخولې.
قرآن کريم ذکر کوې: ﴿وَإِذَا الْمَوْءُودَةُ سُئِلَتْ * بِأَيِّ ذَنبٍ قُتِلَتْ﴾.[1]

د قيامت پهٔ ورځ به الله د هغې جينکو نه (چې ژوندۍ ښخې کړے شوې دې)
"تپوس اوکړې چې پهٔ کومه ګناه تاسو وژلے شوې وۍ". دا د جاهليت هغه دور وو.
مسلمان له کهٔ الله زوې ورکړې، نو دے به وائي: الحمد لله، او کهٔ الله ورله لور
ورکړې، نو دے به وائي: الحمد لله، الله ستا شکر دے، چې ما له دې اولاد راکړو.
مسلمان به پهٔ هر حال کښې د الله شکر اداء کوي.

(1) [سورة التكوير: 8-9].

## د بچې پیدائش او د اسلام طریقه

اوس چې کله بچے پیدا شو، نو تهٔ به څهٔ کوې؟ زمونږ مسلمانان کهٔ هلک پیدا شي، نو هم خپل رب ناراضه کړي، او کهٔ جینئ پیدا شي، نو هم خپل رب ناراضه کړي. پهٔ اسلام کښې د ماشوم د پیدا کیدو طریقه دا ده، چې کله ماشوم بچے پیدا شو، کهٔ هلک دے او کهٔ جینئ ده:

(1) اول د هغهٔ پهٔ ښې غوږ کښې اذان اُوکړه، او پهٔ گس غوږ کښې ورله اقامت اُوکړه. دا د نبي ﷺ سنت طریقه ده.

او دا به ولې کوې؟ علماء کرام ذکر کوې دا څکه؛ چې بچے تهٔ د مسلمان پهٔ کور کښې پیدا شوے.

(2) دویم دا چې د یَو سړي بچے پیدا شو، نو محله کښې کلي کښې یَو نیک سړے دے، دا ماشوم به د هغهٔ خوا ته بوځې، او هغه ته به وائې چې تهٔ خُلهٔ کښې کجوره یا خوږ شے اُوجوه، نو هغه کجوره یا هغه خوږ شے به د ماشوم پهٔ خُلهٔ کښې کیدې، دیته "تحنیک" وائي. دا د نبي ﷺ سنت طریقه ده.

رسول الله ﷺ ته به صحابو خپل ماشومان راوستل، او نبي ﷺ به پهٔ خپله خُلهٔ کښې کجوره یا خوږ شے اوجولو، او هغه ماشوم ته به ئې خُلهٔ کښې ورکولو، ددې مقصد دا وي چې صبا دا بچے الله نیک عمله اُوکرځوې.

(3) دریم سنت طریقه دا ده، چې کله هلک پیدا شوے دے، او اُوومه ورځ ئې شي، نو نُوم ورله کیده، د هغهٔ سَر اُوخروه، او عقیقه اُوکړه، دوه چیلې یا دوه گډان د هغهٔ د طرف نه ذبحه کړهٔ. زمونږ خلق یَو بل رسم کوې، هغهٔ رسم دا دے چې هلک پیدا شي، نو مهتیان تقسیموې، نو خلق مهتیان اُوخورې، نو هغې لوښې کښې بیا پیسې کدې، نو دا کار صحیح نهٔ دے.

اصل طريقه د اسلام دا ده، چې ماشوم پيدا شو، نو عقيقه اُوکړه، خلقو له دعوت ورکړه، د ماشوم ويښتۀ اُوخروه، او هغه ويښته د سپينوزرو سره اُوتله، او هغه خيراتې کړه، زمونږ خلق عقيقه نۀ کوې، چې هلک پيدا شې، نو د هغۀ پۀ سنت کښې پروګرام جوړ کړي، او خلقو له دعوت ورکړي.

## د بچي سنت کښې خلقو له دعوت ورکول

يَو حديث کښې راځي، يَو صحابي پسې يَو سړے دعوت له راغے، دعوت ئې ورکولو، چې زما د زوې سنت دے، تۀ به راځې، هغه ورته وائي: د رسول الله ﷺ پۀ زمانه کښې نۀ مونږ بل څوک د سنت دپاره راغوښتې، او نۀ مونږ د چا دعوت له تلې يُو. زمونږ خلق پۀ اسلامې طريقه سنت نۀ کوې، څوک ورله ډيګونه پخوې، څوک ورته پالنګ کوې، څوک ورله واسکټ کوې، دا خو د هندوانو طريقه ده.

د مسلمان طريقه خو دا ده، چې تۀ تحنيک اُوکړه، او د هغې نه ورستو عقيقه اُوکړه، او چې ماشوم سنت کوې، نو دغسې ماشوم سنت کړه، چا له دعوت مۀ ورکوه، او کوم چې فقهاء ذکر کوې "دعوت الخِتان" هغه دا نۀ دے، هغۀ ورستو چې ما شوم روغ شو، د شکرئې پۀ طور باندې د ماشوم د جوړيدو نه ورستو کۀ څوک څۀ شے خيراتې ورکوې (خو لازم پرې نۀ دې). دا د اسلام طريقه ده.

او چې جينۍ پيدا شې، نو د جينۍ عقيقه به کوې، يَو چيلۍ يا يَو ګډ به ذبحه کړې، او د ماشومې ويښتۀ به اُوخرې، او هغه به د سپينوزرو سره اُوتلې او خيراتې به ئې خلقو له ورکړې، دا د نبي ﷺ سنت طريقه ده، او د هغې نه بعد پۀ اُومه ورځ به ورله خائسته نُوم کيدې، د انبياؤ يا د نيکانو خلقو نُوم به ورله کيدې، زمونږ د خلقو چې بچے اُوشې، نو بيا ورله نُوم خوښوې، داسې نُوم چې چرته تې وي (TV) کښې درامو کښې ښۀ مشهور وي، نو هغه نُوم ورله ږدې، نا مسلمان چې خپل بچې له نُوم

ږدې نو د انبياء کرامو صحابه کرامو او د نيکانو خلقو نُوم به ورله ږدې، دا نه چې کوم نوے نُوم راوتے دے، نو هغه به ورله اِږدي.

**د بچي په مور پلار حقوق**

د بچي په مور پلار درې حقوق دي. امام سمرقندي ﷫ روايت ذکر کوي، نبي ﷺ فرمائي: د بچي په مور پلار درې حقوق دي: (1) يَو حق ئې دا دے، چې بچي له به خائسته نُوم ږدي، (2) دويم حق ئې دا دے، چې کله بچے په خبرو باندې پوهه شو، بيا به ورته صحيح تعليم ورکوي، اسلامي تعليم به ورله ورکوي، (3) دريم حق ئې دا دے چې کله دا بچے بلوغ ته ورسيدو نو وادهٔ به ورله کوي.

**سيدنا عمر ﷜ سره د يَو سړي ملاقات**

يَو روايت کښې راځي، عمر ﷜ سره يَو سړے راغے، ورته وائي: اے عمر! دا زما بچے دے، دے زما خبره نهٔ مني، سيدنا عمر ﷜ د هغه سړي هغه بچے را اوغوښتو، ورته وائي: د پلار دومره حق دے، د پلار هغه تمام حقوق ئې ورته بيان کړل، نو هغه بچي ورته اووئيل: چې اے عمر! دا خو منم، خو د بچي په مور او پلار څهٔ حق شته، او کهٔ نشته؟ سيدنا عمر ﷜ ورته اووئيل: چې آؤ، حق ئې پرې شته، وائي: څهٔ حقوق ئې دي؟ هغه ورته وائي: (1) يَو حق د بچي دا دے چې هغهٔ له صحيح نسب کښې وادهٔ اُوکړي، صحيح ښځې سره ورله وادهٔ اُوکړي، د بدنامې ښځې سره به وادهٔ نهٔ کوي؛ ځکه صبا به خلق د هغې بچي له پيغور ورکوي، نن صبا خلق صرف شهوت پوره کوي، دا نهٔ کوري چې آيا دا ځائے د وادهٔ ما له مناسب دے؟ دے خو صرف خائست پسې ځي. نبي ﷺ فرمائي: «تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ لِأَرْبَعٍ: لِمَالِهَا وَلِحَسَبِهَا وَجَمَالِهَا وَلِدِينِهَا، فَاظْفَرْ بِذَاتِ الدِّينِ، تَرِبَتْ يَدَاكَ».[1]

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (5090)، ومسلم، رقم: (1466)].

کله چې يَو سړے د يَوې ښځې سره واده کوي، نو د څلورو خبرو د وجې نه: (1) يَو د مال د وجې نه، (2) دويم د ښائست د وجې نه، (3) دريم د نسب د وجې نه، (4) او څلورم د ديندارئ د وجې نه. اوس که يَو زنانه داسې ده، چې څلور واړه خبرې پکښې موجود دي، نو ښه خبره ده، او که چرې څلور واړه خبرې پکښې موجود نهٔ وي، نو بيا نبي ﷺ فرمائي: د ديندارې ښځې سره نکاح اُوکړه، لاس دې خاورې شه. يعني تيزې ورته ورکوې، چې د ديندارې ښځې سره نکاح اُوکړه.

(2) دويم حق ورته عمر ﷺ وائي: چې بچې له به ښائسته نُوم کيدې. (3) دريم حق ئې دا دے، چې بچې له به ښهٔ تعليم ورکوې. هغه بچې عمر ﷺ ته اووئيل: زما خبره لږه واوره، وائي: دا زما پلار دے، دهٔ يَو زنانه سره نکاح کړې ده، چې د هغې پهٔ وجه اوس هم ماته خلق پيغور راکوي، څلور سوه درهمه بانديَ يَو زنانه اغستې ده، او څهٔ پته ئې نهٔ لګې چې د کوم ځائے ده؟ او دويم دا زما پلار دے، د ماله داسې نُوم کيښودے دے، چې هغه صحيح نُوم نهٔ دے، ماله ئې "جُعل" نُوم کيښودے دے، او جُعل عربئ کښې "کُنکوټ" ته وائي، ده ماله کُنکوټ نُوم ايښے دے. او بيا عمر ﷺ ته وائي: چې اے عمر رضي الله عنه! دا زما پلار دے، او دهٔ ماته يَو تکے هم د قرآن نهٔ دے ښودلے، عمر ﷺ ورته پلار ته وائي: چې داسې خبره ده، هغه پلار ئې ورته وائي: آؤ جي، نو سيدنا عمر ﷺ ورته وائي: پاسه زما د خوانه، وائي: تا مخکښې د بچې حق نهٔ دے اداء کړے، د هغهٔ حقوق دې تول د خپو د لاندې کړې دي، نو نن که هغهٔ ستا حقوق د خپو د لاندې کوي، نو دا خو څهٔ لرې خبره نهٔ ده. نو چې مسلمانان مخکښې د بچو حق اداء کړي، بچې له ښائسته نُوم کيدي، هغهٔ له اسلامي تربيت ورکړي، هغه بانديَ د الله کتاب ياد کړي، نو دغه بچے به صبا د مور پلار خدمت کوي؛ ځکه ديندار سړے د مور پلار نافرماني نهٔ کوي، خومره چې يَو بچے د الله نافرمانه وي،

دومره هغه د مور پلار نافرمان وي، چې يَو سړے د الله حکم نهٔ مني نو د مور پلار به څهٔ خبره اُومنې، دا څومره نافرمانۍ چې د مور پلار کيږي نو دا مور پلار د بچي حق نهٔ دے اداء کړے.

يَو روايت کښې راځي، سيدنا ابو حفص البکندي ﷺ ته يَو سړے راغے، او ورته وائي: چې زما بچے ما هر وخت وهي، دهٔ ته لږ نصيحت اُوکړه، هغهٔ ورته اووئيل: عجيبه خبره ده، بچے به څنګه پلار اووهي!؟ هغهٔ ورته وائي: تا دې بچي له تعليم ورکړے دے؟ وائي: نا، د الله کتاب دے، ورته ښودلے دے؟ هغهٔ ورته وائي: نا، نو هغهٔ ورته وائي: دے څهٔ کار کوي؟ هغه پلار ئې ورته وائي: دے خو زمينداره کوي، سحر پټي ته ځي، او ماښام راځي، هغه عالم ورته وائي: شکر اوباسه چې مرهٔ کوې دې نهٔ؟ هسې وهل خو خير دے، وائي: ولې؟ وائي: تا خو دهٔ له صرف د دنيا تربيت ورکړے دے، تا خو دهٔ له دا نهٔ دي ښودلي، چې زهٔ دي پلار يم، دا دې مور ده، او دا دې خور ده، دا خو ستا غلطي ده.

مسلمانانو له پکار دي، چې خپلو بچو له صحيح تربيت ورکړي، دا دنيا کښې هم خوشحالي ده، او آخرت کښې هم خوشحالي ده.

حديث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: «إِذَا مَاتَ الْإِنْسَانُ انْقَطَعَ عَنْهُ عَمَلُهُ إِلَّا مِنْ ثَلَاثَةٍ: إِلَّا مِنْ صَدَقَةٍ جَارِيَةٍ، أَوْ عِلْمٍ يُنْتَفَعُ بِهِ، أَوْ وَلَدٍ صَالِحٍ يَدْعُو لَهُ».[1]

"کله چې بني آدم وفات شي، نو د هغهٔ عمل ختم شي، بيا هغه نور عمل نهٔ شي کولے، درې کسان دي چې د هغوي عمل نهٔ ختميږي: (1) يَو «إِلَّا مِنْ صَدَقَةٍ جَارِيَةٍ» صدقه جاريه ده، يَو سړي خيرات کړے دے، جومات ئې جوړ کړے دے، لار ئې

(1) [رواه مسلم، رقم: (1631)].

جوړه کړې ده، کوم چې ئې ګنستے دے، او خلق د هغې نه اُوبۀ څکي، مسافر خانه ئې جوړه کړې ده، (2) دویم نبي ﷺ فرمائي: «أَوْ عِلْمٍ يُنْتَفَعُ بِهِ» یا یو سړي علم کړے دے، او هغې باندې خلق فائدې اخلي، او دے وفات شوے دي، نو د مرګ نه بعد هم دۀ ته ثواب رسیږي، دنیا کښې خلقو ته علم ښودلے دے، او خلق پۀ هغې باندې عمل کوي، نو کۀ دے مړ شوے دے، د هغې ثواب ورته رسي، (3) دریم نبي ﷺ فرمائي: «أَوْ وَلَدٍ صَالِحٍ يَدْعُو لَهُ» نیک عمله بچے دے، چې د مور او پلار د مرګ نه بعد دعاګانې غواړي، نو ددې ثواب مړې پسې رسي".

نو مسلمانان له پکار دي چې خپل اولاد دین طرف ته او قرآن طرف ته راولي.

**د یو عالم قول**

"إِنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ الَّذِيْ جَهَّلَ وَلَدَهُ".[1]

"د قیامت پۀ ورځ به هغه انسان ته سخت عذاب میلاویږي چې کوم پلار خپل بچي د دین نه جاهل پریخودے وو" د الله دین او د الله کتاب ئې پرې نۀ وو زده کړے.

قرآن کریم کښې الله فرمائي: ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ قُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا وَقُودُهَا ٱلنَّاسُ وَٱلْحِجَارَةُ﴾.[2]

"اے مؤمنانو! خپل ځانونه او خپل اولاد د جهنم د اُور نه بچ کړئ".

صرف دا خوشحالي نۀ ده، چې زوې دې اُوشو، اصل خوشحالي دا ده، چې د بچي راتلونکې زندګي جوړه کړه، دا اولاد د الله امانت دے، صبا به درنه الله ددې امانت تپوس کوي. علماء کرام ذکر کوي: "مَا ذَا عَلَّمْتَهُ وَمَا ذَا أَدَّبْتَهُ".[3]

---

(1) [فتاوی رحیمیه].

(2) [سورة التحريم: 6].

(3) [فتاوی رحیمیه].

"قیامت کښې به تپوس کیږي، تا دې خپل بچې ته څۀ ښودلې وو، او څۀ ادب دې ورکړے وو؟".

حدیث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: «مُرُوا أَوْلَادَكُمْ بِالصَّلَاةِ وَهُمْ أَبْنَاءُ سَبْعِ سِنِينَ وَاضْرِبُوهُمْ عَلَيْهَا وَهُمْ أَبْنَاءُ عَشْرِ سِنِينَ وَفَرِّقُوا بَيْنَهُمْ فِي الْمَضَاجِعِ».(1)

"چې بچے دې د اُوو (7) کالو شي، نو د مونځ حکم ورته اُوکړئ، او چې لَسو (10) کالو ته اُورسي او مونځ نۀ کوي، نو بیا ئې اُووهئ". نبي ﷺ سیدنا معاذ رضی الله عنه ته نصیحت کوي، لَس نصیحتونه ئې ورته کړي دي، پۀ آخر کښې ورته نبي ﷺ وائي: د خپل اولاد نه د ادب امسا مۀ اُوچتوه، ادب ورته ورکوه، اسلامي طریقې باندې روان کړه.

نبي ﷺ فرمائي: هر ماشوم چې پیدا کیږي، نو دا پۀ دین اسلام باندې پیدا کیږي، نو مور پلار ئې یا یهودي کړي، یا ئې نصراني کړي، یا ئې مجوسي کړي. دا د مور پلار نقصان دے. کۀ ددې زماني اولاد خراب دے دا د مور پلار نقصان دے.

نبي ﷺ فرمائي: «أَلَا كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ».(2)

"هر یَو پۀ تاسو کښې ذمه وار دے، د هر یَو ذمه وار نه به د خپلو کشرانو او رعیت باره کښې تپوس کیږي". نو مسلمانانو له پکار دي چې د خپلو بچو صحیح تربیت اُوکړي. الله دې مونږ له د عمل کولو توفیق راکړي. آمین.

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



(1) [رواه أبو داود، رقم: (495)].

(2) [رواه البخاري، رقم: (7138)، ومسلم، رقم: (1829)، والترمذي، رقم: (1705)، وأبو داود، رقم: (2928)].

بسم الله الرحمن الرحيم

الَّذِينَ يُنفِقُونَ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ

(سورة آل عمران: 124)

# موضوع

# قطع تعلق

**بمقام: جلسئ**

**خطيب**

**فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله**

# قطع تعلق

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْه وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِه اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّآ إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدَهٗ وَرَسُوْلَهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ الله الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿الَّذِينَ يُنفِقُونَ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ﴾.[1]

وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَيْسَ الشَّدِيدُ بِالصُّرَعَةِ، إِنَّمَا الشَّدِيدُ الَّذِي يَمْلِكُ نَفْسَهُ عِنْدَ الغَضَبِ».[2]

زما عزتمندو مسلمانانو وروڼرو! پدې جُمعه کښې دا خبرې ذکر کوو، چې صله رحمي کټ کول او خپلولي ختمول څومره لويه ګناه ده؟ غم ښادې پريښودل، خبرې اترې بندول، يو بل سره تعلقات ختمول ددې څومره جرم دے؟ او څومره ګناه ده؟ د مسلمانانو صفت نۀ دے. د مسلمانانو صفت دا دے ﴿أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ﴾.[3]

د مسلمانانو صفت به دا وي، "چې کافرانو باندې به سخت کوي، خو په خپل مينځ کښې به يو بل باندې رحم کوي"، او يو بل باندې به مهربانه وي، يو بل سره به

(1) [سورة آل عمران: 124].

(2) [رواه البخاري، رقم: (6114)، ومسلم، رقم: (2609)].

(3) [سورة الفتح: 29].

مينه او محبت کوي، د يو بل سره به اسلامي رورولي ساتي.

نبي ﷺ فرمائي: «الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ».(1)

"يو مسلمان د بل مسلمان ورور دے".

د ورور پشان به ورته کوري. قرآن کريم کښې الله فرمائي: ﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ فَأَصْلِحُوا بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ﴾.(2)

الله وائي: "مؤمنان رونړه رونړه دي، چې کله ئې مينځ کښې خلاف راغے، نو نورو مسلمانانو له پکار دې چې د هغوي مينځ کښې صُلح اُوکړي". يو مسلمان به د بل مسلمان خير طلب کوي، يو مسلمان به د مسلمان فائده طلب کوي، يو مسلمان به د بل مسلمان خوشحالي طلب کوي، يو مسلمان به پهٔ بل مسلمان باندې خفه کيږي، د هغهٔ پهٔ خوشحالئ به خوشحاليږي، او د هغهٔ پهٔ تکليف به خفه کيږي، دا د مسلمان صفت دے. او کهٔ دا صفت مسلمان کښې نهٔ وي، نو دا کامل مسلمان نهٔ دے.نبي ﷺ فرمائي: «لاَ يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ، حَتَّى يُحِبَّ لِأَخِيهِ مَا يُحِبُّ لِنَفْسِهِ».(3)

"تر هغه وخته پورې يو سړے کامل مؤمن نشي جوړيدے تر څو پورې چې کوم شے ځان له خوښوي چې هغه شے ئې بل مسلمان له نهٔ وي خوښ کړے". مسلمان به د بل مسلمان خير خواهي لټوي.

**د مسلمانانو صفت**

قرآن کريم کښې الله فرمائي: ﴿الَّذِينَ يُنْفِقُونَ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (2442، و6951) ومسلم، رقم: (2564، و2570)، والترمذي، رقم: (1426، و1927)، وأبو داود، رقم: (4893)].

(2) [سورة الحجرات: 10].

(3) [رواه البخاري، رقم: (13) والترمذي، رقم: (2515)، والنسائي، رقم: (5016، و5017، و5039)].

وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ﴾.[1]

"دا مؤمنان هغه کسان دي چې دوي مال لګوي د الله په لار کښې په خوشحالۍ کښې او تکليف کښې دوارو حالاتو کښې مال لګوي" بل صفت ئې دا دے "چې خپله غصه دباووي" خپله غُصه کنترول کښې راولي، بل مسلمان ته نقصان نهٔ رسوي، بل صفت "دے به نورو خلقو ته معافي کوي" يو سړي ورته نقصان اُورسولو، نو دے به هغه بل مسلمان د الله د رضا دپاره معاف کوي.

د صبر مقام

قرآن کريم کښې الله رب العزت فرمائي: ﴿وَلَمَن صَبَرَ وَغَفَرَ إِنَّ ذَٰلِكَ لَمِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ﴾.[2]

"چا چې صبر اُوکړو په تکليف باندې او معافي ئې اُوکړه هغه چا ته چې چا ورسره زياتے کړے وو، دا د ښو کارونو نه دے" دا ډير مضبوط کار دے.

نبي ﷺ ته د الله حکم

قرآن کريم کښې الله نبي ﷺ ته حکم کوي: ﴿خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِينَ﴾.[3]

"اے زما پيغمبره ﷺ! خلقو ته معافي کوه" خپل خوي دا اُوګرځوه چې خلقو ته معافي کوه "او خلقو ته د نيکۍ حکم کوه، او مخ واړوه د جاهلانو نه". نو مسلمان به بل مسلمان ته د الله د رضا دپاره معافي کوي.

دَ ﴿وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ﴾ تفسير

ددې آيت په تفسير کښې تفسير قرطبي ليکلي دي: "وَذَلِكَ مِنْ أَعْظَمِ الْعِبَادَةِ،

---

(1) [سورة آل عمران: 124].

(2) [سورة الشورى: 43].

(3) [سورة الأعراف: 199].

وَجِهَادِ النَّفْسِ".[1]

مسلمان ته معافي كول او هغه غُصه چې سړي ته راغلې ده هغه كنټرول كښې راوستل دا په تمامو عباداتو كښې لوې عبادت دے. يَو سړے د الله د رضا دپاره معاف كول دا لوې جهاد دے د نفس سره، چې ته خپله غُصه كنټرول كښې راولې، بيا وائي:
فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَيْسَ الشَّدِيدُ بِالصُّرَعَةِ وَلَكِنَّ الشَّدِيدَ الَّذِي يَمْلِكُ نَفْسَهُ عِنْدَ الْغَضَبِ».[2]

"نبي ﷺ وئيلې دي: چې پهلوان هغه څوک نۀ دے، چې هغه خلق ډير راغورځوي، بلكه پهلوان هغه څوک دے چې هغه د غُصې په وخت كښې خپل نفس په كنټرول كښې راولي". چې ددۀ د لاس او ژبې نه غلط حركت اونۀ شي، دا صحيح پهلوان دے.

**د علماؤ اقوال**

(1) اول قول: "لَا تَعُدْ نَفْسَكَ مِنَ النَّاسِ مَا دَامَ الْغَضَبُ غَالِبًا عَلَيْكَ".[3]

خپل ځان د خلقو نه شماره چې زۀ سړے يم، ترڅو چې غُصه په تا باندې غالبه وي.

(2) دويم قول: "أَوَّلُ الْغَضَبِ جُنُوْنٌ، وَآخِرُهُ نَدَمٌ".[4]

"د غصې اول سر كښې سړے ليونے وي".

كۀ هر څۀ ئې لاس ته ورغلل نو ګوزار كوي، او آخر د غصه كښې هغه پښيمانتيا ده، چا ته څۀ نقصان اُورسوي، يا څوک قتل كړي، او بيا په شاړه ميره كښې روان شي، نو بيا ورته پته اُولګي چې دا مې څۀ اُوكړل!!!؟ اوس به څۀ كوم؟ په هوش

(1) [تفسير القرطبي تحت آية سورة آل عمران: 134].

(2) [رواه البخاري، رقم: (6114)، ومسلم، رقم: (2609)].

(3) [هداية المرشدين إلى طرق الوعظ والخطابة: 509].

(4) [كشف المشكل من حديث الصحيحين لأبي الفرج ابن الجوزي: 1017/1، و540/3].

کښېږ راشي، خو هغه کار ورسره شوے وي. نو د مسلمان سره جنګ کول یا د مسلمان سره خبرې بندول دا د مسلمان شان نۀ دے.

**(1) یَو روایت**

نبي ﷺ فرمائي: یَو سړے یَو ګوټ نۀ تیروي د الله د رضا دپاره چې هغه زیات اجر والا وي، مګر د هغې ګوټ نه چې کومه غصه ده خپل ځان باندې تیره کړه.[1]

**(2) دویم روایت**

نبي ﷺ فرمائي: کله چې د قیامت ورځ شي، «یُنَادِي مُنَادٍ: مَنْ کَانَ أَجْرُهُ عَلَی اللهِ فَلْیَدْخُلِ الْجَنَّةَ».[2]

"یَو آواز کونکے به آواز اوکړي، چې هغه خلق چې دَ چا اجر په الله باندې دے، نو هغوي دې جنت ته لاړ شي" څوک دي هغه خلق چې د هغوي اجر په الله باندې دے؟ چې دنیا کښې خالص د الله د رضا دپاره خلقو ته معافي کړې وه، د غه خلق دي پاسي او جنت ته دي لاړ شي.الله به ئې بے حسابه جنت ته بوځي. دا ولې؟ چې تۀ د الله یَو کمزورے بنده ئې، او تۀ دومره کولے شې، چې د الله یَو بنده معاف کولے شې، نو الله تا معاف کولے شي، د یَو سړي نه نقصان اُوشو، او تا معاف کړو، نو الله به تا معاف کړي، نو صله رحمي کټ کول لویه ګناه ده.پکار دې چې مسلمانان صله رحمي پالي.

**(3) دریم روایت**

نبي ﷺ فرمائي: یَو مسلمان به د بل مسلمان سره څۀ کوي؟ نو نبي ﷺ فرمائي: «الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ، لاَ یَظْلِمُهُ وَلاَ یَخْذُلُهُ، وَلاَ یَحْقِرُهُ التَّقْوَی هَاهُنَا، وَیُشِیرُ إِلَی صَدْرِهِ ثَلاَثَ مَرَّاتٍ».

---

(1) [رواه ابن ماجة].

(2) [رواه البهقي في "شعب الإیمان"، رقم: (7960)].

"يَو مسلمان د بل مسلمان ورور دے، يَو مسلمان به په بل مسلمان باندې ظلم نۀ کوي، يَو مسلمان به بل مسلمان نۀ شرموي، (پرده به ورباندې اچوي) نۀ به بل مسلمان سپکوي او نۀ به ئې بے عزته کوي، او بيا نبي ﷺ درې ځله اوفرمائيل: چې تقوٰی او پرهيزګارې دا د انسان زړۀ کښې ده". ظاهرې خبرو باندې يَو انسان متقي نشي جوړيدے.

بيا نبي ﷺ اوفرمائيل: «بِحَسْبِ امْرِئٍ مِنَ الشَّرِّ أَنْ يَحْقِرَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ».

مسلمان کۀ نور ډير ښۀ سړے دے، خو د هغۀ د شر دپاره دا خبره بس دے، چې دے خپل ورور مسلمان سپکوي، او بے عزته کوي ئې، کۀ دے شپه ورځ مونځونه کوي نور اعمال ئې هم برابر دي، ليکن چې دے مسلمان باندې پرده نۀ اچوي، د مسلمان د بے عزتئ کوشش کوي، نو نبي ﷺ وائي: ددۀ دپاره دغه شر کافي دے. او بيا نبي ﷺ فرمائي: «كُلُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ حَرَامٌ، دَمُهُ، وَمَالُهُ، وَعِرْضُهُ».[1]

"هر يَو مسلمان په بل مسلمان باندې حرام دے د مسلمان وينۀ تويول په بل مسلمان حرام ده، د مسلمان بے عزتي به نۀ کوي، د مسلمان مال به بغير د هغۀ د اجازت نه نۀ اخلي". رسول الله ﷺ فرمائي: «لَا يَحِلُّ مَالُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ إِلَّا بِطِيبِ نَفْسٍ مِنْهُ».[2]

"د يَو مسلمان مال تاله جائز نۀ دے مګر په هغه وخت کښې چې هغه خوشحاله وي". د مسلمان مال تاله جائز نۀ دے، د مسلمان بے عزتي تاله جائز نۀ ده، د مسلمان مرګ تا دپاره جائز نۀ دے.

يَو راويت کښې راحي، رسول الله ﷺ فرمائي: «لَزَوَالُ الدُّنْيَا أَهْوَنُ عَلَى اللهِ مِنْ قَتْلِ رَجُلٍ مُسْلِمٍ».[3]

---

(1) [رواه مسلم، رقم: (2564)].

(2) [رواه البيهقي في "شعب الإيمان"، رقم: (5105)].

(3) [رواه الترمذي، رقم: (1395)، وابن ماجة، رقم: (2619)].

"د يَو مسلمان مرګ الله ته دومره ګران دے، چې توله دنيا روانه کړه، الله دومره نهٔ خفه کيږي، څومره چې الله د مسلمان پهٔ مرګ خفه کيږي".

يَو حديث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: د قيامت پهٔ ورځ باندې الله چې تپوس کوې، نو ړومبے تپوس به الله د وينې باره کښې کوې، چې تا د مسلمان وينه ولې تُوې کړې وه؟ پهٔ شريعت کښې د دريو وجونه د مسلمان مرګ او قتل روا او جائز دے. او د هغې تفصيل د زنا پهٔ بيان کښې تير شوے دے.

**د سيدنا انس ﷺ روايت**

سيدنا انس ﷺ وائي: چې نبي ﷺ فرمائي: «لاَ تَقَاطَعُوا، وَلاَ تَدَابَرُوا، وَلاَ تَبَاغَضُوا، وَلاَ تَحَاسَدُوا» "يَو بل سره خپلولي مهٔ ختموئ، يَو بل پسې خبرې مهٔ کوئ، د يَو بل سره بُغض مهٔ ساتئ، او د يَو بل سره حسد مهٔ کوئ" او بيا نبي ﷺ فرمائي: «وكُونُوا عِبَادَ اللهِ» "شئ بندګان د الله ورونړه ورونړه د رونړو پشان زندګي تيروئ".[1]

**خو يَوه خبره ده:** علماء کرام ذکر کوې: "تَعَاشَرُوْا كَالْإِخْوَانِ، وَتَعَامَلُوْا كَالْأَجَانِبِ".[2]

يَو بل سره چې ژوند تيروئ داسې ژوند تير کړئ لکه چې دوه ورونړه ژوند تيروي، او د يَو بل سره چې لين دين کوئ، يَو بل سره معامله کوئ نو د پردو خلقو پشان معامله کوئ، معامله کوئ نو صفا معامله کوئ. دا بيا ورستو د خفګان سبب جوړيږي، او بعضې سړے وائي: زما او ددهٔ مينځ کښې څهٔ نشته، کهٔ ماله ئې پيسې راکړې، او کهٔ ما ورله پيسې ورکړې، نو د هغوي مينځ کښې بيا ډيرې خبرې راشي.

**د نبي ﷺ فرمان مبارک**

نبي ﷺ فرمائي: «لاَ يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلاَثٍ».[1]

---

(1) [رواه مسلم ، رقم: (2563)، والترمذي، رقم: (1935)].

(2) [جديد مسائل كا حل: 342].

"د يَو مسلمان دپاره دا جائز نهٔ دي، چې هغه د خپل ورور مسلمان سره د دريو (3) ورځو نه سيوا خبرې بندې کړي".

نن د مسلمانانو حالت اوګوره، وائي: دهٔ سره زما نهٔ لګي. چې ورته اووائي: جومات ته ولې نهٔ راځې؟ وائي: يره جومات ته درځم، خو دا فلانکے مې په سترګو ډير بد لګي، نو دهٔ سره صف کښې مونځ نهٔ کيږي، نو ځکه جومات ته نهٔ درځم، خوا کښې به ئې ورسره زمکه وي، هغې زمکې ته ځي، خوا کښې به ئې ورسره کور وي، هغې کور ته به ځي، چې غم اوښې حجره کښې ورسره يَوځائے ناست وي، خو اصل کښې دښمنې ئې د الله د کور سره ده. او کله وائي: چې دا صف کښې کوم خلق ولاړ دے، نو دوي سره صف کښې مونځ نهٔ کيږي، نو تهٔ داسې پاکه فرشته ئې، تاله د آسمان نه فرشتې راکوزول غواړې، چې هغوي سره صف کښې اودريږي، ستا د مسلمان سره صف کښې مونځ نهٔ کيږي، تهٔ خپل مونځ کوې، او بل مسلمان خپل مونځ کوي، نو ستا د بل مسلمان سره څنګه په صف کښې مونځ نهٔ کيږي؟

دا ئې اصل کښې د جومات سره دښمنې او بُغض حسد پيدا شوے دے. ډير خلق داسې دي، چې د هغوي په زمکو د يَو بل سره دښمنې ده، نو هغوي هغه خپله دښمنې جومات له راوړي، وائي: يره د فلانکي سره مې نهٔ لګي، دا ئې د جومات سره نهٔ لګي، دا د شيطان هغه وسوسه ده.

د يَو مسلمان سره د دريُو (3) ورځو نه سيوا خبرې بندول حرام دي. ډير مسلمانان داسې دي چې هغوي مونځونه کوي، هغوي روژې نيسي، هغوي تلاوتونه کوي، هغوي عبادتونه کوي، ترڈې پورې چې د شپې تهجد هم کوي، خومره مئين دي،

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (6073، و6237)، ومسلم، رقم: (2560)، والترمذي، رقم: (1932) ،وأبو داود، رقم: (4914)].

د الله په دين باندې؟ ليکن بل طرف ته د هغهٔ د يَو مسلمان سره نالکې ده، ددهٔ دا مونځ د الله دربار کښې قبول نهٔ دے، ددهٔ دا مونځ آسمان ته نهٔ خيژي، روژه ئې نهٔ قبليږي، او چې ورته اووائي: چې روغه اُوکړه، نو ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُ اتَّقِ اللَّهَ أَخَذَتْهُ الْعِزَّةُ بِالْإِثْمِ﴾.[1]

"چې کله ورته اووئيلے شي دهٔ ته چې د الله نه اويريږه، نو د ګناه پهٔ کولو غيرت کښې راشي" چې زهٔ به اوس ددهٔ سره روغه کوم، دهٔ خو ما سره ډير ظلمونه کړي دي، دا د جاهليت غيرت دے دا د ايمان غيرت نهٔ دے.

مسلمان ته خو اُووايه، چې ستا پدې کار کښې خير دے، نو هغه وائي: چې زما کوم کار کښې خير دے، زهٔ به هم هغه کار کوم، خلاف شرع باندې مسلمان غيرت نهٔ کوي.

د صحابو تاريخ چې سرے اُوکوري، څومره کارونه هغوي د الله د رضا دپاره کړي دي، او تهٔ صرف دا نهٔ شي کولے چې د يَو مسلمان سره د الله د رضا دپاره روغه اُوکړې.

**د سيدنا ابو ايوب انصاري ﷺ روايت**

ددهٔ نه روايت دے، «أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ: لاَ يَحِلُّ لِرَجُلٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلاَثِ لَيَالٍ، يَلْتَقِيَانِ: فَيُعْرِضُ هَذَا وَيُعْرِضُ هَذَا، وَخَيْرُهُمَا الَّذِي يَبْدَأُ بِالسَّلاَمِ».[2]

"نبي ﷺ فرمائي: د مسلمان دپاره دا جائز نهٔ دي، چې د بل مسلمان سره د دريُو (3) نه زياتې خبرې بندې کړي، او چې يَو بل سره ميلاؤ شي، نو يَو يوخوا مخ واړوي او بل بل خوا مخ واړوي". نبي ﷺ فرمائي: دا د مسلمان د شان سره مناسب نهٔ دي.

**نبي ﷺ ددې علاج ښائي**

پدې دواړو کښې غوره انسان هغه دے چې هغه پهٔ سلام کښې مخکښې شو، او د مسلمان ورور سره ئې خبرې شروع کړې، دا بهترين انسان دے.

---

(1) [سورة البقرة: 206].

(2) [رواه البخاري، رقم: (6077)].

**د سیدنا ابو هریره ﷺ روایت**

سیدنا ابو هریره ﷺ فرمائي: چې نبي ﷺ فرمائي: «لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثٍ، فَمَنْ هَجَرَ فَوْقَ ثَلَاثٍ فَمَاتَ دَخَلَ النَّارَ».[1]

"یو مسلمان دپاره جائز نهٔ دي، چې دے د خپل ورور مسلمان سره د دریو (3) ورځو نه زیاتې خبرې بندې کړي"، او کهٔ خبرې ئې بندې کړي نو سزا ئې څهٔ ده؟ نو نبي ﷺ فرمائي: چا چې د خپل ورور مسلمان سره د درېو ورځو نه سیوا خبرې بندې کړې، او کله دا سړے مړهٔ شو نو دا سړے به جهنم ته ځي.

څومره لويه ګناه ده، زمونږ د خلقو جهنم خوښ دے، خو د مسلمان سره ئې روغه نهٔ ده خوښه، د يَو بل سره ئې نزدې والے نهٔ دے خوښ. دا خو هسې مونږ وايُو: چې زمونږ اجر او ثواب پکار دے، چې کومو کارونو کښې اجر او ثواب دے، هغه مونږ شاته غورځولي دي.

**د نبي ﷺ فرمان مبارک**

نبي ﷺ فرمائي: «لَا يَكُونُ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ مُسْلِمًا فَوْقَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ» "جائز نهٔ دې د يَو مسلمان دپاره چې د بل مسلمان سره د درېو ورځو نه زیاتې خبرې بندې کړي"، «فَإِذَا لَقِيَهُ سَلَّمَ عَلَيْهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ كُلُّ ذَلِكَ لَا يَرُدُّ عَلَيْهِ» "پس کله چې د يَو مسلمان سره مخامخ شوې او تهٔ دا وائې: چې زهٔ خپل رب رضا کوم نو درې کرتې ورباندې سلام واچوه" ورته وايه: "السلام علیکم" کچرته هغهٔ درله جواب درکړو، نو ډېره ښه خبره ده، او کهٔ جواب ئې در نهٔ کړو، نو بیا ورته اووايه: "السلام علیکم" کهٔ جواب ئې درکړو، نو ډېره ښه خبره ده، او کهٔ جواب ئې درنهٔ کړو، نو بیا ورته اووايه: "السلام علیکم" کهٔ جواب

(1) [رواه ابو داود، رقم: (4914)].

ئې په درېيم ځل هم درنهٔ کړو، نو ستا غاړه خلاصه شوه، او ټوله ګناه په هغهٔ باندې ده. بيا نبي ﷺ فرمائي: «فَقَدْ بَاءَ بِإِثْمِهِ» "تحقيق سره ټوله ګناه هغهٔ باندې ده".[1]

بيا تهٔ د ګناه نه پاک ئې. کهٔ تهٔ د ګناه نه ځان بچ کوې، نو آسانه طريقه دا ده، يَو سړے تا سره خبرې نهٔ کوې، او ستا زړهٔ غواړې چې دا خو ډېره زياته ګناه ده، نو دا طريقه ورسره اُوکړه: چې ورشه، سلام ورباندې واچوه، درې ځله ورباندې سلام واچوه، کهٔ جواب ئې درکړو، نو روغه اُوشوه، او کهٔ جواب ميلاؤ نهٔ شو، نو ستا غاړه خلاصه شوه، او ټوله ګناه په هغهٔ باندې ده، او کهٔ دا کار نهٔ شې کولے شرمېږې چې زهٔ به ورځم او په هغهٔ به سلام اچوم. نو داسې خو کولے شې، چې کله يَو دوه مسلمانان راپاسې، او هغوي درته وائي: چې مونږ درله روغه کوو، نو بيا ولې روغه نهٔ کوې؟ اصل کښې مونږ باندې د جاهليت هغه غيرت غالب شوے دے، او د الله دين او د نبي ﷺ خبره مونږ شاته غورځولې ده، مونږ هغه خبرې منو چې په کومو خبرو زمونږ زړهٔ خوشحالېږي. په کومو خبرو چې مونږ له تکليف ميلاوېږي هغه خبرې مونږ نهٔ منو. نو د يَو مسلمان د بل مسلمان سره خبرې بندول، دا لويه ګناه ده.

**د سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما روايت**

سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما وائي: قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ: «لَا تَحِلُّ الْهِجْرَةُ فَوْقَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فَإِنِ الْتَقَيَا فَسَلَّمَ أَحَدُهُمَا عَلَى الْآخَرِ فَرَدَّ عَلَيْهِ الْآخَرُ السَّلَامَ اشْتَرَكَا فِي الْأَجْرِ وَإِنْ أَبَى الْآخَرُ أَنْ يَرُدَّ السَّلَامَ بَرِئَ هَذَا مِنَ الْإِثْمِ وَبَاءَ بِهِ الْآخَرُ - وَأَحْسِبُهُ قَالَ - وَإِنْ مَاتَا وَهُمَا مُتَهَاجِرَانِ لَا يَجْتَمِعَانِ فِي الْجَنَّةِ».

"نبي ﷺ فرمائي: يَو مسلمان دپاره د بل مسلمان سره د درېو (3) ورځو نه زياتې

---

(1) [رواه أبو داود، رقم: (4913)].

خبرې بندول جائز نهٔ دي، کچرې دواړه میلاؤ شول، یَو سلام اُوکړو، او بل جواب ورکړو، دواړه پهٔ اجر کښې برابر دي، او کهٔ چرته یَو سلام اُوکړو، او بل ورته جواب ورنهٔ کړو، نو دا یَو د ګناه نه بچ دے، او دا بل ګناهکار دے، او کهٔ چرې دا دواړه د دنیا نه پدې حالت کښې لاړل چې دواړو د یَو بل سره خبرې نهٔ کولې، د دواړو پهٔ زړونو کښې د یَو بل سره بغض او حسد وو"، نو نبي ﷺ فرمائي: «وَإِنْ مَاتَا وَهُمَا مُتَهَاجِرَانِ لَا يَجْتَمِعَانِ فِي الْجَنَّةِ».[1]

"او کهٔ دا دواړه مړهٔ شول او یَو بل سره ئې خبرې نهٔ کولې دا دواړه به الله یَو بل سره جنت کښې نهٔ یَوځائے کوي".

## د سیدنا ابو خِراش ﷺ روایت

دوي وائي: چې ما د نبي ﷺ نه اوریدلي دي، چې نبي ﷺ فرمائیل: «مَنْ هَجَرَ أَخَاهُ سَنَةً فَهُوَ كَسَفْكِ دَمِهِ».[2]

"کوم مسلمان چې د بل مسلمان سره یَو کال خبرې بندې کړې، دومره عظیمه ګناه ئې اُوکړه لکه چې هغهٔ دا مسلمان قتل کړو". مخکښې ما وئیلې وو: چې ددنیا خرابول الله ته خوښ دي، خو د مسلمان وژل الله نهٔ شي برداشت کولے.

## د نبي ﷺ صحابو کرامو ته بیان

نبي ﷺ صحابه کرامو ته بیان کولو، وائي: پدې محفل کښې چې د کوم مسلمان د بل مسلمان سره نا لګې ده، نو هغوي دې زمونږ ددې محفل نه پاسي؛ ځکه د هغهٔ د وجې نه مونږ باندې رحمت نهٔ راوریږي، کله کله د یَو ګناه د وجې نه پهٔ نورو باندې هم عذاب راځي. (مشوره واقعه د موسی ﷺ د زمانې د چغل خور، هغه به انشاء الله د چغلۍ پهٔ بیان کښې راشي).

(1) [رواه الحاكم في "المستدرك"، رقم: (7291)، والطبراني في "المعجم الأوسط"، رقم: (8930)].

(2) [رواه أبو داود ،برقم: (4915)].

نو نبي ﷺ اوفرمائيل: چې د چا بل مسلمان سره نالگې ده، نو هغه دي زمونږه د محفل نه پاسي، يَو هلک پاسيدو، او هغه لا ړو، او د هغهٔ يَو ماسي وه، چې د هغې سره ئې نالکې وه، د هغې سره ئې روغه اُوکړه، هغه هلک لا ړو، او د هغې نه ئې معافي اُوغوښته، چې ما معاف کړه، هغه ماسي ورته وائي: دا ولې؟ تهٔ څنګه پخپله راغلې؟ هغه هلک ورته وائي: ما د نبي ﷺ نه واوريدل چې کومو خلقو کښې چې هغه سړے ناست وي چې د نورو مسلمانانو سره ئې نالکې ده، نو د الله رحمت پرې نهٔ راوريږي، نو زهٔ ددې وجې نه راغلم، ما سره روغه اُوکړه.[1]

نن کهٔ مونږ باندې د الله رحمتونه بند دي، نو د هغوي وجه دا ده، چې مونږ د الله حکم منلو ته تيار نهٔ يُو، هر سړے د بل سړي نه خفه دے، او پريشانه دے. د يَو کاونډي نه تپوس اُوکړه، نو د بل کاونډي نه اُور کښې ولاړ دے.

**د سيدنا جابر ﷺ روايت**

سيدنا جابر ﷺ فرمائي: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: «إِنَّ الشَّيْطَانَ قَدْ أَيِسَ أَنْ يَعْبُدَهُ الْمُصَلُّونَ فِي جَزِيرَةِ الْعَرَبِ، وَلَكِنْ فِي التَّحْرِيشِ بَيْنَهُمْ».[2]

"سيدنا جابر ﷺ فرمائي: ما د نبي ﷺ نه اوريدلي دي، چې فرمائيل ئې: چې شيطان ددې خبرې نه نا اُميده شوے دے چې خلق د شيطان عبادت اُوکړي، اوس څوک د شيطان عبادت نهٔ کوي هر سړے پهٔ شيطان لعنت وائي، ليکن شيطان دا خبره غواړي چې د دوو مسلمانانو پهٔ مينځ کښې نالکي او ورانه راولي" دا د شيطان کار دے، نو د شيطان دا کارونه پرېښودل غواړي، او د الله حکم منل غواړي دا دمؤمن صفت دے.

(1) [الترغيب والترهيب].

(2) [رواه مسلم ، رقم: (2812)].

## د سيدنا ابو هريره ﷺ روايت

سيدنا ابو هريره ﷺ فرمائي: چې نبي ﷺ فرمائي: «تُعْرَضُ أَعْمَالُ النَّاسِ فِي كُلِّ جُمُعَةٍ مَرَّتَيْنِ، يَوْمَ الاثْنَيْنِ وَيَوْمَ الْخَمِيسِ، فَيُغْفَرُ لِكُلِّ عَبْدٍ مُؤْمِنٍ، إِلاَّ عَبْدًا بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَخِيهِ شَحْنَاءُ، فَيُقَالُ: اتْرُكُوا، أَوِ ارْكُوا، هَذَيْنِ حَتَّى يَفِيئَا».[1]

"هفته کښې دوه ورځ الله اعمال آسمان ته اوچتوي، يَو د ګُل په ورځ باندې او يَو د زيات په ورځ باندې، پدې ورځې باندې الله هر مسلمان معاف کوي، ليکن مشرک نهٔ معاف کوي، کوم سړي چې د الله سره شريک پيدا کړے دے، هغه انسان الله نهٔ معاف کوي، او بل هغه سړے نهٔ معاف کوي، چې د هغهٔ د بل مسلمان سره نالکې ده، د هغهٔ اعمال الله بره نهٔ خيژوي، الله ملائکو ته وائي: چې اے زما ملائکو! ددې دواړو بندګانو اعمال ماته مهٔ راوړئ، ترڅو پورې چې دي دواړو د يَو بل سره روغه نهٔ ده کړې".

بل روايت کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: د جنت دروازې کهولاؤ کړے شي، د ګُل په ورځ او د زيارت په ورځ باندې، هر يَو مسلمان ته الله بخښه کوي، چې هغهٔ د الله سره شريک پيدا کړے دے، او بل هغه انسان ته بخښه نهٔ کوي، خو هغې انسان ته بخښنه نهٔ کوي چې د هغهٔ د بل مسلمان سره نالکې وي، او د بل مسلمان سره خبرې نهٔ کوي، او الله ملائکو ته وائي، زما ملائکو ددې بندګانو اعمال به تر هغې وخته پورې نهٔ اوچتوئ ترڅو پورې چې دوي د يَو بل سره روغه نهٔ ده کړې. درې ځله ورته وائي، څومره لويه ګناه ده، د يَو مسلمان د بل مسلمان سره خبرې بندول.[2]

## د درېو کسان باره کښې د نبي ﷺ فرمان

نبي ﷺ فرمائي: «ثَلاثٌ مَنْ لَمْ يَكُنْ فِيهِ وَاحِدَةٌ مِنْهُنَّ فَإِنَّ اللهَ يَغْفِرُ لَهُ مَا سِوَى

---

(1) [رواه مسلم، رقم: (2565)].

(2) [رواه مسلم، رقم: (2565/36)].

ذٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ» "درې څيزونه دې، چې چا کښې دا درې (3) کارونه نۀ وي، ددې نه ما سيوا کۀ هر څومره ګناهګار دے، الله به ئې معاف کړې". دا درې (3) کارونه کوم دي؟ نبي ﷺ فرمائي:

(1) «مَنْ مَاتَ لَا يُشْرِكُ بِاللهِ شَيْئًا» "کوم انسان چې مړۀ شو، الله سره ئې شريک نۀ وي پيدا کړے" نو الله به ئې معاف کړې؛ ځکه شرک لويه ګناه ده، الله فرمائي:

﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ﴾.[1]

"يقينًا الله بخښنه نۀ کوې چې شرک اُوکړے شي د الله سره" او د شرک نه ماسيوا نور ګناهونه معاف کوې، خو شرک نۀ معاف کوې.

شرک څۀ ته وائي؟ د الله سره پۀ ذات يا صفاتو کښې بل څوک شريک کول، ديته شرک وائي، لکه عيسايان وائي: عيسى ﷺ اِبنُ الله دے، څوک وائي: عيسى ﷺ پخپله الله دے، څوک وائي: ﴿إِنَّ اللَّهَ ثَالِثُ ثَلَاثَةٍ﴾.[2] خدايان درې دي، ديته پۀ ذات کښې شريک وائي، يا پۀ صفاتو کښې شريک پيدا کول، مثال پۀ طور د الله صفت دے "السَّمِيْعُ"، "بغير د ظاهري اسبابو نه اوريدونکے" صرف يَو الله دے، اوس يَو سړے دا صفت يَو مړي له ورکړې، چې دے هم بغير د ظاهري اسبابو نه هر څۀ اورې، نو دا د الله صفت وو، او تا يَو بنده له ورکړو، نو دا شرک دے، کۀ د يَو سړي پۀ زړۀ کښې د اُورې د داني هومره شرک وي، نو دا سړے الله نۀ معاف کوې.

(2) دويم «وَلَمْ يَكُنْ سَاحِرًا يَتْبَعُ السَّحَرَةَ» "ساحر الله نۀ معاف کوې، ساحرانو پسې ګرځي کودې منترې کوي" دا سړے الله نۀ معاف کوې.

---

(1) [سورة النساء: 116].

(2) [سورة المائدة: 73].

(3) دریم «وَلَمْ يَحْقِدْ عَلَى أَخِيهِ» "کوم انسان چې مسلمان بنده نه د هغهٔ حق حصار کړے دے یا د هغهٔ سره ئې بُغض او حسد دے، د هغهٔ سره ئې نالکې ده"، دا درې (3) کسان الله نهٔ معاف کوي، نور هر یَو مسلمان کیدے شي چې الله ئې معاف کړي.[1]

نو هغه مسلمانان الله نهٔ معاف کوي چې د کومو مسلمانانو خپل مینځ کښې نالکي ده.

**د درېو کسانو اعمال بره نهٔ خیژي**

رسول الله ﷺ فرمائي: «ثَلَاثَةٌ لَا تُرْفَعُ صَلَاتُهُمْ فَوْقَ رُؤُوسِهِمْ شِبْرًا» "درې کسان دي چې د هغوي مونځونه د هغوي د سرونو نه یَو لیشت هم نهٔ بره کیږي":

(1) نبي ﷺ فرمائي: «رَجُلٌ أَمَّ قَوْمًا وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ» "یَو هغه سړے دے چې هغه د قوم مشرت کوي، د قوم امامتي کوي او قوم ترې ناراض دے، قوم ترې خفه دے، او دے امامتي کوي" د داسې انسان عمل د هغهٔ د سر نه یَو لیشت نهٔ اوچتیږي.

(2) دویم نبي ﷺ فرمائي: «وَامْرَأَةٌ بَاتَتْ وَزَوْجُهَا عَلَيْهَا سَاخِطٌ» "هغه زنانه چې د هغې خاوند د هغې نه خفه دے، او هغهٔ شپه تیره کړه" دا زنانه خومره ورځې چې خاوند ترې خفه دے، ددې زنانه عمل ددې د سر نه یَو لیشت نهٔ اوچتیږي.

او نبي ﷺ فرمائي: کومه زنانه چې بغیر د خاوند د اجازت نه د کور نه اُووتله تر هغې وخته پورې پدې زنانه لعنت وریږي، ترڅو چې واپس کور ته نهٔ ده راغلې.

(3) دریم نبي السلام فرمائي: «وَأَخَوَانِ مُتَصَارِمَانِ» "هغه دوه مسلمانان رونړه چې د هغوي د یَو بل سره نالکې ده"، ترڅو پورې چې هغوي د یَو بل سره روغه نهٔ ده کړې تر هغې پورې ددې دوارو اعمال د دوي د سَر نه یَو لیشت بره نهٔ اوچتیږي.[2]

---

(1) [رواه الطبراني في "المعجم الكبير"، رقم: (13004)].

(2) [رواه ابن ماجة، رقم: (971)].

دا درې واړه کسان دي په خپلو اعمالو باندې ويرېږي. اوس بله خبره يَو سړے وائي: چې ما به د فلانکي سړي سره روغه کړې وه، خو دا ښهٔ سړے نهٔ دے، دده عمل ښهٔ نهٔ دے، کهٔ زهٔ ورسره روغه اُوکړم بله ورځ به بيا ما سره په جنګ وي. ددې آسان علاج دے، يَو سړے بد عمله دے، بد اخلاقه دے، نو ځان ترې ساته، خو خبرې ورسره مهٔ بندوه، سلام کلام ورسره مهٔ بندوه، د هغهٔ سره نُور دنياوې لَين دَين مهٔ کوه، صرف خبرې ورسره کوه.

د انسان په بدن کښې دا سَر ډير قيمتي دے، چې غيرتي انسان وي، نو هغه خپل سَر چا ته نهٔ ښکته کوي، خو د الله په دربار کښې انسان دا خپل سَر په زمکه باندې ږدې، او د الله د رضا دپاره خپل سَر په خاورو کښې ږدې، خپلې کېږې د خاورو نه بچ کوي، ليکن چې کله د الله حکم دے، نو دے دا خپل تندے او سَر په زمکه باندې ږدې، چې زما نه الله رضا شي، نو چې د الله دپاره دومره ځان عاجز کولے شي، نو صرف مونځ کښې نه، په هر څهٔ کښې دومره عاجزي اُوکړه. نو د بل مسلمان سره روغه اُوکړه، صرف پدې بُنياد چې زما نه الله رضا شي، کهٔ څوک را پورې خاندې، کهٔ هر څهٔ کوي، خو چې زما نه الله خوشحاله شي. نو د مسلمان سره خبرې بندول دا لويه ګناه ده.پکار دا ده چې مونږ ددې ګناه نه ځان بچ کړو. الله دي مونږ له د عمل کولو توفيق را کړي. آمين.

(وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



بسم الله الرحمن الرحيم

زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ مِنَ النِّسَاءِ وَالْبَنِينَ وَالْقَنَاطِيرِ الْمُقَنطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالْأَنْعَامِ وَالْحَرْثِ...الخ

(سورة آل عمران: 14)

# موضوع

# دَ صحابه کرامو حالات

بتاريخ: 2007-07-07

بمقام: جلسۍ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# د صحابه کرامو حالات

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مِنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدَهٗ وَرَسُوْلَهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ مِنَ النِّسَاءِ وَالْبَنِينَ وَالْقَنَاطِيرِ الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالْأَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ذَٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَاللَّهُ عِندَهُ حُسْنُ الْمَآبِ﴾.[1]

وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اَلدُّنْيَا دَارُ مَنْ لَا دَارَ لَهٗ وَمَالُ مَنْ لَا مَالَ لَهٗ وَلَهَا يَجْمَعُ مَنْ لَا عَقْلَ لَهٗ».[2] أو كما قال عليه السلام.

عزت مندو مسلمانانو رونړو! مخکښې د صحابه کرامو حالات بيان شوي وو، چې صحابه کرامو ﷺ د الله رب العزت د دين دپاره څنګه قربانۍ پيش کړې وي، دا رنګه جناب رسول الله ﷺ د الله د دين دپاره څنګه قرباني پيش کړې وه. د الله رب العزت دين اهم ترين دے. او الله رب العزت ته ډير زيات خوښ دے؛ څکه ددې دين نه الله رب العزت انبياء کرام عليهم السلام قربان کړې دي، صحابه کرام ﷺ ئې قربان کړي دي. مونږ او تاسو چې الله رب العزت دې دنيا ته رالیږلي يُو صرف د

(1) [سورة آل عمران: 14].

(2) [رواه أحمد في "مسنده"، رقم: (24419)، والبيهقي في "شعب الإيمان"، رقم: (10153، و 10154)].

ځناورو پشان زندګئ تیرولو له ئې نۀ یُو رالیږلي، صرف د خپلو خواهشاتو پوره کولو دپاره ئې نۀ یُو رالیږلي.

**زمونږ او ستاسو د پیدائش مقصد**

مونږ ته الله رب العزت زمونږ د پیدائش مقصد ښودلے دے، چې الله وائي: ما دا مخلوقات خپل عبادت دپاره پیدا کړې دې، قرآن کریم کښې الله رب العزت فرمائي: ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ﴾.[1]

"ما نۀ دې پیدا کړې پیریان او انسانان مګر ددې دپاره چې زما عبادت اُوکړې"، ددې وجې نه د هغه انسان د الله پۀ دربار کښې لوې مقام دے، چې هغه د الله عبادت کونکے وي، اګر کۀ مال ورسره نشته، اګر کۀ جائیداد ئې نشته، اګر کۀ پۀ هر حیثیت سره کمزورے دے، خو چې د خپل رب تابعدار دے، د هغې انسان د الله پۀ دربار کښې لوې مقام دے. هغه انسان چې د دُنیادارو خلقو پۀ نزد لوې سرمایه دار دے، د دُنیا دارو خلقو پۀ نزد یَو لوې انسان دے، مالدار دے، لیکن چې د خپل حقیقي رب تابعدار نۀ دے، نو د هغې انسان د خپل رب پۀ دربار کښې هیڅ حیثیت نشته؛ ځکه الله له مال نۀ دے پکار، الله له دولت نۀ دے پکار، نۀ الله له لښکرې او طاقت پکار دے، بلکه د الله بندګي او د الله رضا کول پکار دې. دغه وجه ده، چې د صحابه کرامو ﷺ نُوم مونږ او تاسو اَورو او د هغوي تذکره کوو، نو د هغوي د نُوم سره "رضي الله تعالی عنه" وایُو، وجه څۀ ده؟ مال خو ورسره کم وو، دولت ورسره کم وو، د سادګئ زمانه وه، لیکن نن مونږ او تاسو ته الله وائي: کۀ تاسو د صحابه کرامو پشان ایمان راوړو، نو تاسو به پۀ هدایت باندې یئ.

د دُنیا پۀ حیثیت او د دُنیا دارو خلقو پۀ نظر کښې مونږ او تاسو اَورو، چې پخوا

[1] [سورة الذريات: 56].

سادګي وه، پخوا خلق نۀ پوهېدل جهالت وو، دا اوُسنۍ زمانه بهتره ده؛ ځکه چې پخوا خلقو سره مال او دولت نۀ وو، پيسې نۀ وې، کپړې نۀ وې، کوروونه نۀ وو، بجلې نۀ وه، خلقو پۀ جهالت کښې وخت تېر کړے وو، خلق دغسې خبرې کوې، خو کۀ يَو سړے دا وائي: چې صحابه کرامو پۀ جهالت کښې وخت تېر کړے دے، هغه وخت ښۀ نۀ وو، اُوسنے وخت بهتر دے، او د صحابه کرامو وخت نۀ وو ښۀ، نو دا سړے مؤمن نۀ شي پاتې کيدے.

اصل ترقي د ايمان

اصل ترقي د ايمان ده، د صحابه کرامو ايمان چې څنګه وو، د صحابه کرامو ايمان زمونږ دپاره يَو معيار دے، او انسان ته پدې قوت او طاقت ميلاويږي، چې د صحابه کرامو پشان ايمان راوړې، د هغوي نه ورستو ورځ پۀ ورځ پۀ ايمان کښې ضُعف او کمزورتيا راځي، د صحابه کرامو حالت چې سړے اُوګورې نو د هغوي مالي حيثيت کمزورے وو، نور قوت او طاقت ئې نۀ وو، ليکن د الله دربار کښې د هغوي لوئے مقام وو.

د الله رب العزت اعلان

الله رب العزت د صحابه کرامو ﷺ باره کښې اعلان کوې ﴿لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ﴾.[1]

"پۀ تحقيق سره راضي دے الله د مؤمنانو نه هغه مؤمنان چې کله ئې تا سره د اُونې د لاندې بيعت کولو". نو الله د هغوي نه خوشحاله دے، کله الله رب العزت وائي: ﴿وَلَقَدْ عَفَا عَنكُمْ﴾.[2]

(1) [سورة الفتح: 18].

(2) [سورة آل عمران: 152].

"په تحقیق سره معافي کړې ده الله تاسو ته"، کله الله وائي: ﴿أُولَٰئِكَ هُمُ الرَّاشِدُونَ﴾.[1]

"دغه کسان په سمه لار روان دي".

## د صحابه کرامو ﷺ ایمان زمونږ د ایمان د پاره معیار

الله رب العزت د صحابو ایمان زمونږ د ایمان دپاره معیار کرځولے دے، الله رب العزت فرمائي: ﴿فَإِنْ آمَنُوا بِمِثْلِ مَا آمَنتُم بِهِ فَقَدِ اهْتَدَوا وَّإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا هُمْ فِي شِقَاقٍ﴾.[2]

"که دې خلقو داسې ایمان راوړو لکه څنګه ایمان چې تاسو راوړے دے، نو دا خلق به په هدایت باندې وي، او که د صحابو پشان ایمان نهٔ وي نو بیا دوي د هدایت والا نهٔ دي".

## صحابه کرامو ﷺ نه الله ولې راضي دے؟

اصل وجه دا ده، چې هغوي د کوم څیز دپاره چې پیدا وو، د څهٔ دپاره چې دنیا ته راغلي وو، نو په هغې ئې پوره پوره عمل کړے وو، چې هغه د الله دین وو، د دُنیا په اعتبار خو هغوي کمزورې وو، د نبي ﷺ حالت اُوګوره چې د تمامو انبیاء کرامو علیهم السلام سردار دے، لیکن د نبي ﷺ حال حدیث کښې راځي.

## د سیدنا نعمان بن بشیر ﷺ روایت

هغوي وائي: «لَقَدْ رَأَيْتُ نَبِيَّكُمْ ﷺ وَمَا يَجِدُ مِنَ الدَّقَلِ، مَا يَمْلَأُ بِهِ بَطْنَهُ».[3]

"ما نبي ﷺ لیدلے وو، چې د نبي ﷺ خیټه چرته په ردې کجورو هم نهٔ وه مړه شوې" دُنیا خو ئې دا حالت وو، چې په کجورو چرته هم نهٔ دے موړ شوے، غنم خو لرې خبره وه، بل شے خو لرې خبره وه، چې هغې ملک کښې کجورې ډیرې وي، هغه هم د الله پیغمبر ﷺ په مړه خیټه نهٔ دې خوړلې.

---

(1) [سورة الحجرات: 7].

(2) [سورة البقرة: 137].

(3) [رواه مسلم، رقم: (2977)، والترمذي، رقم: (2372)].

## د سیدنا نعمان بن بشیر ﷺ بل روایت

سیدنا نعمان بن بشیر ﷺ فرمائي: «أَلَسْتُمْ فِي طَعَامٍ وَشَرَابٍ مَا شِئْتُمْ؟»[1]

"اے ملکرو! آیا تاسو داسې دور کښې نهٔ يئ چې خوراک ډير دے، څکاک ډير دے، ما ستاسو پیغمبر محمد صلی الله علیه لیدلے وو، چې د هغهٔ خیټهٔ چرته په کجورو هم نهٔ وه مړه شوې".

## د سیدنا عمر ﷺ قول

سیدنا عمر ﷺ فرمائي: نبي ﷺ چې وو «لقد رأَيت رَسُول الله صلى الله عَلَيهِ وَسلم يظل الْيَوْم يلتوي مَا يجد من الدقل مَا يمْلأ بَطْنه».[2]

توله ورځ به کرځیدو دا به ورته هم نهٔ میلاویدل چې خپله خیټه ئې پهٔ ردې کجورو باندې ډکه کړے وے، دومره سخت حالات وو، لیکن څومره د اوچت شان والا پیغمبر دے!

## د سیده عائشې ﷺ روایت

سیده عائشه ﷺ فرمائي: مونږ ته یَو ځل د سیدنا ابوبکر صدیق ﷺ د کور د طرف نه د یَو چیلۍ خپې راغلې، چې دا ځان له پخې کړۍ، شپه وه، نبي ﷺ نیولې وي، او ما کټ کولې، یا ما نیولې وي، او نبي ﷺ کټ کولې، شپه وه نو ښکاریدې نهٔ، چا ورته اووئیل: ډیوه درکره نهٔ وه، چې رڼړا مو کړے وے، سیده عائشه ﷺ فرمائي: چې مونږ کره ډیوه نهٔ وه، او کهٔ چرته مونږ کره دومره تیل وے چې مونږ پرې ډیوه بلولے، نو بیا به مونږ هغه خوړلے وے، (ځکه هغه وخت کښې د خاورو تیل نهٔ وو، د زیتون تیل به ئې بلول) نو هغې سره به مونږ ډوډۍ خوړلې وه.

---

(1) [رواه مسلم، رقم: (2977)، والترمذي، رقم: (2372)].

(2) [رواه المنذري في "الترغيب والترهيب"، رقم: (4959)].

**بل روایت**

حدیث کښې راځي، نبي ﷺ به د سرکې سره ډوډۍ خوړله، د انګورو نه به ئې سرکه جوړه کړه، او هغې سره به ئې ډوډۍ خوړه. او نبي ﷺ به وئیل: چې سرکه څۀ بهترینه ترکاري ده.[1]

نو بهترینه ځکه وه چې نور څۀ وو نۀ. داسې حالات وو، د نبي ﷺ او د هغۀ د بیبیانو. حالانکه هغه خو داسې پیغمبر وو، چې کۀ هغۀ وئیلے وے، چې الله ما له دا د صفا او مروه دا غرونه د سَرُوزرو او سپنوزرو جوړ کړه، نو الله به ورله جوړ کړې وے؛ ځکه هغه خو مستجاب الدعوات وو.

**د نبي ﷺ دعا**

نبي ﷺ به دعا کوله: «قَالَ: اللّٰهُمَّ أَحْيِنِي مِسْكِينًا وَأَمِتْنِي مِسْكِينًا وَاحْشُرْنِي فِي زُمْرَةِ الْمَسَاكِينِ».[2]

"یا الله! ما له ژوند د مسکینۍ د حالت راکړه، او مرګ راله هم د مسکینۍ او غریبۍ پۀ حالت کښې راوله، او چې قیامت کښې مې پاسے نو هم د غریبانانو خلقو پۀ ډله کښې مې پاسوه". آؤ دا ځکه چې نبي ﷺ وئیلي وو: غریبانان خلق به مالدارانو نه پنځۀ سوه (500) کاله مخکښې جنت ته ځي، نیمه ورځ به مخکښې ځي، چې د هغې نیمې ورځې اندازه پنځۀ سوه (500) کاله عمر دے.

نبي ﷺ فرمائي: دوه څیزونه دي، چې بني آدم هغه نۀ خوښوي:

(1) قلت د مال (کم والے د مال)، بني آدم پۀ لږ مال نۀ خوشحالیږي، چې

(1) [رواه مسلم، رقم: (2051، و2052)، والترمذي، رقم: (1839، و1840)، وأبو داود، رقم: (3820، و3821)، وابن ماجة، رقم: (3316، و3317، و3318)].

(2) [رواه الترمذي، رقم: (2352)، وابن ماجة، رقم: (4126)].

څومره ډير وي، نو وائي: دا به ښهٔ وي.

د دې وجې نه يَو حديث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: کچرته د بني آدم دپاره دوه کندې د مال نه ډکې شي، نو دے د دريمې کندې طلب کوي، چې بله کنده د مال ډکه شي، نو دے به د څلورمې کندې په طلب کښې ګرځي، خو مرېږي نهٔ، نهٔ ډکوې خيټه د بني آدم مګر پهٔ خاورو باندې، د قبر خاورو نه ماسيوا د بني آدم خيټه پهٔ بل څهٔ نهٔ ډکيږي.[1]

(2) دويم نبي ﷺ فرمائي: چې بني آدم مرګ نهٔ خوښوي. نبي ﷺ فرمائي: مرګ د مؤمن دپاره د فتنې نه بهتر دے.[2]

کهٔ مړ شوې او ګناه درنه نهٔ ده شوې، يا ګناه شوې ده، او توبه دې ايستې ده، نو الله به جنت درکوي، او پهٔ هغې ژوند به څهٔ اُوکړې چې ژوند دې ډير دے، خو ټول عمر دې د الله مخالفت کښې تير کړو، نو قيامت کښې به تاسره د يَو يَو منټ حساب کتاب کيږي. نو دا دوه څيزونه بني آدم نهٔ خوښوي خو دا دواړه ښهٔ دي، مرګ د فتنې نه ښهٔ دے، او کم مال د کم حساب دپاره ښهٔ دے.

**د سيدنا ابو هريره ﷺ روايت**

سيدنا ابو هريره ﷺ فرمائي: زهٔ د نبي ﷺ خوا ته لاړم، او نبي ﷺ پهٔ ناسته باندې مونځ کولو، ما ورته اووئيل: څهٔ وجه ده، تهٔ خو پهٔ ناسته باندې مونځ کوې، څهٔ تکليف درته درسيدلے دے؟ وائي: نبي ﷺ اوفرمائيل: «اَلْجُوْعُ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ» "اے ابو هريره! ډير زيات اُوږے شوے يم"، د لوږې د وجې نه نهٔ شم اُودريدے، ابو هريره ﷺ

(1) [رواه البخاري، رقم: (6436)، والترمذي، رقم: (2337)].

(2) [رواه أحمد في "مسنده"، رقم: (23625)].

وائي: «فَبَكَيْتُ» "نو ما أوژړل" چې امام الانبياء ﷺ د الله دوست دے، دے دومره اوږے دے، چې اودريدے هم نشي، وائي: ماته وائي: «لَا تَبْكِ» "مهٔ ژاړه"، «فَإِنَّ شِدَّةَ الْحِسَابِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا تُصِيبُ الْجَائِعَ إِذَا احْتَسَبَ فِي دَارِ الدُّنْيَا» "ځکه سخت حساب د قيامت پهٔ ورځ د هغې سړي سره نهٔ شي کيدے چې کوم انسان له دنيا کښې لوږه رسيدلې ده" دُنيا کښې هغه سره حساب شوے دے، دُنيا کښې ورته هر شے پهٔ حساب ميلاؤ شوے دے، آخرت کښې به د هغهٔ سره حساب نهٔ کيږي، څومره چې يَو انسان نيک وي، دومره به هغهٔ کره غريبي سيوا کيږي[1]

يَو صحابي راغے، او نبي ﷺ ته وائي زما تا سره ډير مينه ده، نبي ﷺ ورته اووئيل: رشتيا وائې؟ هغهٔ ورته اووئيل: آؤ، نبي ﷺ ورته اووئيل: بيا غريبئ ته ځان تينګ کړه، هغهٔ باندې به غريبي ډيره زر راځي څوک چې ما سره مينه کوي.

**د سيده عائشي ﷺ وينا**

سيده عائشه ﷺ فرمائي: دوه دوه مياشتې مونږه چرته پهٔ أوبو او کجورو هم نهٔ يُو ماړهٔ شوې، مياشت به را أوخته، أوبه غورزيده، بيا به بله مياشت را أوخته او بيا به أوغورزيده، مونږ چرته پهٔ أوبو او کجورو هم نهٔ يُو ماړهٔ شوې. دا رنګې پهٔ مياشتو مياشتو باندې د نبي ﷺ کره أور نهٔ دے بل شوے، چې ډوډئ او ترکارې ئې پرې پخه کړے وے، يَو صحابي ترې تپوس کوې چې ستاسو ګوزاره پهٔ څهٔ وه؟ نبي ﷺ ورته فرمائي: مونږ پهٔ دوو څيزونو ګوزاره کوله، يَو پهٔ أوبو او دويم پهٔ کجورو، نو وائي: پهٔ دې باندې به کار کيدو؟ نو هغه ورته وائي: د نبي ﷺ د انصارو نه څهٔ ګاونډيان وو، د هغوي أوښې لنګې وي، کله کله به هغوي نبي ﷺ ته پئي (شُودهٔ) را اوليږل، او پئي به

(1) [رواه أبو نعيم في "حلية الاولياء و طبقات الاصفياء": 109/7، و42/8طبع دار الکتب العلمية - بيروت].

ئې اُوځکل، پیُو کښې دواړه صفات شته، پئي تنده هم ختموې او لوږه هم ختموې. دا د نبي ﷺ حالات وو.[1]

یَو روایت کښې راځي، نبي ﷺ به د خلقو سره ځان برابرولو، تردې پورې چې د نبي ﷺ لنګ مبارک ته به د ځرمنې توټې لګیدلې وې، او بیا وائي: چې نبي ﷺ سحر او ماښام درې ورځې هم روټۍ نۀ ده خوړلې. مطلب دا دے کۀ سحر به میلاؤ شوه، نو ماښام به نۀ وه، او کۀ ماښام به میلاؤ شوه، نو سحر به نۀ وه، چرته د الله پیغمبر ﷺ داسې نۀ دې کړې، چې سحر ئې هم خوړلې ده، او ماښام ئې هم خوړلې ده، داسې چرته نۀ دې شوې. داسې تکالیف وو.

**د سیدنا ابو طلحه ﷺ روایت**

سیدنا ابو طلحه ﷺ فرمائي: «شَكَوْنَا إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الجُوعَ وَرَفَعْنَا عَنْ بُطُونِنَا عَنْ حَجَرٍ حَجَرٍ فَرَفَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ حَجَرَيْنِ».

"کله چې غزوه خندق وو، نو مونږه شکایت اُوکړو د لوږې نه چې اے د الله پیغمبره ﷺ! مونږه اوږې شوې یُو"، او د لوږې شکایت مُو داسې اُوکړو "چې مونږ خپلې خیټې ښکاره کړې، چې د الله پیغمبره مونږ د لوږې د وجې نه خپلې خیټې پورې کټې تړلې دې" او د هغې حکمت دا وو، چې کله د سړي خیټه درنه وي، نو کار کولے شې، او چې خیټه سپکه شې، نو کار نۀ شي کولے، نو ددې دپاره مونږ د خیټو پورې کټې تړلې وې، چې زمونږ مَلا نه خوږیږي، چې مونږ نبي ﷺ ته خیټې اُوښودلې، نو "نبي ﷺ مونږ ته خپله خیټه اُوښودله، نو نبي ﷺ د خپلې خیټې پورې دوه کټې تړلې وې، د ډیرې لوږې د وجې نه". داسې حالت وو د نبي ﷺ او د صحابه

(1) [راوه البخاري، رقم: (2567، و6459) ومسلم، رقم: (2972)].

کرامو، او په دغه وخت کښې چې به صحابو ته يَوه کته کرانه راغله، نو نبي ﷺ پسې به ئې خبر کولو، يَو کته ورته راغله، نبي ﷺ ته وائي: چې دا کته مونږ نهٔ شو ماتولے، ډيره زياته سخته ده، نبي ﷺ چې راغے او پلک ئې اُوچت کړو، او کتي له ئې راخلاص کړو، کته ذره ذره شوه، او د شکې پشان خوره شوه.[1]

يَو حديث کښې راځي، يَو ځل سيدنا ابوبکر صديق د کور نه را اُووتو، د غرمې وخت وو، جومات ته راغے، لږ وخت چې تير شو، سيدنا عمر ؓ هم راغے، ابوبکر صديق ؓ ترې تپوس اُوکړو، چې عمره! څنګه راوتلے ئې؟ عمر ؓ ورته وائي: زهٔ د هغې وجې نه راوتے يم، د کومې وجې نه چې تهٔ راوتے ئې، زهٔ هم اوږے شوے يم، او تهٔ هم اوږے شوے ئې، دوي دواړو خبرې کولې چې پدې کښې نبي ﷺ راغے، نبي ﷺ نه ئې تپوس اُوکړو، نبي ﷺ ورته اووئيل: وږے ووم، کور کښې تنګ شوم، نو بَهر را اُووتم. دا د ملګرو حال وي، چې پردو خلقو ته ئې د لوږې اظهار نهٔ کولو، خپلو ملګرو کښې يَو بل ته د لوږې اظهار کوې، نبي ﷺ ورته وائي: راځئ د سيدنا ابو ايوب انصاري ؓ باغ دے، هغې ته به ورشو، د ابو ايوب انصاري ؓ باغ ته راغلل، د هغهٔ تپوس ئې اُوکړو، بي بي ئې ورته اووئيل: چې هغه خو کور نشته مونږ له څهٔ خوږې اُوبهٔ راوړې، چې بي بي ئې نبي ﷺ، ابوبکر او عمر ؓ اوليدل، نو ډيره زياته خوشحاله شوه، او د نبي ﷺ او د سيدنا ابوبکر او سيدنا عمر ؓ ئې ډير عزت اُوکړو، چې ابو ايوب انصاري ؓ راغے، هغهٔ هم ډير زيات خوشحاله شو، چې څومره خوش قسمته يم، چې زما کور ته د الله پيغمبر او د هغهٔ ملګرې راغلې دې، او بيا لاړو، نبي ﷺ له ئې کجورې را اُوشوکولې، څهٔ کچه وي، او څهٔ پخې وي، نبي ﷺ ته ئې اووئيل: تاسو دا خورئ، او بيا لاړو د نبي ﷺ دپاره ئې چيلئ حلالوله، نبي ﷺ

---

(1) [رواه الترمذي، رقم: (2371)].

ورته اووئیل: خبردار! کهٔ چرته گدهٔ او بیزه حلالې، نو داسې حلاله کړه، چې لنګه حلاله نهٔ کړې، چې بچے ترې پاتې نهٔ شي، هغه لاړو او حلاله ئې کړه، او نبي ﷺ او د هغهٔ ملګرو له ئې راوړه، خوراک ئې شروع کړو، چې ډوډئي ئې اُوخوړه، یَو راویت کښې راځي چې د هغې کجورو یَو غونچک ئې را اُوچت کړو، چې ددې تپوس به درنه الله قیامت کښې کوي، سیدنا عمر ﷺ اوفرمائیل: ددې تپوس به هم زمونږ نه الله کوي؟ نبي ﷺ ورته اوفرمائیل: ددې تپوس به درنه هم الله کوي.

داسې حالات وو، چې خپل کور کښې به ورکره خوراک نهٔ میلاویدو، خو لیکن هغې دور کښې چې کوم ایمان وو، هغه ایمان اوس نهٔ میلاویږي، د هغې دور چې کوم فضیلت دے، هغه نن نهٔ میلاویږي، نبي ﷺ فرمائیلي وو: «خَيْرُ الْقُرُوْنِ قَرْنِي، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ يَفْشُو الكَذِبُ».[1]

"پهٔ تمام پیړو کښې بهترینه پیړئ هغه ده چې زهٔ پکښې موجود یم، بیا هغه کسان دي چې دوي ته نزدې دې، بیا هغه کسان چې دوي ته نزدې دې، ددې نه ورستو به خلقو کښې دروغ عام شي، او ګناهونه به عام شي".

**د سیده عائشي ﷺ وینا**

سیده عائشه ﷺ فرمائي: «أَوَّلُ بَلَاءٍ حَدَثَ فِيْ هٰذِهِ الْأُمَّةِ بَعْدَ نَبِيِّهَا الشِّبَعُ» "ړومبے مصیبت چې پدې اُمت کښې د الله د پیغمبر صلی الله علیه وسلم نه وروستو راغلے دے، نو هغه موړوالے دے"؛ ځکه «فَإِنَّ الْقَوْمَ لَمَّا شَبِعَتْ بُطُوْنُهُمْ سَمِنَتْ أَبْدَانُهُمْ فَضَعُفَتْ قُلُوْبُهُمْ وَجَمَحَتْ شَهْوَاتُهُمْ».[2]

چې قوم چې کله د هغوي خیټې مړې شي، نو د هغوي بدنونه درانهٔ شي، نو

(1) [رواه الترمذي، رقم: (2165، و 2303)].

(2) [رواه المنذري فی "الترغیب والترهیب"، رقم: (3239)].

زرونه ئې کمزورې شې، او خواهشات ئې زيات شې، بيا دوې د الله عبادت نهٔ شې کولے، صحابه کرامو چې دومره عبادت کړے وو، نو لوږه ډيره وه تنده ډيره وه. ننن أوبهٔ ډيرې دي، خوراک څکاک ډير دے، ليکن هغه شان وعده زمونږ سره نشته، کومه چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم سره وه، او دا زمونږ يقين دے چې هغه شان کار مونږ نشو کولے.

سيده فاطمه ﷺ د نبي ﷺ لور ده، او نبي ﷺ فرمائيلي دي: «فَاطِمَةُ بَضْعَةٌ مِنِّي».[1] "فاطمه ﷺ زما د زړهٔ ټکړه ده". د نبي ﷺ ورسره ډيره زياته مينه وه.

نو سيده فاطمه ﷺ فرمائي: «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَاهَا يَوْمًا فَقَالَ: أَيْنَ ابْنَايَ؟» "نبي ﷺ يَو ورځ د سيده فاطمې ﷺ کره راغے، او هغې ته وائي: اے فاطمې! زما هغه دوه بچې چرته دي؟" سيدنا حسن او سيدنا حسين ﷺ ئې ورته يادول، سيدنا حسن او سيدنا حسين ﷺ پهٔ کور کښې نهٔ وو، نبي ﷺ ورته وائي: زما بچې څهٔ شول؟ «قَالَتْ: أَصْبَحْنَا وَلَيْسَ فِي بَيْتِنَا شَيْءٌ يَذُوقُهُ ذَائِقٌ» "سيده فاطمه ﷺ فرمائي: چې اے د الله پيغمبره ﷺ! ټوله شپه مو تيره کړې وه، زمونږ کور کښې دومره څهٔ شے نهٔ وو، چې مونږ څکلے وے، شپه مو په نهاره باندې تيره کړه" «فَقَالَ عَلِيٌّ: أَذْهَبُ بِهِمَا فَإِنِّي أَتَخَوَّفُ أَنْ يَبْكِيَا عَلَيْكِ، وَلَيْسَ عِنْدَكِ شَيْءٌ» "وائي: سيدنا علي ﷺ راته اووئيل: چې اے فاطمې! دا به درنه زهٔ بَهر بوځم؛ ځکه ماشومان دي اوږې دي تا سره به خوراک نهٔ وي، دوې به درته ژاړې، نو زړهٔ مې غواړې چې بَهر ئې بوځم" د نبي ﷺ نوسې دي، د الله د پيغمبر د ترهٔ زوې دې سيدنا علي ﷺ، سيده فاطمه ﷺ ئې لور ده، ليکن د هغې حيثيت ته أوګوره، اوږې دي، وائي: بَهر ئې اوباسم؛ ځکه دوې

(1) [رواه البخاري، رقم: (3714، و 3767)، ومسلم، رقم: (2449)، والترمذي، رقم: (3869)].

به ژاړي او تا سره به د خوراک ورکولو څهٔ شے نهٔ وي. او ورته وائي: «فَذَهَبَ إِلَى فُلَانٍ الْيَهُودِيِّ فَتَوَجَّهَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدَهُمَا يَلْعَبَانِ فِي شَرَبَةٍ بَيْنَ أَيْدِيهِمَا فَضْلٌ مِنْ تَمْرٍ» "هغه د يَو يهودي خواته تلې دي، نبي ﷺ وريسې روان شو، چې لاړو وي کتل، د أوبو يَو ډنډ وو، هغې کښې دواړو لوبې کولې، کجورې ئې خوړلې وي، څهٔ ورسره خوا کښې پرتې وي"، نبي ﷺ ورته اوفرمائيل: «يَا عَلِيُّ، أَلَا تَقْلِبُ ابْنَيَّ قَبْلَ أَنْ يَشْتَدَّ عَلَيْهِمَا الْحَرُّ؟» "اے علي! تا دا ماشومان رابهر کړې دي، کورته ئې ولې نهٔ بوځې؟ چې ګرمي شي، بيا به دوي ته تکليف وي" نو وختي ئې ولې نهٔ بوځې؟ هغه ورته وائي: «أَصْبَحْنَا وَلَيْسَ فِي بَيْتِنَا شَيْءٌ» "د الله پيغمبره! کور کښې مو شپه تيره کړې وه، د خوراک څهٔ نهٔ وو، دوي مې رابهر کړې وو، چې دوي پهٔ لوږه باندې شي".[1]

**د أُمّ سُليم رضي الله عنها نبي ﷺ ته شکايت**

دا وائي: چې يَو ځل ما نبي ﷺ ته شکايت أوکړو، چې اے د الله پيغمبره ﷺ! نهايت لوږه ده، څهٔ چل أوکړو؟ وائي: نبي ﷺ راته أوفرمائيل: چې «اِصْبِرِيْ» "صبر کوه"، زما دي پهٔ الله باندې قسم وي، زمونږ پهٔ کور کښې أوومه ورځ ده چې څهٔ شے نشته، بيا ورته وائي: اے أُم سُليم! کهٔ چرته د الله نه سوال أوکړم چې يا الله! د تِهامې دا غرونه زما دپاره د سرُرزرو نه جوړ کړه، نو الله به ئې راله جوړ کړي، خو ليکن صبر کوه، صبر ښهٔ شے دے.

**د سيدنا ابو هريره رضي الله عنه د لوږې حالت**

سيدنا ابو هريره رضي الله عنه وائي: وُوم زهٔ چې ما خپل جګر پهٔ زمکه باندې اچولے وو، نسکور پرُوت ووم، د ډيرې لوږې د وجې نه، او ووم زهٔ چې ما د خپلې خيټې پورې ګټې

(1) [رواه الطبراني في "المعجم الكبير"، رقم: (1040)].

ترلي وي، د ډيرې لوږې د وجې نه، يَوه ورځ پهٔ لار كښې ناست ووم، پدې خيال باندې ناست ووم، كهٔ چا ځان سره ډوډۍ نه بوتلم، پهٔ هغې لار ناست ووم، چې پهٔ كومه لار به خلق تلل او راتلل، سيدنا ابوبكر صديق رضی الله عنه زما پهٔ خوا باندې راغے، ما د هغهٔ نه د يَو آيت باره كښې تپوس اُوكړو، مقصد مې د آيت تپوس نهٔ وو، مقصد مې دا وو، چې دے به ما ځان سره ډوډۍ له بوځي، وائي: جواب ئې راته راكړو، نور ئې څهٔ ونهٔ وئيل، وائي: چې هغه تير شو، نو سيدنا عمر رضی الله عنه راغے، د هغهٔ نه مې د يَو آيت باره كښې تپوس اُوكړو، هغهٔ هم جواب راكړو، هغهٔ هم څهٔ ونهٔ وئيل، وائي: چې هغه لاړو نو نبي عليه السلام راغے، چې هغهٔ صرف زما دي مخ ته وكتل، نو هغه ما باندې پوهه شو، وائي: ماته وائي: چې «يَا أَبَا هُرَيرَةَ!» وائي: ما ورته اووئيل: چې د الله پيغمبره حاضر يم، څهٔ حكم كوې؟ وائي: نبي عليه السلام وائي: چې ما پسې راځه، وائي: نبي عليه السلام پسې روان شوم، چې كور ته لاړو، يَو پيالۍ پئي دې وركړه، وائي: ما ته وائي: چې ورشه اصحاب صُفّه والا راوله. (اصحاب صُفّه هغه طالبان وو، چې هغوي خپل كور هر څهٔ ئې پريښودې وو، او راغلې وو، د نبي عليه السلام نه ئې دين زده كولو، صحابه كرامو انصارو مهاجرينو به هغوي له د خپل كور نه لږ لږ خوراک ليږلو، اصحاب صُفّه تقريبًا څهٔ اَويا (70) كسان وو، يَو پيالۍ پيُو ته كوره او اَويا (70) كسانو ته كوره) ابو هريره رضی الله عنه وائي: چې نبي عليه السلام ما ته وائي: چې ورشه، او اصحاب صُفّه ته اُوايه چې راشئ خوراک اُوكړئ، وائي: زړهٔ كښې وايم چې دا خو يَواځې زما نهٔ كيږي، او چې زهٔ هغوي را اُوغواړم، نو هغوي خو ميلمانهٔ دې، نو نبي عليه السلام به ما ته وائي: چې دا پهٔ دوي تقسيم كړه، نو زهٔ چې تقسيم كوم نو د تقسيم والا خو ورستو څكي. (دا مسئله ده، كوم سړے چې ساقي دے چا باندې شربت څكي، يا پهٔ چا چائے څكي، نو دے به ورستو څكي) نو ابو هريره رضی الله عنه وائي: ما سره غم شو، چې دغه كسانو باندې زهٔ دا يَو پيالۍ څكم، نو دا څهٔ به نَهر پاتې شي، او زهٔ خو به بخپله هم نَهر يم، اصحاب صُفّو پسې راغے، اصحاب صُفّه

راغلل، کیناستل نبي ﷺ ماته اشاره اُوکړه، چې دغه پیالۍ را واخله، یَو یَو له ئې ورکوم هغه ئې ترې څکې، او قسم په الله که پیالۍ کمے کوې، هغه نوره نوره سیوا کیږي. (دا معجزات وو د نبي ﷺ) چې یَو مُوړ شي نو پیالۍ بل له ورکړم، تردې چې تول اصحاب صُفّه پئي وڅکل، پیالۍ بیا هم هغه شان ده، وائي: ما آخر کښې نبي ﷺ ته پیالۍ ورکړه، وائي: نبي ﷺ ماته اووئیل: چې ابو هریره ﷺ صرف زهٔ او تهٔ پاتې شو، وائي: ما ورته اووئیل: چې آؤ، صرف زهٔ او تهٔ پاتې شو، وائي: نبي ﷺ ماته اووئیل: چې تهٔ اُوڅکه، وائي: ما ورته اووئیل: چې تهٔ اُوڅکه، وائي: پهٔ خندا شو، وائي: ماته وائي: چې تهٔ اُوڅکه، وائي: ما هغه پیالۍ د نبي ﷺ نه واغسته، یَو ګُوټ مې ترې اُوکړو، نو بیا مې نبي ﷺ له ورکړه، وائي: ماته وائي: چې نا اُوڅکه، وائي: نور مې اُوڅکل، وائي: بیا مې پیالۍ ورکړه، وائي: چې نا نور اُوڅکه، وائي: نور مې هم اُوڅکل، وائي: چې نور اُوڅکه، وائي: ما ورته اووئیل: چې د الله پیغمبره ﷺ پهٔ الله مې دي قسم وي، کهٔ نور مې خیته کښې ځائے وي، وائي: بیا هغه پیالۍ نبي ﷺ زما نه واغسته، او نبي ﷺ بیا اُوڅکل.[1] داسې لوږه وه، او دومره تکالیف وو.

### د ابو هریره ﷺ د لوږې دویم حالت

ابو هریره ﷺ فرمائي: پهٔ ما باندې درې درې ورځې داسې راغلې دي، چې زهٔ به را وغورزیدم، او ماشومان به زما پهٔ خوا تیریدل، نو هغوي به وئیل: «جُنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ». "ابو هریره لیونے شوے دے". بے هوشې پرې راغلې ده، ابو هریره ﷺ وائي: تاسو لیونې یئ، زهٔ لیونے نهٔ یم. دومره پورې حالت چې مونږ به را وغورزیدو، نو خلق به زمونږ پهٔ خوا تیریدل نو هغوي به وئیل: ابو هریره لیونے شوے دے.

کله کله به را وغورزیدو، یَو کس به ورله پهٔ سټ باندې خپه کیښوده، چې پهٔ دهٔ څهٔ چل وشو، وائي: زهٔ د لوږې د وجې نه را غورزیدلے وم. دا د صحابه کرامو حالات وو.

(1) [رواه البخاري، رقم: (6452)، والترمذي، رقم: (2477)].

يَو حديث كښې راځي، بعضې صحابه كرام داسې وو، يَو صحابي دے، ابن الجهاد، زوې ورته وائي: اے پلاره! تاسو نبي ﷺ ليدلے وو؟ او كچرې ما نبي ﷺ ليدلے وے، ما به دا كړے وے، ما به دا كړے وے، (د خپل ځان صفت ئې كولو) هغهٔ پلار ورته وائي: «أَيْ بُنَيَّ اتَّقِ اللهَ وَسَدِّدْ» "د الله نه ويريږه او سم شه" «فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَقَدْ رَأَيْتُنَا لَيْلَةَ الْخَنْدَقِ» "زما دې پهٔ الله قسم وي چې مونږ د الله د پيغمبر سره د خندق پهٔ شپه وو" نبي ﷺ اوئيل: څوک دے چې هغه لاړ شي او مونږ له د دُښمن خبر راوړي، هغه سرے به زما قيامت كښې ملګرے او دوست وي، تمام صحابه كرام ناست دي، د لوږې د وجې نه، يَو صحابي دا جرأت نشي كولے چې دا مزل اُوكړي، هر يَو صحابي چپ ناست دے، يا خو هغه دور وو چې نبي ﷺ به اووئيل: دا كار به څوك اُوكړي، يَو صحابي به د بل صحابي نه مخكښې كيدو، خو دومره لوږه وه، چې يَو صحابي غږ نهٔ كوي.[1]

**د ابن ابي الدنيا روايت**

علماء كرام د هغې نه نقل كوي، چې محمد بن سيرين ؓ فرمائي: «إِنْ كَانَ الرَّجُلُ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِي عَلَيْهِ ثَلَاثَةُ أَيَامٍ لَا يَجِدُ شَيْئًا يَأْكُلُهُ».[2]

"بعضې خلق داسې وو، چې تر دريُو ورځو پورې به ورته څهٔ شے نهٔ ميلاويدو، نو چې خرمن به ئې چرته اُومونده، هغه به ئې را واغسته، هغه به ئې رِيته كړه، نو بيا به ئې هغه خوړه". داسې تكاليف ئې برداشت كړې وو.

يَو روايت كښې راځي، فُضاله بن عبيد ؓ فرمائي: چې نبي ﷺ به كله صحابو له مونځ وركولو، بعضې صحابه كرام به د ډيرې لوږې د وجې چې اودريدے به نهٔ شول، نو

---

(1) [رواه الدولابي في "الكنى والأسماء"، رقم: (150)].

(2) [الجوع لابن ابى الدنيا، رقم: 61، ص 62، طبع دار ابن حزم - بيروت - لبنان].

صف کښې به را وغوځیدل، خلقو به وئیل: چې لیونې دې، لیونې به نهٔ وو، خو د لوږې د وجې به را وغورځیدل، چا به وئیل: بے هوشې پرې راغله، دا به د لوږې د وجې نه.[1]

یَو روایت کښې راځي، سیدنا انس ﷺ وائي: یَو ځل مونږ جهاد له تلو، او پهٔ اووهٔ (7) کسه به مونږ یَو کجوره خوړه، هغه به مو داسې خوړه چې یَو کس به اُوچوپله هغهٔ به بل له ورکړه، هغه به خوړه نهٔ، صرف خُلهٔ کښې به ئې اړوله راړوله، تردې پورې چې بیا به هغوي دا وچې پانړې خوړې، د لوږې د وجې.[2] او تلل جهاد له، کور نهٔ وو ناست. تردې پورې چې د صحابه کرامو دا وَخکې خراب شوې وو، د ډیرو پانړو خوړلو د وجې نه.

سیدنا ابو هریره ﷺ فرمائي: یَو ځل مونږ اوږي شوي وو، مونږ اُووهٔ (7) کسان وو، نبي ﷺ ماله اُووهٔ کجورې راکړې، چې د هر یَو کس پهٔ سَر یَو یَو کجوره واخلئ. چرته یَو کجوره او چرته لوږه ختمیدل.

یَو روایت کښې راځي، سیدنا ابو هریره ﷺ فرمائي: یَو ځل زهٔ جومات له لاړم، د لوږې د وجې نه، نو څهٔ کسان مې اُوموندل د صحابه کرامو نه چې هغوي ناست وو، نو هغوي ماته اووئیل: چې ابو هریره! د څهٔ د وجې نه را اُووتې، وائي: ما ورته اووئیل: د لوږې د وجې نه د کور نه را اُوتم، وائي: هغې هم اووئیل: چې مونږ هم د لوږې د وجې نه راوتې یُو، وائي: مونږ پاسیدو، او نبي ﷺ خوا ته لاړو، چې د الله پیغمبره! مونږ ډیر زیات اُوږې شوې یُو، کهٔ څهٔ درسره وي، وائي: نبي ﷺ مونږ له دوه دوه کجورې راکړې، هر یَو سړي خپلې دوه دوه کجورې اُوخوړې، وائي: ما یَو کجوره اُوخوړه، یَو مې ځان سره کړه، وائي: نبي ﷺ اووئیل: چې دا ولې؟ وائي: ما ورته اووئیل: چې د الله پیغمبره دا یَو کجوره به زهٔ اُوخرَم، او دا یَوه کجوره کور کښې مې مور ده، هغې دریمه ورځ ده، چې څهٔ ئې نهٔ دې

---

(1) [رواه الترمذي، رقم: (2368)].

(2) [رواه الطبراني ،رقم: (2613)].

خورلې، دا يَوه كجوره به زۀ مور له يَوسم، وائي: نبي ﷺ ماته اووئيل: چې نا دا اُوخرَه، د مور دپاره به دوه كجورې نورې دركرم. دا د صحابه كرامو د لوږې حال وو.

يَو روايت كښې راځي، سيدنا انس ﷺ فرمائي: «خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الخَنْدَقِ، فَإِذَا المُهَاجِرُونَ وَالأَنْصَارُ يَحْفِرُونَ فِي غَدَاةٍ بَارِدَةٍ».

"نبي ﷺ خندق ته را اُووتو، ناڅاپه مهاجرين او انصار صحابه كرامو خندق كنستلو سحر وخت دے او نهايت يخني ده". چې نبي ﷺ اوكتل چې يخني ده، او تكليف دے، نو نبي ﷺ اوفرمائيل:

«اللَّهُمَّ لاَ عَيْشَ إِلَّا عَيْشُ الآخِرَةِ ★ اللَّهُمَّ إِنَّ العَيْشَ عَيْشُ الآخِرَةِ
فَاغْفِرْ لِلأَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَهْ»

"الله د دنيا به څۀ ژوند وي، الله صحيح زندګي د آخرت زندګي ده، الله انصارو ته هم بخښنه اُوكړه، او مهاجرينو ته هم بخښنه اُوكړه، جنت ورله وركړه"

صحابه كرامو چې دا واوريدل، نو صحابه كرام وائي:

«نَحْنُ الَّذِينَ بَايَعُوا مُحَمَّدَا ... عَلَى الجِهَادِ مَا بَقِينَا أَبَدَا»[1]

"مونږ هغه صحابه كرام يُو چې مونږ د نبي ﷺ سره پۀ جهاد بيعت كړے دے، هميشه دپاره به مونږ د نبي ﷺ سره كلك ولاړ يُو".

يَو روايت كښې راځي، صحابه كرام ورته وائي:

«نَحْنُ الَّذِينَ بَايَعُوا مُحَمَّدَا ... عَلَى الإِسْلاَمِ مَا بَقِينَا أَبَدَا»

نبي ﷺ ورته وائي:

«اللَّهُمَّ إِنَّهُ لاَ خَيْرَ إِلَّا خَيْرُ الآخِرَهْ ... فَبَارِكْ فِي الأَنْصَارِ وَالمُهَاجِرَهْ»[1]

(1) [رواه البخاري، رقم: (2834، و 4099)].

"الله نور خیروته نشته مګر د آخرت خیر دے، انصارو کښې هم خیر او برکت واچوه او مهاجرو کښې هم خیر او برکت واچوه"[1].

صحابه کرامو خومره د الله د دین خدمت کړے دے، نن هر څۀ ډیر دي، لیکن مونږ د الله د دین ذره خدمت ونۀ کړو.

نبي ﷺ صحابه کرامو ته وئیلي وو: زما دي د الله په ذات باندې قسم وي، د غربیئ نه په تاسو نۀ ویرېږم، ددې نه په تاسو یرېږم چې دنیا به دربانديې دومره فراخه شي، لکه ستاسو نه مخکنو اُمتونو باندې چې فراخه شوې وه، د هغوي پشان به تاسو له هم الله مال ډیر کړي، او داسې محبت به تاسو د مال سره شروع کړئ لکه څنګه محبت چې هغوي شروع کړے وو، تاسو به داسې هلاک شئ، لکه څنګه چې هغوي هلاک شوي وو.

ددې وجې نه ما چې کوم آیت لوستے وو، هغې کښې الله تزهید من الدنیا کوي ﴿زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ﴾ "خائسته ښکاره شوې دي خلقو ته مینه کول د خپلو خواهشاتو سره" هر سړے خپل خواهش پسې روان دے.

(1) یو خواهش ﴿مِنَ النِّسَاءِ﴾ د زنانو نه، هر سړے پدې طمع کښې دے، چې ځوان شم، نو وادۀ به کوم، د دین د کار څۀ غم او فکر ورسره نشته، د دنیا د کټلو غم او فکر ورسره شته، کچرته تۀ ورته اُووائې: چې راځه د دین کار اُوکړو، وائي: زۀ نۀ یم اُوزګار، او کۀ ورته اُووائې: چې کیره پریده، وائي: ما له وادۀ او کویدن نۀ دې کړې، نو کیره څۀ له پریدم؟ مطلب ئې دا وي کۀ کیره مې پرېښوده نو بیا راله څوک لُور ځُور نۀ راکوي. إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ.

(2) دویم خواهش ﴿وَالْبَنِينَ﴾ بیا د ځامنو په طمع وي.

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (2835، و4100)، ومسلم، رقم: (1805)].

شیخ القرآن ﷫ به دا آیت یَو عجیبه انداز سره وئیلو، اول پدې طمع وي، واده به ښکه کوم؟ چې ورته وائي: راځه د دین کار له، د دین کار نهٔ کوې، نو دے وائي: د دین کار به کوم خو چې الله راله یَو بچے راکړې، نو د دنیا کار به هغهٔ کوې، او زهٔ به درس له درځم، نو چې الله ورله بچي ورکړې، نو بیا نور هم پهٔ منده شي، نو چې بیا ورته وائي: چې درس له نهٔ راځې؟ وائي: لږ مال دولت کټم ﴿وَالْقَنَاطِيرِ الْمُقَنْطَرَةِ﴾ نو چې مال او دولت وګټي، نو د ښځې دپاره سَرهٔ زر او سپین زر راجمع کوې، او درس ته اُوزګار نهٔ وي، چې ورته وائي: چې اوس د دین خدمت له راځه، وائي: یَو سورلي پکار ده، ځکه دا خو لرې ځائے دے، چې سورلي هم واخلي، او ورته اُووائي: چې اوس درس له راځه، وائي: لږ صبر اُوکړه، ځان له یَو څاروے اخلم هغه بچے مې سحر وختې د نورو خلقو نه پټې راوړې، نو ځان له خپل څاروے اخلم، بیا به د قرآن درس له درځم، نو چې څاروے واخلي، او ورته وائي: چې درس له راځه، وائي: لږ صبر اُوکړه، هغې غُوَا میخو له څهٔ کیا کول غواړې، نو بیا به درځم، نو چې دا ټول کارونه پوره کوې، نو بس وخت ئې پوره شوے وي، او دنیا نه پدې حالت کښې لا ړ شي، نهٔ ئې دنیا وګټله، او نهٔ ئې دین وګټلو، نو ﴿ذَٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَاللَّهُ عِندَهُ حُسْنُ الْمَآبِ﴾.[1]

"دا دُنیا یَو ځکه ده الله سره ډیر خائسته ځائے د راکرځیدو دے" د هغې دپاره تیارے اُوکړه.

ددې فاني دُنیا دپاره دي خومره محنت اُوکړو، سحر هم منډې، ماښام هم منډې،

---

(1) [سورة آل عمران: 14].

هر وخت په منده، آخرت چې يقيني زندګي ده، او ما سره به الله حساب کوي، که زه نيک عمله يم، الله به جنت راکوي، او که زه بدعمله يم، نو الله به جهنم راکوي، نو د هغې دپاره دي څومره تيارے اُوکړو؟ ددې دپاره هم سوچ پکار دے، دا فانې دُنيا ددې دپاره دومره تيارے کيږي، او چې کومه هميشه دپاره زندګي ده، د هغې دپاره تيارے نۀ دے پکار؟ د هغې دپاره خو ډير تيارے پکار دے، دغه وجه وه، چې صحابه کرامو خپل مال قربان کړے وو، خپل ځان ئې قربان کړے وو، اولاد ئې قربان کړے وو، دُنيا ئې قربان کړې وه، خو ځان له ئې آخرت جوړ کړے وو، په دُنيا کښې په هغوي زيرې شوې وو، چې الله ترې خوشحاله دے، دُنيا کښې پرې د جنت زيرې شوې وو، مونږ له پکار دي چې د آخرت تيارے اُوکړو. دُنيا خو متاع دے. د متاع بعضې علماء يَو تفسير کوي، چې متاع ديته وائي: چې سپے راشي او يَو غوړه کپړه څُلۀ کښې اُوچته کړي، هغه کپړه چې زنانو پرې لوښې وينځلي وي، نو غوړه وي نو سپے ئې څُلۀ کښې واخلي، او لرې ځائے ته ئې يَوسي چې هلته ورته کيني، چې څُلۀ کښې زور ورکړي، نو هغې کښې هيڅ نۀ وي، هغه صرف کپړه وي، او د څُلې نه ئې هلته اُوغورځوي، دغسې دا دُنيا مونږ ته قيمتې ښکاري، دا صرف متاع او شکه ده، مونږ ئې صرف پدې خائسته والې دهوکه کيږو.

آخرت دپاره تيارے پکار دے، ددين او د دُنيا مقابله چې راځي نو دُنيا پريښودل غواړي، او د دين کار کول غواړي. الله دې د عمل کولو توفيق راکړي.

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



بسم الله الرحمن الرحيم

وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ * لَكُمْ فِيهَا فَاكِهَةٌ كَثِيرَةٌ مِّنْهَا تَأْكُلُونَ

(سورة الزخرف: 72-73)

# موضوع

# دَ جنت نعمتونه

بتاريخ: 2008-06-27

بمقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربآني حفظه الله

# د جنت نعمتونه

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدَهٗ وَرَسُوْلَهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿يَا عِبَادِ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ وَلَا أَنْتُمْ تَحْزَنُونَ ★ الَّذِينَ آمَنُوا بِآيَاتِنَا وَكَانُوا مُسْلِمِينَ ★ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ أَنْتُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ تُحْبَرُونَ ★ يُطَافُ عَلَيْهِمْ بِصِحَافٍ مِنْ ذَهَبٍ وَأَكْوَابٍ وَفِيهَا مَا تَشْتَهِيهِ الْأَنْفُسُ وَتَلَذُّ الْأَعْيُنُ وَأَنْتُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ★ وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ★ لَكُمْ فِيهَا فَاكِهَةٌ كَثِيرَةٌ مِنْهَا تَأْكُلُونَ﴾.[1]

عزت مندو مسلمانانو رونړو! ما ستاسو په مخکښې د سورت الزخرف يَو څو آياتونه أولوستل، پدې بيان کښې دا عرض کوو، چې الله د نيکانو بندګانو دپاره کوم مقام تيار کړے دے؟ او آخرت کښې به الله مؤمنانو له څهٔ ورکوي؟ د الله رب العزت تابعدارو او نيکانو بندګانو له چې کوم نعمتونه ميلاويږي؟ هغې ځائےته جنت وائي: جنت دا د الله رب العزت د نعمتونو مجموعه ده، چې الله رب العزت د خپل بنده تمام خواهشات او تمام ارمانونه هغه به جنت کښې پوره کوي، دنيا نعمتونه هم ختميدونکي دي، په دُنيا کښې الله رب العزت انسان ته صرف هغه نعمتونه ورکوي،

---

(1) [سورة الزخرف: 68-73].

چې صرف د انسان ژوند په هغې باندې تیر شي، انسان نهایت بعضې وخت په تکلیف کښې وي، په مصیبت کښې وي، په احادیثو کښې تیر شوې وو، نبي ﷺ وئیلي وو، مسلمان ته چې دُنیا کښې هر قسمه تکلیف ورسیدو، غم او درد ورته ورسیدو، او دے په هغه پریشانۍ باندې صبر اُوکړې، نو د هغه دپاره اجر دے، خو چونکه پدې دُنیا کښې الله رب العزت بخپلو بندګانو باندې امتحانات کوې، اکثر چې کوم سړے دینداره وي، نو هغه اکثر غریبانان وي.

نبي ﷺ ته یَو سړے راغے، او نبي ﷺ ته وائي: زما تا سره مینه ده، تاسو سره مې محبت دے، نبي ﷺ ورته اووئیل: چې ما سره دې مینه ده، نو بیا غریبۍ ته ځان تینګ کړه، ما سره چې د چا مینه وي، په هغه باندې غربې او فقر داسې راځي، لکه څنګه چې سیلاب را روان وي، او ښکته ځائے ته هغه اُوبه راغورځیږي، داسې په تلوار هغوي ته غریبې او فقر راځي.

په دُنیا کښې غُربت څه د نقصان والا نه دے، ددې غُربت په وجه به الله جنت کښې د انسانانو تمام خواهشات پوره کوي.

دلته دُنیا کښې که یَو سړے بادشاه دے، د اوچت مقام والا دے، نو دلته د انسان ارمان څکه نه پورا کیږي، چې دا دُنیا فاني ده، که یَو سړے بادشاه دے، نو هغه وائي: چې ما سره د دویم مُلک بادشاهي وي، نو دا به ښه وي، که د دویم مُلک بادشاهي ورسره وي، نو دا به ښه وي، که د دویم مُلک بادشاهي ورسره وي، نو هغه وائي: چې ما سره د دریم مُلک بادشاهي وي، نو دا به ښه وي، خو بیا هم د انسان خواهش نه پورا کیږي.

پدې دُنیا کښې څلور داسې حکومتونه تیر شوي دي، چې د هغوي په تمامه دُنیا حکومت وو، خو بیا هم د هغوي ارمانونه پورا شوي نه دي، که ستا په توله دُنیا

حکومت دے، خو چې د دې دُنیا نه روان ئې نو دا څۀ کمال نۀ دے، او کۀ عمر دې ډیر دے، او غریب ئې، بیا هم د انسان پۀ زړه کښې ډیر ارمانونه وي، نو پۀ دې دُنیا کښې الله د هیچا ارمان نۀ دے پورا کړے، ځکه دُنیا فاني ده، پۀ جنت کښې به الله د تمامو جنتیانو ارمانونه پورا کوي.

(1) اول روایت

نبي ﷺ فرمائي: چې الله پخپله فرمائي: چې «أَعْدَدْتُ لِعِبَادِي الصَّالِحِينَ مَا لاَ عَيْنٌ رَأَتْ، وَلاَ أُذُنٌ سَمِعَتْ، وَلاَ خَطَرَ عَلَى قَلْبِ بَشَرٍ».[1]

"ما د خپلو بندګانو دپاره داسې نعمتونه تیار کړې دي، چې هغه نعمتونه د چا سترګو لیدلي نۀ دي، نۀ د چا غوږونو د هغې آواز اوریدلے دے، او نۀ د بنده زړه کښې د هغې تصوّر راتلے شي"، بیا نبي ﷺ اووئیل: دا آیت اُولولئ: دا آیت هم د دې حدیث سره مناسب دے، الله فرمائي: «فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ».[2]

"نۀ پوهیږي یو نفس چې څومره پټ نعمتونه دي، د هغۀ دپاره یخونکي د سترګو دا بدله پۀ سبب د هغې باندې چې وو چې دُنیا کښې دوي نیک اعمال کړې وو".

الله مؤمنانو له زیرے ورکوي: «وَبَشِّرِ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أَنَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ كُلَّمَا رُزِقُوا مِنْهَا مِن ثَمَرَةٍ رِّزْقًا قَالُوا هَٰذَا الَّذِي رُزِقْنَا مِن قَبْلُ وَأُتُوا بِهِ مُتَشَابِهًا وَلَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَهُمْ فِيهَا خَالِدُونَ».[3]

"زیرے ورکړه! هغه کسانو له چې ایمان ئې راوړے دے، او عملونه ئې کړي

(1) [رواه البخاري، رقم: (3244، و 4779، و 4780، و 7498)، ومسلم، رقم: (2824، و 2824، و 2824)، والترمذي، رقم: (3197، و 3292)، وابن ماجة، رقم: (4328)].

(2) [سورت الم السجدة: 17].

(3) [سورة البقرة: 25].

دي نيک چې يقيناً دوي دپاره به جنتونه وي، چې بهيږي به لاندې د وُنو د هغې نه نهرونه، کله چې رزق ورکړے شي ددې جنت نه څۀ ميوې دپاره د خوراک وائي: به دوي دا هغه رزق دے، چې راکړے شوے وو مونږ له دنيا کښې وربه کړے شي دوي ته يَو شان د دنيا د ميوو سره او دوي له به په دې جنت کښې بيبيانې وي، پاکې صافې او دوي به په دې جنت کښې هميشه وي".

**کامل بشارت**

کله کله د انسان خپل کور نۀ وي، کله يَو خوا روان وي، او کله بل خوا روان وي، نو الله وائي: چې نيک عمل دې اُوکړو نو جنت کښې به کور درکړم «أَنَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ»، کله کله د انسان خپل کور وي خو اُوبۀ پکښې نۀ وي، نو الله وائي: چې نيک عمل دې اُوکړو نو داسې کور به درکړم چې «تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ»، "د وُنو د لاندې به نِهرونه روان وي"، نو دا خو جنتي له تکليف دے، نو علماء کرام معنی کوي «تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ» "أَيْ: مِنْ تَحْتَ تَصَرُّفِهِمْ"، "د هغوي د تصرف او اختيار لاندې به چليږي" چې کوم خوا ئې غواړي نو هغه اُوبۀ به وريسې روانې وي، دُنيا کښې الله د خلقو نه دا تکليف اوچت کړے دے، نو جنت کښې خو به خامخا دا تکليف نۀ وي.

«كُلَّمَا رُزِقُوا مِنْهَا مِنْ ثَمَرَةٍ رِزْقًا قَالُوا هَٰذَا الَّذِي رُزِقْنَا مِنْ قَبْلُ» "هر کله چې دې جنتيانو له رزق ورکړے شي دوي به وائي دا خو هغه رزق دے چې مونږ له دُنيا کښې راکړے شوے وو"؛ ځکه کله کله کور هم وي، اُوبۀ پکښې هم وي، خو د خوراک څۀ نۀ وي، نو الله وائي: خوراک به هم درکړم.

«وَأُتُوا بِهِ مُتَشَابِهًا» کله کله خوراک هم وي، خو سړي له د هغې خوراک د خوړلو چل نه ورځي، نو الله وائي: داسې خوراک به وي چې د هغې چل به ورځي؛ ځکه چې نا اشنا ميوه وي نو سړي له د خوراک چل نۀ ورځي.

﴿وَلَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ﴾ "دوی لره به پدې جنت کښې پاکې بیبیانې وي"، کله کله کور هم وي، اُوبهٔ پکښې هم وي، خوراک هم وي، خو سړے یواځې وي، نو الله وائي: ملګرے به هم درکړم، کله کله ملګرے هم وي، بي بي هم وي، خو هغه د سړي دپاره غم وي، نو الله وائي: ﴿مُّطَهَّرَةٌ﴾ "پاکې صافې بیبیانې به وي"، بیا کله کله دُنیا کښې خاوند وفات شي، او کله ښځه وفات شي، نو سړے یواځې پاتې شي، الله وائي: ﴿وَهُمْ فِيهَا خَالِدُونَ﴾ "دوی به پهٔ دې جنت کښې همیشه وي".

**پهٔ جنت کښې څلور قسمه نهرونه**

پهٔ قرآن کریم کښې الله فرمائي: ﴿مَّثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ فِيهَا أَنْهَارٌ مِّن مَّاءٍ غَيْرِ آسِنٍ وَأَنْهَارٌ مِّن لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُ وَأَنْهَارٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ وَأَنْهَارٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى﴾.[1]

"صفت د جنت هغه چې وعده ئې کړے شوې ده د متقیانو سره پهٔ هغې کښې نهرونه به وي، د اُوبو چې نهٔ به وي بدبویه، او نور نهرونه د پیُونه چې نهٔ به وي بدل شوے خوند د هغې، او نور نهرونه د شرابو نه چې خوند به ورکوي څکونکو ته، او نور نهرونه د ګبین صفا کړے شوي نه".

(1). اول قسم نهر به د اُوبو وي، بے خونده به نهٔ وي، متغیره به نهٔ وي، د دُنیا اُوبهٔ به نهٔ وي، چې څهٔ به صفا وي، او څهٔ به ګنده وي، او څهٔ به مالګینې وي، د جنت اُوبهٔ به ډیرې صفا او مزیدارې وي.

(2) دویم قسم نهر به د پیُو وي، خو داسې پئي به وي چې د هغې خوند به نهٔ وي خراب شوې، د دُنیا پئي به نهٔ وي، چې درې څلور ورځې پس خراب شوې وي، د دُنیا پئي چې وي، نو هغه خو نیمې اُوبهٔ وي، پخوا بهٔ خلقو دا وئیل: چې فلانکے سړے پهٔ پیُو کښې

---

(1) [سورة محمد: 15].

اُوبهٔ اچوي. زمونږ استاذِ محترم شیخ القرآن والحدیث مولانا غلام حبیب هزاروي رحمه الله

به فرمائیل: چې اُوس ترقي شوې ده، اُوس خلق پهٔ اُوبو کښې پئي اچوي، او کهٔ ورته دې اووئیل: چې دي کښې خو اُوبهٔ دي، وائي: قسم دے کهٔ اُوبهٔ مې پکښې اچولې وي، اوس به داسې وئیل غواړې: چې اُوبو کښې خو دي پئې نهٔ دي اچولې؟ دا دهوکه ده، او ناروا ده، او اکثر خلق پدې کښې مبتلا دي.

**واقعه**

یَو روایت کښې راځي، سیدنا عمر رضی الله عنه پهٔ لار روان وو، (د شپې به هغوي ګشت کولو، او د خپل رعیت حال به ئې معلومولو) شپه وه، یَوې ښځې خپله اوښه وُلوَشله، لُور ته ئې آواز اُوکړو، اے لُورې! اُوبهٔ راوړه، چې پدې پیُو کښې واچوو، هغه لُور ورته وائي: عمر رضی الله عنه به خبر شي، دا خو ډیره لویه ګناه ده، (سیدنا عمر رضی الله عنه بَهر خبره آورې) مور ورته وائي: عمر رضی الله عنه څه خبر دے؟ اُوبهٔ راوړه چې پیُو کښې واچوو، هغهٔ ته څهٔ پته لګي؟ لُور ورته وائي: کهٔ عمر رضی الله عنه ته پته نهٔ لګي نو، د عمر رضی الله عنه رب ته خو پته لګي، الله خو خبر دے، الله ته به څهٔ جواب ورکوو؟ مور ئې غلې شوه، سیدنا عمر رضی الله عنه هغه کور معلوم کړو، او بچې ته ئې اووئیل: کهٔ وادهٔ کوې، نو هم پدې کور کښې به کوې، ددې دینداړې ښځې سره به نکاح کوې.

نو د جنت نِهرونو کښې به یَو نِهر د پیُو وي، خو د هغې خوند به نهٔ وي بدل شوے.

(3) دریم نِهر به د شرابو وي، خو داسې شراب چې خوند به ورکوې څکونکو ته، د دُنیا د شرابو پشان شراب به نهٔ وي، چې سرے ئې اُوڅکي، نو بیا د ځان نه خبر نهٔ وي.

**واقعه**

یَو شرابي شراب څکلي وو، بے هوشه پرُوت وو، نو سپے راغے، او خُلهٔ ئې ورله ستله، نو دهٔ زړهٔ کښې اووئیل: چې دا څوک دے، او زما خُلهٔ صفا کوې، نو دهٔ

اووئيل: "أَكْرَمَكَ اللهُ".[1] سبې ته ئې "أَكْرَمَكَ اللهُ" اووئيل.

**واقعه**

يَو شرابي شراب څکلي وو، د نشې په حالت کښې وو، چا لوې بُول کړې وو، هغه لوې بُول ئې لاسو کښې راغستل او په مخ ئې راښکل، او د آودس دعا ئې وئيله: «اللَّهُمَّ اجْعَلْنِي مِنَ التَّوَّابِينَ، وَاجْعَلْنِي مِنَ الْمُتَطَهِّرِينَ»؛ ځکه د حال نه خو خبر نۀ وي. د دُنيا د شرابو خو دغه حال وي.[2]

د جنت شراب به انسان له نقصان نۀ رسىٔ، د انسان په سَر به درد نۀ راځي، انسان باندې به د هغې نه اُلټىٔ نۀ لګې. قرآن کريم کښې الله فرمائي: ﴿لَّذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ﴾ "خوند به ورکوې څکونکو ته".

(4) څلورم نِهر به د کبين صفا کړے شوې نه وي، د هر قسم ګندګئ نه به پاک وي.

دا څلور نِهرونه به د هر جنتي کور مخې ته بهيږي. نو دُنيا کښې چې کوهې ګنې نو په هغې خومره پيسې لګې، نو الله وائي: چې ايمان دې راوړو، او نيک عمل دې اُوکړو، نو الله وائي: کور به هم درکړم، اُوبۀ به پکښې هم وي، خوراک به هم درکړم، بي بي به هم درکړم، او هميشه دپاره به جنت کښې اُوسيږي؛ ځکه دُنيا کښې خو يا ښځه مره شي، يا خاوند مرۀ شي؛ ځکه قرآن وائي: ﴿كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ﴾.[3]

"هر يَو نفس څکونکے د مرګ دے". بيا هغه خوندونه او مزې ختم شي، الله وائي: داسې به نۀ وي، «وَهُمْ فِيهَا خَالِدُونَ» "دوې به هميشه دپاره جنت کښې وي"، مرګ او فنا به پرې نۀ راځي.

---

(1) [تفسير القرطبي تحت آية سورة البقرة: 219].

(2) [تفسير القرطبي تحت آية سورة البقرة: 219].

(3) [سورة آل عمران: 185].

اول روایت

يو حديث كښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: چې كله جنتيان جنت ته لاړ شي، او جهنميان جهنم ته لاړ شي، نو مرګ به راوستے شي د جنتيانو او جهنميانو مينځ كښې كښې به اُودرولے شي، آواز به اُوكړے شي، اے جنتيانو او جهنميانو اُوګورئ دا مرګ دے، مرګ به پخپله مړ شي، مرګ نور خلق وژني، پدې مرګ به پخپله هم مرګ راروان دے، مرګ له به د ګډ شكل وركړے شي، هغه به راوستے شي، د جنت او جهنم مينځ كښې به اُودرولے شي، حلال به كړے شي، آواز به اُوكړے شي، چې اے جنتيانو تاسو هميشه دپاره جنت كښې اوسيږئ، اے جهنميانو تاسو هميشه دپاره جهنم كښې اُوسيږئ، نۀ به جنتيانو باندې مرګ راځي، او نۀ به جهنميانو باندې مرګ راځي، فنا او زوال به پكښې نۀ وي.[1]

پكار دي چې مونږ ددې دپاره عمل اُوكړو، ددې دپاره عمل څۀ شے دے؟ عمل دا دے چې څۀ الله وئيلي دي، او څۀ د الله پيغمبر وئيلي دي، چې هغه كار اُوكړو، او چې د څۀ نه ئې منع كړې ده، چې د هغې نه منع شو، او د هغې نه ځان بچ كړو.

د جنت قيمت

قرآن كريم كښې الله فرمائي: ﴿إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ﴾.[2]

"يقينًا الله اغستې دي د مؤمنانو نه نفسونه د مؤمنانو او مالونه د مؤمنانو پدې خبره چې دوي لره جنت دے".

لږ سوچ پكار دے، دا نه چې يو سړے وائي: زما د طرف نه سَل روپئ واخله، زۀ

(1) [رواه البخاري، رقم: (6548)، ومسلم، رقم: (2850)].

(2) [سورة التوبة: 111].

اوزګار نهٔ یم، یا زهٔ به درسره کار اُوکړم، د مال وَس مې نهٔ رسي، نا نا مال به هم لګوې، او بدن به هم لګوې، دا د جنت قیمت دے، یَو سړے نهٔ ضعیف دے، نهٔ کمزورے دے، او تا ته وائي: چې ته زما د طرف نه حج اُوکړه، نو دا حج نهٔ کیږي، کهٔ بادشاه دے، نو پیسې به هم لګوې، او حج به پخپله کوې. داسې یَو بل مالدار دے، او هغه وائي: چې زما پهٔ ځائے د سحر یا د ماسپخین مونځ اُوکړه، نو دا مونځ نهٔ کیږي، دا پهٔ تا لازم دې، چې ته به دا خپل بدن ګرزوې، نفس او بدن دواړه به لګوې، هله به تاته جنت میلاویږي، کهٔ څوک جنت غواړې، نو دا دواړه څیزونه به د الله د رضا دپاره لګوي.

## قرآن کریم کښې د جنتیانو ذکر

قرآن کریم کښې الله د جنتیانو ذکر بے شماره آیاتونو کښې کوې، الله رب العزت فرمائي: ﴿يَا عِبَادِ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ وَلَا أَنْتُمْ تَحْزَنُونَ﴾.[1]

"اے زما بندګانو! نهٔ به وي څهٔ یره پهٔ تاسو باندې، او نهٔ به تاسو غمژن شئ".

﴿الَّذِينَ آمَنُوا بِآيَاتِنَا وَكَانُوا مُسْلِمِينَ﴾.[2]

"دا هغه کسان دي چې زمونږ پهٔ آیاتونو ئې ایمان راوړے دے، او وو دوي غاړه کیخودونکي حکم د الله ته".

الله به ورته وائي: ﴿ادْخُلُوا الْجَنَّةَ أَنْتُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ تُحْبَرُونَ﴾.[3]

"دننه شئ جنت ته تاسو هم دننه شئ، او ستاسو بیبیانې به درسره هم دننه کیږي، تاسو به پدې جنت کښې خوشحاله کړے شئ".

نو دُنیا کښې چې څان له کور اَخلې، نو پدې کښې ستا بدن هم لګې او ستا مال

(1) [سورة الزخرف: 68].

(2) [سورة الزخرف: 69].

(3) [سورة الزخرف: 70].

هم لکي، او جنت ته هسې غواړې؟ د جنت قيمت آسان دے، خپل بدن د الله د رضا دپاره استعمال کړه، خپل مال د الله د رضا دپاره استعمال کړه، چې د الله ستا نه څه مطالبه ده، هغه به منې، که د جهاد مطالبه ده، جهاد به کوې، او که د علم مطالبه ده، علم به حاصلوې، که د دين يَو بل کار دے هغه به کوې، پدې کښې به خپل بدن او مال لګوې. بعضې سړے چې د الله په دين باندې مال لګوې نو دا ورته تاوان ښکاري. حالانکه نبي ﷺ فرمائي: «فَأَمَّا الَّذِي أُقْسِمُ عَلَيْهِنَّ، فَإِنَّهُ مَا نَقَصَ مَالُ عَبْدٍ بِصَدَقَةٍ».[1]

"په الله مې دې قسم وي د بني آدم مال د صدقې د وجې نه نه کميږي".

څومره چې ډير خيرات کوې دومره به تا باندې الله فضل کوې. «الصَّدَقَةُ رَدُّ الْبَلَاءِ» "صدقه د مصيبتونو واپس کونکې ده".

په مونږ چې مصيبت راشي، نو هله صدقه کوو، دا صدقه مخکښې پکار وه. د جنت قيمت دوه څيزونه دي: (1) مال لګول، او (2) دويم بدن لګول، نو جنت ستا دے.

دُنيا کښې ځان سترے کړه، نو الله به جنت درکړي، الله وائي: جنت کښې به ته زما ميلمه ئې، قرآن کښې الله فرمائي: ﴿يُطَافُ عَلَيْهِم بِصِحَافٍ مِّن ذَهَبٍ وَأَكْوَابٍ وَفِيهَا مَا تَشْتَهِيهِ الْأَنفُسُ﴾.[2]

"کرځولے به شي په دوي باندې کاسې د سرُو زرو نه او ګلاسونه به وي او په دې جنت کښې به هغه څه وي"، چې دوي ئې خوښه وي، هر ارمان به ئې الله پورا کوي، چې څه باندې د انسان سترګې يخيږي، هغه به ورته جنت کښې ميلاويږي.

**دويم روايت**

يَو حديث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: چې کله د قيامت ورځ شي، الله به

---

(1) [رواه البغوي في "شرح السنة"، رقم: (4097)].

(2) [سورة الزخرف: 71].

جنتي ته اووائي: اے جنتي ته «تَمَنَّ» "جنتي غواړه"، دا جنتي به غواړي، «فَيَتَمَنَّى» "خومره چي غواړي نو دے به اُوغواړي"، بيا به چپ شي، «وَيَتَمَنَّى» "نو بيا به نور غوښتل شروع کړي"، الله به ورته اووائي: نور غواړه، نو دے به ورته اووائي: الله بس دے، الله به ورته وائي: «هَلْ تمَنَّيْتَ؟» "آيا تا خپل ارمان پورا کړو"، نور ضرورت خو دي نشته؟ دے به ورته وائي: «نَعَمْ»، "آؤ"، ما ټول څيزونه اوغوښتل، الله به ورته وائي: «فَإِنَّ لَكَ مَا تَمَنَّيْتَ وَمِثْلَهُ مَعَهُ» "بنده څۀ چي تا اُوغوښتل هغه خو تا له هسي هم ميلاؤ شول، او دا خومره چي تا غوښتلي دي، دومره مي تا له نُور هم درکړل".[1]

څکه اوس الله د انسان ارمان پورا کوي، انسان وائي: بس دے، او الله ورته وائي: دا ورسره هم واخله. دُنيا کښي مونږ سوال کوو، الله دا نعمت راله راکړي، ځان ستړے کوو، او نعمتونه نۀ ميلاويږي، دُنيا کښي د انسان ارمان نۀ پورا کيږي، دعاګاني غواړو، او هغه دعاګاني نۀ قبليږي، او کۀ دعا قبوله شي، نو هغه وخت قبوله شي، چي هغه وخت تير شوے وي.

زمونږ استاذِ محترم شيخ القرآن والحديث مولانا صدر الشهيد صاحب حفظه الله به فرمائيل: وائي: افسوس دا دے، چي زمونږ دعا اول نۀ قبليږي، او کۀ قبوله شي، نو هغه داسي وخت کښي وي، چي بيا زمونږ ضرورت نۀ وي.

مثلًا زمينداران دعا غواړي چي يا الله باران اُوکړې، نو باران نۀ کيږي، بيا دا ټولي دعاګاني جمع شوي وي، نو ټولي دعاګاني ژمي کښي قبولي شي، او هره ورځ باران وي، نو زميندارن وائي: الله اُوس ئي اودرے، نو بيا باران نۀ اودريږي، نو ټول ژمي کښي اووائي: چي باران مۀ کوه، باران مۀ کوه، نو هغه اُوړي کښي قبولي شي، نو

(1) [رواه مسلم، رقم: (182)].

اُورې کښې سوال کوې چې الله باران اُوکړې، نو بيا اُورې کښې باران نۀ کيږي.

دُنيا کښې مونږ دعاګانې غواړو، او سلو کښې چرته يَوه دعا قبوله شي، نا اُميده کيدل نۀ دي پکار د الله د رحمت نه، او خپله دعا بس کول نۀ دي پکار. نو بهر حال دُنيا کښې د انسان ټول ارمانونه نۀ پوره کيږي، پۀ جنت کښې به د انسان هر ارمان پوره کيږي.

## د اهل السنت والجماعت مسلک

د اهل السنت والجماعت دا مسلک دے، چې مسلمانانو کښې کوم ګناهګاران مسلمانان دي، کۀ الله اُوغواړي او معاف ئې کړي، نو څوک تري تپوس نۀ شي کولے، او کۀ سزا ورکوي، نو هغوي له به د خپلې ګناه مطابق سزا ميلاويږي، اول به جهنم ته لاړ شي، چې کوم ګناهونه ئې کړي دي د هغې سزا به ورته ميلاويږي، او د هغې نه پس به جنت ته ځي.

## دريم روايت

يَو حديث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: آخرې سړے چې د جنهم نه را وځي، دۀ ته به الله اُووائي: جنت ته لاړ شه، نو چې دے جنت ته نزدې شي، نو ددۀ خيال کښې به دا راشي چې زۀ خو د ټولو نه آخرې راووتم، زما نه ورستو خو څوک نشته، نو جنت خو ټول ډک دے، زۀ به کوم ځائے ته ورشم؟ دے به بيا واپس راشي، الله ته به وائي: الله ما خو جنت وکتلو، نو هغه خو ټول ډک کړے شوے دے، الله به ورته وائي: ځه جنت ته دننه لاړ شه، دے به بيا جنت ته راشي، نو دے به بيا ګمان اُوکړي، چې جنت خو ټول ډک دے، بيا به ورته الله وائي: لاړ شه جنت ته دننه شه، «فَإِنَّ لَكَ مِثْلَ الدُّنْيَا وَعَشَرَةَ أَمْثَالِهَا» "ستا يواځې برخه به جنت کښې دومره وي لکه د تمامې دُنيا هومره، او د دنيا هومره چې لس نورې دنياګانې ورسره شي"، بيا نبي ﷺ فرمائي: چې ستا دپاره به د دنيا پۀ لس چنده باندې ميلاويږي، دا بنده به اُوخاندې، وائي به: يا الله «تَسْخَرُ مِنِّي -أَوْ:

تَضْحَكُ مِنِّي - وَأَنْتَ الْمَلِكُ» "آيا ته ما پورې توقې کوې يا ما پورې خاندې، ته خو بادشاه ئې"، دا حديث چې نبي ﷺ وئيلو صحابي وائي: «فَلَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَحِكَ حَتَّى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ» "ما وکتل چې نبي ﷺ خاندل تردې پورې چې د هغوي غاښونه ښکاره شول"، او نبي ﷺ اوفرمائيل: «ذَاكَ أَدْنَى أَهْلِ الْجَنَّةِ مَنْزِلَةً» "دا به هغه ادنیٰ جنتي وي".[1] نو چې اعلیٰ ته به څومره ميلاوېږي؟

**څلورم روايت**

رسول الله ﷺ فرمائي: «مَوْضِعُ سَوْطٍ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا»[2]

"په جنت کښې د يو چابک؛ هومره ځائے د دُنيا او څه چې په دې دُنيا کښې دي، د هغې نه بهتر دے"؛ ځکه دا ټوله دُنيا فاني ده، او جنت باقي دے، جنت د نعمتونو ځائے دے، خو د هغې دپاره تيارے پکار دے.

**پنځم روايت**

سيدنا انس ﷺ وائي: چې جنت ته جنتيان دننه شي، نو «إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَسُوقًا، يَأْتُونَهَا كُلَّ جُمُعَةٍ، فَتَهُبُّ رِيحُ الشَّمَالِ»[3]

"په جنت کښې به دننه يو بازار لګيدے وي، هره جمعه کښې به هغې ته به دا جنتيان ځي"، نو په جنت کښې ځو ورځ او شپه نشته، او جمعه خو هله راځي، چې ورځ او شپه وي. مفسرينو ذکر کوي، يعني دومره مقدار پس چې څومره مقدار دُنيا کښې ورځ او شپه تيرېږي، جنتيانِ به هغې بازار ته ځي. نو حديث کښې راځي "د شمال د طرف نه به يوه هَوا په دوي باندې را والوزي"، هغه هَوا به د دوي په مخونو باندې ولګي، د دوي

(1) [رواه البخاري، رقم: (6571)، ومسلم، رقم: (186)، وابن ماجه، رقم: (4339)].

(2) [رواه البخاري، رقم: (3250، و6415)، والترمذي، رقم: (1648، و3013، و3292)].

(3) [رواه مسلم، رقم: (2833)].

پهٔ کپړو به ولګي، دُنیا کښې خو چې هَوا والوزي، نو د انسان ټول بدن د ګرد وغبار نه ډک شي، کپړے هم د ګرد وغبار نه ډکې شي، هغه هَوا چې پدې جنتیانو باندې ولګي نو د دوي حُسن او جمال به نُور خائسته شي، لکه د دُنیا د حُسن پشان به نهٔ وي، چې سړے څومره بوډا کیږي، نو دومره ئې حُسن ختمیږي، د جنتیانو حُسن به ورځ په ورځ سیوا کیږي، نو د جُمعې په ورځ به د دوي حُسن نور هم سیوا شي، نو چې خپل مقام ته واپس راشي، نو کور کښې به د بیبیانو حُسن هم زیات شوے وي، نو دې بیبیانو ته به دا خاوندان وائي: مونږ خو چې د کور نه تلُو نو تاسو دومره خائسته نهٔ وئ، پهٔ خدائے قسم ستاسو دا حُسن خو سیوا شوے دے، بیبیانې به دې خپلو خاوندانو ته وائي: چې پهٔ خداے قسم چې تاسو سحر د کور نه تللئ، نو دومره خائسته نهٔ وئ، تاسو خو چې واپس راغلئ د هغې نه هم خائسته شوي يئ.[1]

دغه ځائے کښې الله رب العزت د انسان ارمان پورا کوي، د جنت دپاره تیارے پکار دے.

## شپږم روایت

يَو حدیث کښې راځي، د الله نه سوال کوئ د جنت، او چې د جنت سوال کوئ نو «فَإِذَا سَأَلْتُمُ اللهَ فَسَلُوهُ الفِرْدَوْسَ» "نو الله نه د جنت فردوس سوال کوئ، چې الله مونږ له جنت فردوس راکړي"، جنت فردوس هغه جنت دے په تمامو جنتونو کښې د اعلیٰ مقام والا جنت دے، د دغې جنت فردوس نه بیا د جنتونو نِهرونه روان شوي دي.[2]

## د جنت د حورو حُسن

يَو حدیث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: ددغې زنانو حُسن او خائست به

(1) [رواه مسلم، رقم: (2833)].

(2) [رواه البخاري، رقم: (7423)، والترمذي، رقم: (2530، و2531)].

دومره وي، چې د هغوي د پنډۍ هغه نلے به د بهر نه ښکارې، دا بدن به ئې دومره سپین وي، او که هغه حورې د جنت اوبۀ څکې، نو هغه اوبۀ چې مرئ ته ځي، نو هغه به د بهر نه ښکاري.[1]

## د جنت د حورو اشعار

د جنت حورې به اشعار وائي:

نَحْنُ الْخَالِدَاتُ فَلَا نَمُوتُ أَبَدًا ... وَنَحْنُ الرَّاضِيَاتُ فَلَا نَسْخَطُ أَبَدًا

وَنَحْنُ النَّاعِمَاتُ، فَلَا نَبْأَسُ أَبَدًا ... فَطُوبَى لِمَنْ كَانَ لَنَا، وكُنَّا لَهُ[2]

"مونږ هغه حورې یُو چې الله مونږ خپلو خاوندانو له پۀ نکاح باندې ورکړې یُو، مونږ باندې مرګ او فنا نۀ راځي. مونږ به همیشه دپاره د خپلو خاوندانو نه خوشحاله یُو، مونږ به چرې د خپلو خاوندانو نه نۀ خفه کیږو. مونږ به همیشه دپاره ترو تازه یُو، هیڅ کله به نۀ غمژن کیږو. خوشحالي ده د هغې انسان دپاره چې هغه مونږ لره دے، او مونږ د هغه دپاره یُو".

## قرآن کریم کښې د حُورو بیان

قرآن کریم کښې الله فرمائي: ﴿حُورٌ مَّقْصُورَاتٌ فِي الْخِيَامِ﴾.[3]

"حورې به وي چې بندې کړے شوې به وي پۀ خیمو کښې د بل چا نظر به پرې نۀ وي تیر شوے".

او بل ځائے کښې الله فرمائي: ﴿لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَانٌّ﴾.[4]

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (3245، و3246، و3254)، ومسلم، رقم: (2834، و2834)].

(2) [رواه أحمد في "مسنده"، رقم: (1342)].

(3) [سورة الرحمن: 72].

(4) [سورة الرحمن: 74].

"داسې حورې به وي، چې د دې انسانانو نه مخکښې به چرته د انسان لاس د هغې سره نۀ وي لګيدلے، چرته پيرې به د هغې سره لاس نۀ وي لګولے"، دا به صرف ددې خاوند دپاره وي.

بل ځائے کښې الله فرمائي: ﴿عُرُبًا أَتْرَابًا ★ لِأَصْحَابِ الْيَمِينِ﴾.[1]

يَو معنٰى دا ده: "چې د هغې حورو ژبه به عربې وي"

دويمه معنٰى دا ده: "مينه دارې به وي پخپلو خاوندانو باندې، خپلو خاوندانو سره به ئې مينه او محبت وي". ﴿أَتْرَابًا ★ لِأَصْحَابِ الْيَمِينِ﴾

"دا به همزولې وي د خپلو خاوندانو سره، دپاره د ښې لاس والو به وي".

همزولې به وي د خاوندانو سره، کله کله بې بې وي خو هغه د خاوند نه زيات عمر والا وي، نا د جنت به داسې بې بې وي، چې هغه به د خاوند سره همزولې وي.

د دُنيا د بې بې دپاره څومره محنت کوې، او د جنت حورې غوارې اويا (70) اويا (70) حورې به الله يَو يَو جنتي له ورکوې د هغې دپاره دې څومره تيارے اُوکړو؟

بل ځائے کښې الله قرآن کريم کښې فرمائي: ﴿وَحُورٌ عِينٌ ★ كَأَمْثَالِ اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُونِ﴾.[2]

الله وائي: "حورې به وي د غټو غټو سترګو والا به وي"، "هغه بيبيانې به وي چې د سترګو تُور به ئې ډير تُور وي، او د سترګو سپين به ئې ډير زيات سپين وي"، او دا حُسن دے، کله چې د انسان د سترګو دا سپين ځايونه سرۀ وي يا زيړۀ وي يا خړۀ وي، نو هغه خوند نۀ کوې، الله وائي: داسې حورې به وي، چې د هغوي سترګې به

(1) [سورة الواقعة: 37-38].

(2) [سورة الواقعة: 22-23].

ډېرې خائسته وي، او د غتو سترګو والا به وي. بهر حال په جنت کښې به الله د جنتيانو هر ارمان پورا کوي، جنت د الله د نعمت يو مقام دے.

## اُووم روايت

رسول الله ﷺ فرمائي: «يَأْكُلُ أَهْلُ الْجَنَّةِ فِيهَا وَيَشْرَبُونَ، وَلاَ يَمْتَخِطُونَ وَلاَ يَتَغَوَّطُونَ وَلاَ يَبُولُونَ».(1)

"جنت کښې به جنتيان خوراک کوي، څکاک به کوي، نۀ به د هغوي پوزې بهيږي، نۀ به لوې بول ورځي، نۀ به واړۀ بول ورځي"، هيڅ تکليف به ورته نۀ رسي؛ ځکه د انسان طبيعت ددې نه نفرت کوي. نو چې دا دومره خوراک څکاک کوي نو هغه به چرته ځي؟ نو حديث کښې راځي، چې خوراک اُوکړي، او ډرقے اُوکړي، هغه هر څۀ به ختم شي. دُنيا کښې خو چې انسان ډرقے اُوکړي، نو د هغۀ د خُلې نه بدبوئي راشي، جنت کښې چې انسان ډرقے اُوکړي، هغه به د مشکو او عنبرو غوندې خوشبوئي کوي، د هغوي د خوراک هغه اثرات به د خُوَلې په شکل د بدن نه بهر کيږي. مونږ باندې خو چې دُنيا کښې خُولۀ راشي، نو بل سړے راسره خو کښې نۀ شي اودريدے، دومره ګنده بوئي وي، هغه به داسې خُوَلۀ وي، چې د هغې بوئي به د مشکو او د عنبرو پشان وي. جنت د الله د نعمتونو يوځائے دے، د هغې دپاره تيارے پکار دے، کۀ زمونږ بدن لګي او کۀ زمونږ مال لګي، او کۀ زمونږ وخت لګي، چې دا ټول هر څۀ د الله د دين دپاره پيش کړو.

دا جنت الله د مؤمنانو او متقيانو دپاره تيار کړے دے، ﴿أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ﴾.(2)

"دا جنت د متقيانو دپاره تيار کړے شوے دے".

---

(1) [رواه أحمد في "مسنده"، رقم: (14769)].

(2) [سورة آل عمران: 133].

او جنت زمونږ د نیکهٔ میراث دے، آدم ﷺ پهٔ جنت کښې پیدا شوے دے، هغهٔ کښې روح پهٔ جنت کښې اچولے شوے دے، پهٔ جنت کښې اُوسیدلے دے، د عمر دپاره چې اولاد پهٔ جنت کښې نهٔ پیدا کیدو، نو الله را بهر کړو، چې دُنیا کښې به ستا اولاد پیدا کیږي، د ګناه د وجې نه نهٔ دے بهر شوے هغه غیرتي انسان وي، چې هغه د خپل پلار نیکهٔ میراث واخلي.جنت زمونږ او ستاسو د ټولو میراث دے هغه انسان غیرتي نهٔ وي، چې د هغهٔ نه د پلار نیکهٔ میراث لاړ شي، جنت زمونږ میراث دے، دُنیا کښې کهٔ ستا د نیکهٔ میراث دے، او ستا پکښې برخه ده نو پهٔ هغې باندې جګړې کوې، چې دا ماله میلاؤ شي، دښمنې پرې کوو، قتلونه پرې کوو، او د جنت هغه میراث چې ستا د نیکهٔ میراث دے، د هغې دپاره دې څومره تیارے کړے دے؟ او میراث ورته څکه وائي؛ چې تا ترې څوک ایستے نشي، پهٔ تا څوک دعوٰی نشے کولے؛ څکه تا خو اغستے نه دے، دا خو ستا میراث دے، پهٔ میراث باندې هیڅ قسم مقدمه نشي کیدلے. الله رب العزت دې مونږ ټولو ته جنت نصیب کړي.

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



بسم الله الرحمن الرحيم

وَقَضَىٰ رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا إِمَّا يَبْلُغَنَّ عِندَكَ الْكِبَرَ أَحَدُهُمَا أَوْ كِلَاهُمَا فَلَا تَقُل لَّهُمَا أُفٍّ وَلَا تَنْهَرْهُمَا ...الخ

(سورة بني إسرائيل: 23)

# موضوع

# حقوق الوالدين

بتاريخ: 2006-02-03

بمقام: جلسي

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله

# حقوق الوالدين

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ به وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْه وَنَعُوْذُ بالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالنَا، وَنَعُوْذُ بالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالنَا، وَنَعُوْذُ بالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالنَا، مَنْ يَهْده اللهُ فَلاَ مُضلَّ لَهُ وَمَنْ يُضْللْهُ فَلاَ هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لاَّ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيْكَ لَهُ، أَبَديٌّ سَرْمَديٌّ لاَ أَوَّلَ لَهُ وَلاَ آخرَ لَهُ لاَ ضدَّ لَهُ وَلاَ ندَّ لَهُ وَلاَ مُمدَّ لَهُ وَلاَ بَشِيْرَ لَهُ وَلاَ نَذيْرَ لَهُ وَلاَ وَزِيْرَ لَهُ وَلاَ مُشِيْرَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلاَنَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آله وَأَصْحَابه وَسَلَّمَ عَبْدَهُ وَرَسُوْلَهُ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْم، بِسْم الله الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْم، ﴿وَقَضَىٰ رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوٓا۟ إِلَّآ إِيَّاهُ وَبِٱلْوَٰلِدَيْنِ إِحْسَٰنًا ۚ إِمَّا يَبْلُغَنَّ عِندَكَ ٱلْكِبَرَ أَحَدُهُمَآ أَوْ كِلَاهُمَا فَلَا تَقُل لَّهُمَآ أُفٍّ وَلَا تَنْهَرْهُمَا وَقُل لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيمًا ★ وَٱخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ ٱلذُّلِّ مِنَ ٱلرَّحْمَةِ وَقُل رَّبِّ ٱرْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيَانِى صَغِيرًا﴾.[1]

وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «رِضَى الرَّبِّ فِي رِضَى الْوَالِدِ، وَسَخَطُ الرَّبِّ فِي سَخَطِ الْوَالِدِ».[2] (أو كما قال رسول الله ﷺ).

عزت مندو مسلمانانو رونړو! ما د قرآن كريم نه د سورت بني اسرائيل يو دوه آياتونه اولوستل، په هغې كښې اول الله خپل حكم او خپل حق ذكر كوي، چې د الله نه ما سيوا به د هيڅ چا عبادت نۀ كوئ، ما ته به ژړا او فرياد كوئ، زما عبادت به كوئ. او دويم دخپل حق پسې الله د هغه چا حق ذكر كوې چې هغه د انسان مور پلار دي، اولنے حق زما دے، او دويم ﴿وَبِٱلْوَٰلِدَيْنِ إِحْسَٰنًا﴾ "د خپل مور پلار سره احسان

(1) [سورة بني إسرائيل: 23-24].

(2) [رواه الترمذي، رقم: (1899)].

کوئ"، د هغوي سره به ښهٔ سلوک کوئ. الله وائي: چې زما حق منې نو زهٔ به درنه خپل حق هله قبلوم چې ورپسې حق د مور پلار هم اُومنې. د الله حق د هر څهٔ نه مخکښې دے، خو کهٔ مور پلار دي د الله د حکمونو نه منع کوي، کهٔ مور پلار درته پدې باندې غُصه دې، چې تهٔ ولې مسلمان ئې؟ شرک اُوکړه د الله سره او کفر اُوکړه د الله سره، نو بیا به د مور پلار نهٔ منې، د دُنیا پهٔ کارونو کښې به د مور پلار تابعداري کوې، پدې آیاتونو کښې الله فرمائي: ﴿وَقَضَىٰ رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ﴾ "ستا رب فیصله کړې ده، ستا رب حکم کړے دے چې عبادت به نهٔ کوئ مګر صرف د یَو الله به کوئ" چې د الله حکم دي اُومنلو، ﴿وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا﴾ د خپل مور پلار سره د احسان حکم الله کړے دے، "چې تهٔ به د خپل مور پلار سره احسان کوې"، او څنګه احسان به کوې؟ الله فرمائي: ﴿إِمَّا يَبْلُغَنَّ عِندَكَ الْكِبَرَ أَحَدُهُمَا أَوْ كِلَاهُمَا فَلَا تَقُل لَّهُمَا أُفٍّ﴾ "کهٔ چرته اُورسیدل دا مور پلار تا سره بوډا والي ته" یعنې تهٔ ژوندے ئې، او ستا مور پلار باندې بوډا والے راغلے، او بوډاګان شول، "نو خبردار! مور او پلار ته به اُف هم نهٔ وائي، او مور پلار مهٔ رټه"، مور ته به غُصه هم نهٔ کوې، "وایه مور او پلار ته وینا عزتمنده" د عزت خبرې ورسره کوه، نرمې نرمې خبرې ورسره کوه.

﴿فَلَا تَقُل لَّهُمَا أُفٍّ﴾ ... "اُف" څهٔ ته وائي؟ مفسرین رحمهم الله ذکر کوي، ﴿فَلَا تَقُل لَّهُمَا أُفٍّ﴾ چې کله د مور او پلار خدمت کوې، نو د هغوي پهٔ خدمت باندې خپله ناراضتیا مهٔ ښکاره کوه، د مور پلار خدمت چې کوې د هغوي پهٔ خدمت به خپل ځان نهٔ خفه کوې، د هغوي پهٔ خدمت به "اُف" هم نهٔ وائي، دومره ورته هم نهٔ شې وئیلے.

یا ﴿فَلَا تَقُل لَّهُمَا أُفٍّ﴾ ... مور او پلار ته به "اُف" هم نهٔ وائي، یعنې کهٔ مور او پلار ته غصه راځي، نو د هغوي پهٔ باره کښې "اُف" هم نشے وئیلے، دومره غصه هم نشي کولے.

یا ﴿فَلَا تَقُل لَّهُمَا أُفٍّ﴾ ... مور پلار دي موجود دي، نو تهٔ خپل ستړے والے مهٔ

ښکاره کوه د مور پلار په مخکښې "اُف" هم مه وايه.ولې چې ته سترے شې، نو مور پلار به دې خبر شې چې نن زمونږ بچے سترے شوے دے، نو به په تا باندې خفه کيږي، نو هغوي ته ستا په ستړې کيدو باندې تکليف رسي. نو د مور پلار مخکښې خپل سترے والے مه ښکاره کوه.

﴿وَلَا تَنْهَرْهُمَا﴾ "مور او پلار مه رټه"، مور او پلار ته به غُصه کيږي نه، اُوس دُور کښې خو خلق مور پلار وهي، وهل خو لويه ګناه ده، مور او پلار ته غُصه کيدے هم نشي. ډير خلق کنځلې کوي مور او پلار ته. "اُف" نه شي وئيلے د مور او پلار په مخکښې. دومره حق ئې دے.

**د نبي ﷺ فرمان مبارکه**

زما په خلقو کښې به داسې خلق راشي، چې هغوي به خپل پلار ته کنځلې کوي، صحابه کرامو ﷺ ورته اوفرمائيل: داسې به څوک وي چې خپل مور او پلار ته به کنځلې کوي، نبي ﷺ ورته اوفرمائيل: که دے خپل مور او پلار ته کنځلې نه کوي، دے به د بل چا مور او پلار ته کنځلې کوي، نو هغه به ددهٔ مور او پلار ته کنځلې اُوکړي. نو ددې داسې مثال دے، چې دهٔ خپله مور پلار ته کنځلې اُوکړې.[1]

د پښتو متل دے، وائي: ته زما سپک مور او پلار مه کنځه، نو زهٔ به ستا عزتمند مور او پلار نه کنځم.

﴿وَقُلْ لَهُمَا قَوْلًا كَرِيمًا﴾ "وايه مور او پلار ته وينا د عزت نرمې او خوږې خوږې خبرې د مور او پلار سره کوه". دا نه چې مور او پلار دې بوډاګان دې، او هغوي درسره خبرې کوي، او ته ورته غُصه کيږې، نو داسې مه کوه، د هغوي د طبعيت او د

(1) [رواه البخاري، رقم: (5973)، ومسلم، رقم: (90)].

هغوي د مزاج مطابق خبرې کوه، لکه سړے بوډا شي، خبرې بيا زياتې کوي، بے مطلبه خبرې کوي، بے مطلبه تپوس کوي، نو ته به په هغې باندې نۀ غُصه کيږې، ته به په ښې نرمې طريقې سره د هغې جواب ورکوې.

واقعه

يو عالم وو، کتاب ئې ليکلو، زوې ورسره خوا کښې ناست وو، مرغۍ راغله، مرغۍ وُنه کښې ناسته وه، هغه زوې د عالم نه تپوس کوي چې دا څۀ شے دے؟ نو هغه پلار ورته وائي: مرغۍ ده، بيا ورته وائي: چې څۀ دې؟ وائي: مرغۍ ده، لَس کرته ئې ماشوم تپوس اُوکړو، او لَس کرته ورته هغه پلار جواب ورکړو، چې دا مرغۍ ده. يعنې د دې خپل ماشوم بچي په خبرو هغه تنگ نۀ شو. دې عالم دا خبره ځان سره ليکلې وه، بيا دا عالم بوډا شوے وو، وائي: لَس کرتې دې بچې زمانه تپوس کړے وو، دۀ به وئيل: څۀ دې، ما به ورته وئيل: چې مرغۍ ده، اُوس زۀ په دۀ امتحان کوم، مرغۍ راغله، او وُنه کښې مرغۍ کيناسته، وائي: بچيه! دا څۀ ناست دې؟ وائي: بابا مرغۍ ناسته ده، وائي: څۀ ناست دې؟ بيا ورته وائي: مرغۍ ناسته ده، وائي: څۀ دې؟ وائي: مرغۍ ده، بيا ورته وائي: څۀ دې؟ وائي: ړوند خو نۀ ئې، خو مرغۍ ناسته ده کنه، وائي: څۀ ناست دې؟ نو هغه ورته نور هم غُصه شو، وائي: زۀ درته وايم چې مرغۍ ده، او ته بيا بيا تپوس کوې، هغه عالم ورته اووئيل: بچيه! دومره به دې کړے وے چې لَس کرته خو به دې ما له جواب راکړے وے، نو کۀ بيا مې درنه تپوس کولو نو بيا به غُصه شوے وے، لَس کرته تا زما نه تپوس کړے وو، ما به درته وئيل: چې دا مرغۍ ناسته ده، او نن تۀ ما له دوه کرته د هغې جواب نۀ شې راکولے.

هغه خپل ماشوم والے ځان ته رایاد کړه، چې تا سره ستا مور او پلار تکليف تېر کړے دے، داسې وخت وو چې تۀ ماشوم وې، مور نهه (9) مياشتې تۀ په کېده

کرځولے وي، او تهٔ اُوس مور پلار ډاکټر له نهٔ شې بوتللے، څومره پهٔ تکلیف تهٔ پیدا شوے ئې، بیا د هغې نه بعد مور دوه کاله یا دوه نیم کاله تا له پئې درکول، دغه مور وه چې کله به تهٔ بیمار شوې، نو مور به درسره توله شپه په تکلیف وه، تکلیف به پهٔ تا وو، او ژړل به درسره مور، هغې به درسره تکلیف برداشت کولو، دغه مور دي وه، چې هغې به ستا وارهٔ بول او لوې بول ګچپلو لاسونو باندې صفا کول، بد ئې نهٔ ګڼړل، دغه مور او پلار وو چې ستا د ژوند دپاره هغوي پهٔ خپل ځان باندي څومره سختې تیرې کړې دې، او تهٔ ئې ډیر په تکلیفونو باندې لوې کړے ئې، او نن چې تهٔ لوې شوې، او مور پلار دي کمزورې شول، تهٔ د هغوي سره ظلمونه او زیاتې کوې، تهٔ د هغوي هغه حق به کله اداء کوې؟ قیامت کښې خو نه اداء کیږي، نو دغه مور او پلار چې تهٔ ئې پاللے ئې، نو تهٔ به د مور پلار د حقونو خیال ساتې، تهٔ به د هغوي احسانات نهٔ هیروې. الله رب العزت فرمائي: ﴿وَاخۡفِضۡ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحۡمَةِ﴾.[1]

"ښکته کړه مور پلار دواړو ته وزرې د مهربانۍ نه"، یعنې د مور پلار سره ښهٔ سلوک کوه، هغوي باندې خپله بد معاشې مهٔ کوه، دا نه چې بَهر چا ته څهٔ نهٔ شې وئیلے، او مور پلار سره هر وخت جنګ کوې ﴿وَقُل رَّبِّ ارۡحَمۡهُمَا كَمَا رَبَّيَانِي صَغِيرٗا﴾.[2]

دعا ورله غواړه "چې اے زما ربه! زما مور پلار باندې رحم اُوکړه، لکه څنګه چې دوي وړوکوالي کښې زما تربیت کړے وو"، دومره خدمت خو تهٔ د هغوي نهٔ شې کولے، چې د هغوي نه خپله بدله کوزه کړې، نو د هغوي دپاره د الله نه د مغفرت سوال کوه، د مور پلار پهٔ بچې دومره حق دے.

---

(1) [سورة بني إسرائيل: 24].

(2) [سورة بني إسرائيل: 24].

**د سيدنا عبد الله بن مسعود ﷺ روايت**

حديث كښې راځي، سيدنا عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي: زۀ راغلم، او نبي عليه السلام ته مې اووئيل: چې اے د الله پيغمبره ﷺ! «أيُّ الْعَمَلِ أَحَبُّ إِلَى اللهِ؟» "په تمامو عملونو كښې الله ته بهترين عمل كوم يَو دے"، وائي: ما ته نبي عليه السلام اوفرمائيل: «الصَّلَاةُ لِوَقْتِهَا» "په خپل وخت باندې مونځ كول"، دا بهترين عمل دے، چې په كوم وخت كښې الله مونځ فرض كړے دے، په هغه وخت كښې مونځ اُوكړې، دا نه چې مونځونه قضا كوې، الله رب العزت فرمائي: ﴿إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَوْقُوتًا﴾.[1]

"يقينًا مونځ په مؤمنانو باندې فرض دے، په خپل وخت باندې"، مسلمان چې مونځ كوې نو په خپل وخت به كوې، كوم سړے چې دوه مونځونه په يَو وخت باندې كوې. نبي عليه السلام فرمائي: «فَقَدْ أَتَى بَابًا مِنْ أَبْوَابِ الكَبَائِرِ» "دې سړي لويه ګناه اُوكړه چې مونځ ئې د خپل وخت نه ورستو كړو". نو مونځ په تمامو عملونو كښې الله ته خوښ عمل دے، بيا ورته صحابي وائي: ددې پسې بيا كوم عمل بهتر دے، نبي عليه السلام ورته فرمائي: «بِرُّ الْوَالِدَيْنِ» "د مور پلار سره احسان كول دا بهترين عمل دے"، د الله حق دې اداء كړو، نو بيا د مور پلار سره احسان كوه، هغوي مۀ رټه، هغوي سره ظلم او زياتے مۀ كوه، بلكه د هغوي سره ښۀ سلوك كوه، بيا ورته صحابي فرمائي: «ثُمَّ أَيٌّ» "بيا كوم عمل الله ته خوښ دے"، نبي عليه السلام ورته وائي: چې «الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللهِ» "د الله په لار كښې جهاد كول الله ته ډير خوښ دې" چې خپل مال هم د الله په دين قربان كړې، او خپل نفس هم د الله په دين قربان كړې.[2]

---

(1) [سورة النساء: 103].

(2) [رواه البخاري، رقم: (527، و5970)].

## د يو صحابي جهاد له تلل

يو صحابي راغلو، او نبي ﷺ ته وائي: ما ته اجازت راکړه زه جهاد له ځم، نبي ﷺ ورته فرمائي: ستا مور پلار ژوندي دي؟ هغه ورته وائي: آؤ، د الله پيغمبره ﷺ مور مې ژوندۍ ده، يا دواړه ژوندي دي، نبي ﷺ ورته فرمائي: «فَفِيهِمَا فَجَاهِدْ» "پس ستا دپاره جهاد دا دے چې د مور پلار سره احسان اُوکړه"، د مور پلار خدمت اُوکړه، دا ستا دپاره جهاد دے.[1]

## د امام ذهبي رحمه الله قول

هغه وائي: واه هغه انسانه!!! چې ته جنت کورې په نورو نورو څيزونو کښې، خپل کور ته راشه، ستا د مور پلار د خپو د لاندې جنت دے. جنت د مور پلار د خپو د لاندې دے، يعنې د مور پلار خدمت باندې الله جنت ورکوي، د مور پلار خدمت اُوکړه تا ته به جنت ميلاؤ شي.[2]

## د مور پلار باره کښې د نبي ﷺ فرمان

«رِضَى الرَّبِّ فِي رِضَى الْوَالِدِ، وَسَخَطُ الرَّبِّ فِي سَخَطِ الْوَالِدِ».[3]

"د الله خوشحالي د مور پلار په خوشحالۍ کښې ده، او د الله خفګان د مور پلار په خفګان کښې دے"، که مور پلار درنه خوشحاله دي نو الله درنه هم خوشحاله دے، او که مور پلار درنه خفه دي، نو الله درنه هم خفه دے، نو که څوک الله خوشحالول غواړي نو پکار دي چې خپل مور پلار خوشحاله کړي.

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (3004) ومسلم، رقم: (2549)، والنسائي، رقم: (3103)].

(2) [كتاب الكبائر للذهبي ا: 46].

(3) [رواه الترمذي، رقم: (1899)].

## نبي ﷺ ته د يَو د صحابي راتلل

نبي ﷺ ته يَو صحابي راغے، او نبي ﷺ ته وائي: «مَا حَقُّ الْوَالِدَيْنِ عَلَى وَلَدِهِمَا؟» "اے د الله پيغمبره ﷺ! د مور او پلار په بچو څومره حق دے؟"، نبي ﷺ ورته فرمائي: «هُمَا جَنَّتُكَ وَنَارُكَ».[1]

"مور او پلار ستا جنت هم دے، او ستا جهنم هم دے"، که د مور پلار خدمت دي اُوکړو، د هغې خدمت په وجه به جنت ته لاړ شې، او که د مور پلار مخالفت دي اُوکړو، نو د هغې په وجه به جهنم ته لاړ شې.

## رشته دارۍ کټ کول

رسول الله ﷺ فرمائي: «لاَ يَدْخُلُ الجَنَّةَ قَاطِعٌ».[2]

"هغه سړے جنت ته نۀ شي تللے چې هغه د خپلو خپلوانو سره رشته دارۍ کټ کړې ده".نو هغه سړے جنت ته نۀ شي تللے چې چا د خپل مور پلار سره غم ښادي پريښودې ده.

## پۀ عمر کښې برکت

نبي ﷺ فرمائي: کوم سړے چې د هغۀ دا ارزو ده، او دا ئې تمنا ده چې د هغۀ عمر الله زيات کړي، او عمر کښې ورله الله خير او برکت واچوي، رزق ئې سيوا شي، نو هغه دې د خپل مور پلار سره دې ښۀ سلوک کوي.

يَو سړے وائي: الله دې زما رزق کښې خير او برکت واچوي نو هغۀ دې د خپل مور پلار سره ښۀ سلوک کوي، او د خپل خپلوانو سره دې رشته دارۍ نۀ کټ کوي، هغوي سره دې رشته دارۍ پالي، نو ددې سړي پۀ رزق کښې او پۀ عمر کښې به

(1) [رواه ابن ماجة، رقم: (3662)].

(2) [[رواه البخاري، رقم: (5984)، ومسلم، رقم: (2556)، والترمذي، رقم: (1909)، وأبو داود، رقم: (1696)]].

برکت وي، او چې کوم سړی د مور پلار سره ښه سلوک نه کوي، الله به ورله دُنیا کښې د هغې سزا ورکوي.

**د مور پلار د نافرمانۍ دُنیاوي سزا**

نبي ﷺ فرمائي: چې کومه ګناه انسان په دُنیا کښې اُوکړي، نو د هغې سزا الله آخرت کښې ورکوي، ډیر کم ګناهونه دي چې د هغې سزا دُنیا کښې ورکوي، لیکن چې کوم سړی د مور پلار نافرمانه دی، مور پلار ترې خفه دي، د مور پلار تابعداري نه کوي، د هغې سزا به ورته دُنیا کښې ورکوي، دهٔ ته به خپله پته اولګي، چې دا زما د مور پلار د نافرمانۍ هغه سزا ده.[1]

اُوس هم خلق وائي: دا فلانکے چې په بد حال دے، یره ددهٔ نه مور پلار د دُنیا نه تلي دي؛ ځکه دومره په بد حال دے. او حدیث کښې هم دا خبره تیره شوه.

**پردو زنانو ته کتل**

رسول الله ﷺ فرمائي: تاسو د نورو خلقو زنانو ته په بد نظر مهٔ ګورئ، نو ستاسو زنانه به بچ پاتې شي، ستاسو زنانو ته به نور څوک په بد نظر نه ګوري، د بل چا د عزت خیال وُساته، نو خلق به ستا د عزت خیال وُساتي.

رسول الله ﷺ فرمائي: تاسو د خپلو پلارانو سره احسان اُوکړئ، نو صبا چې ستا نه کوم اولاد پیدا کیږي، نو هغه به ستا عزت کوي، تهٔ د خپل مور پلار عزت اُوکړه، نو چې صبا ستا نه کوم اولاد پیدا کیږي، نو هغوي به ستا عزت کوي، او کهٔ چرې تا په خپل ژوند کښې د مور پلار سره ښهٔ سلوک نهٔ وي کړے نو سزا ئې دا ده چې ستا نه کوم اولاد پیدا کیږي نو هغه به صبا ستا عزت نهٔ کوي. ددې سزا الله دُنیا کښې ورکوي.

نو د مور پلار ډیر زیات حق دے، په خپلو بچو باندې، ستا د وجود دپاره ستا مور

(1) [کتاب الکبائر للذهبي 1: 42].

پلار سبب جوړ شوې دې، ته په څه نه پوهیدې، ته مور پلار لوئې کړے ئې، تا حلال او حرام نه پیژندل تا باندې مور پلار پیژندلې دې. او نن مونږ مور پلار شاته غورځولې دې، نن مونږ د مور پلار مخالفت کوو، هغه مور او پلار چې هغوي مونږ واړه بچې لوې کړي يو، نن مونږ د هغوي مقابله کوو، دا د مسلمان شان نه دے، د مسلمان شان دا دے چې هغه به د خپل مور پلار سره ښه سلوک کوې، د مور پلار سره به احسان کوې، د مور او پلار به عزت کوې.

**په قرآن کريم کښې درې خبرې يَوځائے**

سيدنا عبد الله بن عباس ﷺ ذکر کوې، په قرآن کريم کښې درې آياتونه داسې دي چې هغه الله يَو حکم د بل حکم سره تړلے دے، نو کوم سړے چې يَو حکم اداء کوې او بل حکم نه اداء کوې، الله ترې هغه يَو هم نه قبلوې.

(1) يَو قرآن کريم کښې الله فرمائي: ﴿أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ﴾.[1]

"د الله تابعدارې اُوکړئ او د الله د پيغمبر تابعدارې اُوکړئ". دا دواړه حکمونه يَو دي، او هر ځائے کښې الله دا حکم يَوځائے ذکر کوې، سورة نور، سورة محمد، سورة تغابن کښې الله ذکر کوې، اُوس کوم سړے چې د الله تابعدارې کوې او د نبي ﷺ تابعدارې نه کوې، نو د الله تابعدارې ترې هم نه قبليږي، کوم يَو سړے چې د نبي ﷺ تابعدارې کوې، خو د الله حکمونه ماتوې د الله تابعدارې نه کوې، نو الله ترې د نبي ﷺ تابعدارې نه قبلوې. د الله او د الله د پيغمبر تابعدارې چې کوې نو هله به ستا نه قبليږي، پدې کښې به ته جُدا والے نه راولې.

مثال په طور يَو سائيکل کښې دوه تيرونه دې، او يَو ترې لرې کړې، نو هغه سائيکل نه ځې، بيا به ئې ځان پسې راکاږې، دين به دې هله کامل وي چې ته د الله

---

(1) [سورة النساء: 59].

هم مني او د الله د پیغمبر ﷺ هم منې، او کهٔ چرې يدې دوارو کښې دي تفرقه راوسته، نو بيا يَو هم نهٔ قبليږي.

(2) دويم قرآن كريم كښې الله فرمائي: ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ﴾.[1]

"مونځ کوئ او زکوٰة ورکوئ". اُوس کوم سړے چې مونځ کوې خو زکوٰة نهٔ ورکوې، نو دا مونځ ترې الله نهٔ قبلوې، ولې چې الله دواړه يَوځائے ذکر کوې؟ او تهٔ يَو منې او بل نهٔ منې، مونځ منې خو زکوٰة نهٔ منې؛ ځکه زکوة کښې تاوان دے، يا بعضې خلق داسې دي چې پهٔ پيسو ئې پرواه نهٔ وي، نو زکوٰة خو ورکوي، خو مونځ نهٔ کوې، نو دا زکوٰة ئې هم د الله دربار کښې قبول نهٔ دے؛ ځکه الله دواړه يَوځائے ذکر کړې دې، چې مونځ کوه او زکوٰة ورکوه، يدې کښې به جُدا والے نهٔ راولې.

(3) دريم عبد الله بن عباس رضي الله عنهما فرمائي: چې دريم څيز چهٔ قرآن کښې الله فرمائي: ﴿أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ﴾.[2]

"زما شکريه اداء کړه، او د خپل مور پلار شکريه اداء کړه". زما احسان اُومنه، او د خپل مور پلار احسان اُومنه.

اُوس کوم سړے چې د الله شکريه اداء کوې، خو د مور پلار سره احسانات نهٔ کوې، مور پلار سره ښهٔ سلوک نهٔ کوې، نو د الله احسان او شکريه ترې هم قبوله نهٔ ده، د الله عبادت ترې هم نهٔ قبليږي، يا يَو سړے د مور پلار سره ښهٔ سلوک کوې، مور پلار سره ئې ډيره زياته مينه ده، خو د الله احسانات نهٔ منې د الله عبادت نهٔ کوې، نو د مور پلار پهٔ د غه احساناتو نهٔ خلاصيږي، هله به دې غاړه خلاصيږي، چې د الله حق هم منې او د مور پلار حق هم منې.

(1) [سورة البقرة: 43].

(2) [سورة لقمان: 14].

دا ياد ساتئ!!! کۀ چرې زمونږ نه مور او پلار ناراضه وي، او زمونږ نه مور پلار خفه وي، مونږ ته مور پلار خيرې کوې، او مونږ مونځ کوو، مونږ روژې نيسو، خو دا زمونږ نه د الله پۀ دربار کښې نۀ قبليږي؛ ځکه چې الله فرمائي: ﴿أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ﴾.[1]

الله وائي: "اول زما شکر اداء کړه، وروستو د خپل مور پلار شکر اداء کړه". نو چې د الله شکر اداء کوې نو ورسره ورسره به د خپل مور پلار شکر به هم اداء کوې، چې د الله احسانات منې نو ورسره ورسره به د مور پلار احسانات هم منې، او کۀ يَو منې او بل نۀ منې نو، يَو هم درنه نۀ قبليږي، د مور پلار ډير زيات حق دے. پۀ قرآن کريم کښې چې الله خپل حق ذکر کوې ورسره د مور پلار حق هم ذکر کوې، پۀ احاديثو کښې هم نبي ﷺ نهايت زور ورکوې، دې خبرې لره چې د مور پلار حق اداء کړئ.

**د جبريل امين عليه السلام درې قسمه خلقو ته خيرې**

يَو حديث کښې راځي، نبي ﷺ پۀ منبر تشريف فرما وو، چې پۀ رومبۍ پوړۍ د منبر ته اُوختو، وائي: آمين، پۀ دويمه پوړۍ چې اُوختو بيا وائي: آمين، پۀ دريمه پوړۍ چې اُوختو بيا وائي: آمين، صحابه کرام تپوس کوې، اے د الله پيغمبره! دا څۀ وجه ده چې تاسو نن درې کرتې پۀ زوره باندې آمين اووئيلو؟ پيغمبر ﷺ ورته فرمائي: چې ما ته جبريل امين عليه السلام راغے، او هغۀ ماته دا خبره اُوکړه، درې خيرې هغۀ اُوکړې، او ما ته ئې اووئيل: چې تۀ پۀ هغې باندې آمين وايه. هغه درې خيرې څۀ وي؟ نبي ﷺ وائي: جبريل امين عليه السلام ماته راغے، او هغۀ ما ته دا خبره اُوکړه، چې هلاک دې شي هغه څوک چې چا باندې د رمضان المبارک مياشت راغله، او ددۀ ګناهونه معاف نۀ

[1] [سورة لقمان: 14].

شول، نو دا سړے دې تباه او برباد شي، وائي: ما اووئيل: چې آمين، چې دويمې پوړۍ ته اُوختم نو جبريل امين عليه السلام اووئيل: چې د کوم سړي مخکښې ستا ذکر مبارک اُوشي، او هغه په تا درود شريف ونۀ وائي: "صلى الله عليه وسلم" نو دا سړے دې تباه او برباد شي، وائي: ما اووئيل: چې امين، بخيل څوک دے؟ نبي ﷺ فرمائي: تاسو بخيل پيژنئ؟ وائي: بخيل هغۀ څوک دے چې زما نوم ياد شي، او هغه ما باندې درود شريف ونۀ وائي، کله چې پۀ دريمه پوړۍ اُوختم نو هغۀ اووئيل: چې کوم سړے چې د هغه مور پلار ژوندي دي، او دۀ د هغوي دومره خدمت اُونۀ کړو، چې د هغې پۀ وجه دے جنت ته لاړ شي، دا انسان دې تباه او برباد شي، وائي: ما ورته اووئيل: چې آمين.[1]

**د سيدنا ابو هريره رضي الله عنه روايت**

سيدنا ابو هريره رضي الله عنه فرمائي: چې نبي ﷺ فرمائي: «رَغِمَ أَنْفُهُ، ثُمَّ رَغِمَ أَنْفُهُ، ثُمَّ رَغِمَ أَنْفُهُ» قِيلَ: مَنْ؟ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ: «مَنْ أَدْرَكَ وَالِدَيْهِ عِنْدَ الْكِبَرِ، أَحَدَهُمَا أَوْ كِلَيْهِمَا، ثُمَّ لَمْ يَدْخُلِ الْجَنَّةَ».[2]

"پوزه دې ککړه شي، پوزه دې ککړه شي، پوزه دې ککړه شي" يعنې پوزه دې خاورو کښې رانښکلے شي، ذليل او رسوا دې شي، تباه او برباد دې شي، درې کرتې نبي ﷺ دا خبرې کوې، "صحابه کرام رضي الله عنهم ترې تپوس کوې، اے د الله پيغمبره ﷺ! څوک يادوې؟ نبي ﷺ ورته فرمائي: هغه سړے چې د هغۀ مور پلار بوډاکان دي، يو ژوندے دے، او بُوډا دے، يا دواړه بوډاکان دي، او دے د هغوي دومره خدمت ونۀ کړي، چې د هغوي د خدمت په وجه دے جنت ته لاړ شي" نو دا انسان دې تباه او برباد شي. يعنې د مور او پلار دومره خدمت اُوکړه، چې د هغوي د خدمت پۀ وجه

(1) [رواه الحاكم في "المستدرك"، رقم: (7256)، والمنذري في "الترغيب والترهيب"، رقم: (1479، و2591)].

(2) [رواه مسلم، رقم: (2551)].

جنت ته لاړ شي. د مور پلار دومره حق دے.

پدې کښې مقصد تيزې ورکول دي چې پاسه او د مور پلار خدمت اُوکړه چې جنت ته لاړ شي، د مور پلار خبره نۀ منل لويه ګناه ده.

**لوې ګناهونه**

صحابي راغے، نبي ﷺ نه تپوس کوي، اے د الله پيغمبره ﷺ! پۀ تمامو ګناهونو کښې لويه ګناه کومه يَوه ده؟ نبي ﷺ ورته فرمائي: (1) «الكَبَائِرُ: الإِشْرَاكُ بِاللهِ» "چې د الله سره شريک وکرځے" حالانکه تۀ الله پيدا کړے ئې، رزق ئې درکړے دے، او بيا هم د هغۀ سره شريک وکرځے، (2) دويم نبي ﷺ فرمائي: «وَعُقُوقُ الوَالِدَيْنِ» "د خپل مور پلار نافرماني کول" دا پۀ تمامو ګناهونو کښې لويه ګناه ده، (3) دريم نبي ﷺ فرمائي: « وَقَتْلُ النَّفْسِ» "او يَو نفس بے جرمه وژل"، (4) «وَاليَمِينُ الغَمُوسُ» "پۀ دروغه باندې قسم خوړل" دا لويه ګناه ده. او يمين الغموس ورته ځکه وائي: چې کوم سړے پۀ دروغه قسم وُخوري، هغۀ له به الله د جهنم پۀ اُور کښې غوپه ورکوي؛ ځکه دُنيا کښې د هغې څۀ کفار نشته، يَو کس ته دې پۀ دروغۀ قسم وُخورو، چې زما دې د الله پۀ ذات قسم وي، چې دا زمکه زما ده، او دا زما حق دے، او تا ته پته وه چې دا زما حق نۀ دے، پۀ دروغه دې قسم وُخورو. نبي ﷺ فرمائي: د دې کفاره دُنيا کښې نشته، ددې کفاره دا ده چې دې انسان له به الله د جهنم پۀ اُور کښې غوپې ورکوي، الله به ورته وائي: چې تا ولې پۀ دُنيا کښې زما پۀ نوم پۀ دروغه قسم خوړے وو.[1]

پۀ حقه باندې قسم جائز دے، خو پۀ دروغه باندې قسم خوړل ګناه کبيره ده، سزا ئې دا ده، چې الله به د جهنم پۀ اُور کښې غوپې ورکوي.

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (6675، و6870، و6871، و6919)، والترمذي، رقم: (3021)، والنسائي، رقم: (4011، و4868)].

نو دا هم لويه ګناه ده، چې سړے د خپل مور پلار نافرمانۍ کوي، او د مور پلار خبره نۀ مني.

**د سيدنا ابن عباس ﷺ روايت**

سيدنا ابن عباس ﷺ فرمائي: چې نبي ﷺ فرمائي: «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مُدْمِنُ خَمْرٍ، وَلَا عَاقٌّ، وَلَا مَنَّانٌ».(1)

درې قسمه خلق به جنت ته نۀ ځي:

(1) يَو «مُدْمِنُ خَمْرٍ» هغه سړے جنت ته نۀ شے تللے حې "هغه هميشه شراب څکي"، هميشه دپاره نشه کوي.

(2) دويم «وَلَا عَاقٌّ» کوم سړے چې "دمور پلار نافرمان دے"، د مور پلار خبره نۀ مني، دا سړے هم جنت ته نۀ شے تللے.

(3) دريم «وَلَا مَنَّانٌ» "کوم سړے چې خلقو باندې خپل احسانات زبادوي" دا سړے به هم جنت ته نۀ ځي، چا سره ئې لږ احسان کړے دے، او بيا ورته هغه احسان يادوي، چې ياد دې نۀ شي چې د لوږې مړ کيدې، او ما درله غنم او جوار درکړي وو. ددې وجې قرآن کريم کښې الله فرمائي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُبْطِلُوا صَدَقَاتِكُم بِالْمَنِّ وَالْأَذَىٰ﴾.(2)

"اے مؤمنانو! خپل خيراتونه او خپلې صدقې مۀ بربادوئ پۀ زبادولو سره او پۀ ردو بدو سره"، خيرات دي کړے، نو هغه زباده مۀ، خيرات دي کړے دے نو هغې سړي ته ردې بدې مۀ وايه، ګني ټول اعمال به دي برباد شي. نو دا سړے هم جنت ته نۀ شي دننه کيدے. ددې دا مطلب نۀ دے چې بالکل جنت ته به نۀ ځي، جنت ته به

(1) [رواه الطبراني في "المعجم الكبير"، رقم: (11168، و11170)].

(2) [سورة البقرة: 264].

څې خو ددې سزا به ورته په جهنم کښې ورکوې، د هغې نه پس به جنت ته څي.

يو حديث کښې راځي، رسول الله ﷺ فرمائي: «لَوْ عَلِمَ اللّٰهُ شَيْئًا أَدْنٰى مِنَ الْأُفِّ لَنَهٰى عَنْهُ».(1)

"که الله ته د اُف نه معمولې بله خبره معلومه وے نو د هغې نه به ئې هم منع کړے وے".

الله خو وائي: اُف ورته هم مه وايه، دا اُف هغه کمه خبره ده، که د دې نه کمه خبره الله ته معلومه وے نو د هغې نه به ئې هم منع کړے وے، خو د دې نه لاندې خبره نشته، او بيا وائي: کوم بچے چې د مور پلار تابعدار دے، اګر که نور ګناهګار دے، خو ددې په وجه به ئې الله جنت ته دننه کوې، چې د مور پلار خدمت کوې، او کوم بچے چې د مور پلار نافرمان دے، نو که ظاهرًا نيک سړے دے، خو د مور پلار خلاف کوې، تر هغې وخته پورې دے جنت ته نۀ شي تللے، چې ترڅو پورې چې دے مور پلار نۀ دے معاف کړے دے، چې ترڅو پورې ورته مور پلار بخښنه نۀ ده کړې نو دا سړے جنت ته نۀ شي تللے، نو د مور پلار ډير زيات حق دے، او ياد ساتئ! چې کله بچے مور پلار ونۀ بخښې نو الله ئې هم نۀ بخښې.

**واقعه جريج ﷺ**

ابوهريره ﷺ فرمائي: نقل کوي د نبي ﷺ نه «لَمْ يَتَكَلَّمْ فِي الْمَهْدِ إِلاَّ ثَلاثَةٌ: عِيسٰى وَكَانَ فِي بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ جُرَيْجٌ» يعنې خبرې ندې کړې په ماشومالي کښې مګر دريو (3) کسانو: (1) سيدنا عيسى ﷺ، (2) بني اسرائيلو کښې يو سړے وو

(1) [كتاب الكبائر للإمام الذهبي 1: 45].

هغه ته جريج وئيلے شي، (3) او دريم ذکر راځي، جريج ﷺ مونځ کوو، په مانځهٔ باندې ولاړ وو، مور ئې راغله، هغې ته پته نهٔ وه، آواز ئې ورته ورکړو، "يا جريج" جريج په مانځهٔ باندې ولاړ وو، نو هغهٔ سوچ اوکړو، چې مونځ اُوکړم، بيا به جواب ورکړم، نو فوراً ئې جواب ورنهٔ کړه، بعض رواياتو کښې راځي، چې مور ئې درې (3) کرته راغله آواز به ئې اُکړو، خو جريج په مانځهٔ باندې ولاړ وو، نو جواب به ئې نهٔ ورکولو، نو مور ئې خيرې اُوکړې، وېوئيل: "اَللّٰهُمَّ لَا تُمِتْهُ حَتّٰى تُرِيَهُ وُجُوْهَ الْمُوْمِسَاتِ" يا الله تر هغه وخته پورې جريج مهٔ مړ کوه تر څو پورې چې ئې زناکارو ښځو مخونه نهٔ وي ليدلې، بد نامه وربانديې نهٔ وي لګيدلې، نو دهٔ مور هغه خيرې قبولې شوې، او جريج يو عابد انسان وو، په خپله عبادت خانه کښې به ئې عبادت کولو، نو يَوه زنانه ورته راغله، د زنا دعوت ئې ورته ورکوو، جُريج ترينه انکار اُوکړو، نو هغې زنانه د شپونکې سره زنا اُوکړه، او هغهٔ نه ئې حمل جوړ شو، نو کله چې بچے پيدا شو نو هغې نه خلقو تپوس اُوکړو، چې تا خو وادهٔ نهٔ دے کړے، ستا دا بچے د کوم ځائے نه؟ يعنې خنګه پيدا شو، هغې ورته ووئيل: ما سره جُريج زنا کړې ده، دا د جُريج نه پيدا شوے دے، خلق خبر شو، آخر دا چې بادشاه خبر شو، جُريج پسے ئې لښکر اُوليږو، او هغه ئې لاس ترلے راوسته، او د بادشاه مخې ته ئې اُودرولو، او جونګړه ئې ورته خرابه کړې، بادشاه ته هغه اُووئيل: دا ولې؟ هغه ورته اووئيل: تا زنا کړې ده، هغهٔ ورته اووئيل: ما پرېږدئ، زهٔ اَودس کوم، او دوه رکعته مونځ کوم، دوي ورته اِجازت اُوکړو، مونځ ئې اُوکړو راغے، هغه ماشوم ته وائي: "مَنْ أَبُوْكَ يَا غُلَامُ؟ فَقَالَ: الرَّاعِيْ" ستا پلار څوک دے اے هلکه؟ هغهٔ ورته اووئيل: فلانے شپونکے، يعنې هغه ماشوم الله ګويا کړه، خو دهٔ باندې خو بدنامه اُولګيده، بيا ورته خلقو اووئيل: مونږ ستا ګرجه او جونګړه د سُرو زرو جوړوو؟ هغهٔ ورته اووئيل: نا، صرف د خاورو نه ئې جوړه کړئ.

نو اوکورئ! د مور خیرې وربانديې اُولګیدې، نو هغه مونځ کوو، او هغه باندې بیا هم خیرې اُولګیدې، نو د نور خلقو به څهٔ حال وي، چه مور او پلار خفه کوې، او هغوي ورتهٔ خیرې کوي.

دریم کس، چې یوه زنانه وه، هغې خپل بچې ته سینه ورکوله، یو سړے پهٔ سُورلئ باندې سُور تیر شو، چې ډیر خائسته شان شوکت والا وو، نو ددې بچې مور سوال اُوکړو "أَللّٰهُمَّ اجْعَلْ اِبْنِيْ مِثْلَ هٰذَا" نو ماشوم سینه پرېخوده، او ګویا شو، "فَقَالَ: لَاتَجْعَلْنِيْ مِثْلَهٗ" بیا ئې سینه شروع کړه، لګ وخت بعد یَوه ښځه راروانه ده، ډیره عاجز وه، او خلق ورته ردې بدې وائي، د ددې ماشوم مور وائي: "أَللّٰهُمَّ لَاتَجْعَلْ اِبْنِيْ مِثْلَ هٰذَا" هغه ماشوم سینه پرېخوده، او وائي: "أَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِثْلَهَا، فَقَالَتْ: لِمَ ذَالِكَ؟ فَقَالَ: الرَّاكِبُ جَبَّارٌ مِّنَ الْجَبَابِرَةِ، وَهٰذِهِ الْأَمَةُ يَقُوْلُوْنَ: سَرَقْتْ وَزَنَيْتْ وَلَمْ تَفْعَلْ".[1]

نبي ﷺ فرمائي: زهٔ چې د معراج پهٔ شپه لاړم نو ما څهٔ خلق اولیدل چې هغوي د اور تنو پسې داسې تني وي لکه د کجورې تني، هغې پورې ترلې شوې دې، وائي: ما تپوس اُوکړو چې دا کوم خلق دے؟ وائي: ما ته جبرائیل علیه السلام اوفرمائیل: چې دا هغه خلق دے چې دُنیا کښې مور پلار ته کنځلې کړې وي، مور پلار ته ئې ردې بدې وئیلې وي، دا هغه خلق دې، نن جهنم کښې هغوي له سزا ورکولے شي.

**د یَو صحابي د نبي ﷺ نه تپوس**

یَو صحابي راغے، نبي ﷺ نه ئې تپوس اُوکړو، چې اے د الله پیغمبره! ما له خیر ددې خبرې راکړه، کچرې زهٔ پنځهٔ وخته پابندئ باندې مونځ کوم، او زهٔ د رمضان روژې نیسم، او زکوٰة هم اداء کوم، او د بیت الله حج هم کوم، نو ما له به الله څهٔ

(1) [رواه البخاري، رقم: (3436)].

راکوي؟ چې دا تول حکمونه د الله اومنم، نو ماله به الله څهٔ راکوي، نبي ﷺ اوفرمائیل: «مَنْ فَعَلَ ذَالِكَ» چا چې دا کارونه اوکړل نو د قیامت پهٔ ورځ به دغه سړے د انبیاء علیهم السلام شهداء او نیکانو خلقو پهٔ صف کښې ولاړ وي.

خو نبي ﷺ اوفرمائیل: چې کوم سړے د مور پلار نافرمان وي، نو د هغهٔ دپاره هیڅ نشته، اګر کهٔ روژې هم ډیرې نیولې وي، اګر که صدقې هم ډیرې ورکړې وي، اګر که مونځونه ئې هم ډیر کړې وي، خو چې کله د مور پلار نافرمان دے، نو بیا ورله هیڅ نشته، د الله رضا د مور پلار پهٔ رضا کښې ده، او د الله خفګان د مور پلار پهٔ خفګان کښې دے.[1] کهٔ جنت غواړې نو د مور پلار خدمت اُوکړه، الله به درته جنت درکړي.

## د چا نه چې مور پلار خفه تلې دې

د چا نه چې مور پلار خفه تلې دې، هغوي به څهٔ کوي؟ صحابه کرام وائي: مونږ د نبي ﷺ سره ناست وو، یَو سړے راغے، د نبي ﷺ نه ئې تپوس اوکړو، چې د الله پیغمبره زما مور پلار وفات شوې دې، نو کهٔ زهٔ د هغوي سره نیکې کوم نو څنګه به کوم؟ هغوي خو وفات شوې دې، د مرګ نه بعد د هغوي سره زهٔ څهٔ نیکې اُوکړم، نبي ﷺ ورته اوفرمائیل: چې مور پلار دې وفات شول، اول نیکې دا ده چې جنازه پرې اوکړه بیا د جنازې نه بعد د مور پلار دپاره بخښنه اُوغواړه، کهٔ هغوي ستا نه خفه تلې دې، خو ستا دعا الله د هغوي متعلق قبلوي، نو چې تهٔ کله هغوي ته دعا کوې، نو ستا د دعا پهٔ برکت به الله د هغوي مهربانه کړي او تا به معاف کړي، بیا وائي: مور پلار سره دې چې کوم لوظ کړے وو، چې هغوي وفات شول، نو هغه وعده به نهٔ ماتوې، هغه وعده به پوره کوې، دا رنګه مور او پلار چې د چا سره خپلولي ساتله، نو هغه به هغه

---

(1) [کتاب الکبائر للذهبي 1: 45].

شان ساتي، د مور پلار خپلوان به نهٔ پریدي، چې ستا د مور او پلار د وجې نه کومه رشته جوړه شوې ده، هغه به نهٔ ختموې، د هغوي د مرګ نه ورستو دا د مور پلار سره احسان دے، او بل دا چې د مور پلار د دوستانو به خيال ساتي، ستا د پلار دوستان دي، نو هسې نه چې پلار دې وفات شو، نو د پلار هغه دوستان به نهٔ پریدې، د مور هغه دوستان به نهٔ پریدې، دا د مور پلار سره احسان دے.[1]

**د عبد الله بن عمر ﷺ واقعه**

عبد الله بن عمر ﷺ يَو صحابي سره میلاؤ شو، چې د هغهٔ سره کیناستو، هغه ورته اووئیل: څنګه راغلې؟ هغهٔ ورته اووئیل: څکه راغلم، چې ستا د پلار او زما د پلار خپل مینځ کښې ډیر تعلق وو، نو ما دا نهٔ خوښول چې زما او ستا د پلار هغه تعلق د مرګ نه بعد ختم شي، نو څکه ستا خوا ته راغلم.

بهترین بچے هغه دے چې د هغهٔ نه د پلار دوستان پرَدي نهٔ شي، دا نه چې ژوندي دي نو احسان ورسره کوه، او چې مړهٔ شي، نو بیا ورسره احسان مهٔ کوه، نه بیا به هم ورسره احسان کوې، مور پلار چې وفات شي، چې بچے د هغوي دپاره دعا غواړي، د هغوي دپاره خیر خیرات کوي، نو مور پلار ته ئې ثواب رسي، نفلونه کوي مور پلار ته ثواب رسي. نبي ﷺ فرمائي: چې یَو کرتې یَو سړے مور پلار ته د رحمت پهٔ نظر اوکوري، د یَو قبول شوې حج هومره ثواب ئې دے، یَو صحابي پاسیدو، وائي: د الله پیغمبره چې یَو سړے پهٔ ورځ کښې مور پلار ته سَل (100) کرته کوري مو هم به ورته الله د قبول شوې حج هومره ثواب ورکوي؟ نبي ﷺ ورته فرمائي: آؤ، چې یَو

---

(1) [رواه أبو داود، رقم: (5142)، وابن ماجة، رقم: (3664)].

سړے د ورځې سَل (100) کرته ګورې الله به ورله د سَل (100) قبول شوې حجونو هومره ثواب ورکوي.

څومره لوی اجر او ثواب دے، زمونږ خلق د بیت الله حج له ځي، او دا حج ترې هیر دے. پکار دا دي چې مونږ د مور پلار بنهٔ خدمت اُوکړو، چې د دُنیا نه هغوي زمونږ نه خوشحاله لاړ شي. الله رب العزت دې زمونږ او ستاسو نه د مور او پلار خدمت واخلي. آمین.

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِیْنَ)



بسم الله الرحمن الرحيم

وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذَٰلِكَ ذِكْرَىٰ لِلذَّاكِرِينَ

(سورة هود: 114)

# موضوع

# دَ مونځ فوائد

بتاريخ: 03-11-2006

بمقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله

# د مونځ فوائد

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ الله الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذَٰلِكَ ذِكْرَىٰ لِلذَّاكِرِينَ﴾[1].

وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَرَأَيْتُمْ لَوْ أَنَّ نَهْرًا بِبَابِ أَحَدِكُمْ يَغْتَسِلُ مِنْهُ كُلَّ يَوْمٍ خَمْسَ مَرَّاتٍ، هَلْ يَبْقَى مِنْ دَرَنِهٖ شَيْءٌ؟» قَالُوا: لَا يَبْقَى مِنْ دَرَنِهٖ شَيْءٌ، قَالَ: «فَذَلِكَ مَثَلُ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ، يَمْحُو اللهُ بِهِنَّ الْخَطَايَا».[2] (أو كما قال رسول الله ﷺ).

عزتمندو حاضرينو مسلمانانو رونړو! دا خبره ذکر کوو، چې دا مونځ صرف د الله حکم دے، او کهٔ څهٔ ثواب پرې هم ميلاويږي؟ د الله حکم هم دے، او نور پکښې هم ډير فوائد دي، چې د هغې پهٔ وجه الله د انسان ګناهونه معاف کوي، الله رب العزت فرمائي: ﴿وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذَٰلِكَ ذِكْرَىٰ لِلذَّاكِرِينَ﴾[3]

---

(1) [سورة هود: 114].

(2) [رواه مسلم، رقم: (667)، والترمذي، رقم: (2868)، والنسائي، رقم: (462)].

(3) [سورة هود: 114].

"پابندي کوه د مونځونو په دواړو طرفونو د ورځو کښې او په اولنو ساعتونو او وختونو د شپه کښې". علماء کرام ذکر کوي، مراد ترې صلوٰة خمسه دي، پنځه واړو مونځونه ترې مراد دي.

﴿طَرَفَيِ النَّهَارِ﴾ د ورځې دواړه سرونه نو د سحر، ماسپخين او مازيګر مونځونه پکښې راغلل؛ ځکه يَو طرف نصف ته وائي، او بل هم نصف ته وائي، نو د سحر، ماسپخين او مازيګر مونځونه پکښې راغلل.

﴿وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ﴾ کښې د ماښام او ماسخوتن مونځونه راغلل، "زُلف" نزديکت ته وائي، يعنې د شپې هغه حصه کښې چې هغه ورځې ته نزدې ده، چې ماښام او ماسخوتن دے، په هغې کښې مونځونه کوه، نو ددې نه مراد پنځهٔ واړه مونځونه دي.

**د مونځ حکمت او فائده**

د مونځ حکمت او فائده دا ده، چې الله رب العزت فرمائي: ﴿إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذَٰلِكَ ذِكْرَىٰ لِلذَّاكِرِينَ﴾

"يقينًا نيکې ختموي بدئ لره" کهٔ ستا نه څهٔ نقصان شوے دے، څهٔ جرم درنه شوے دے نو تهٔ مونځ کوه، نو هغه جرم به درته الله د مونځ په وجه معاف کړي، دا نصيحت دے دپاره د نصيحت اغستونکو خلقو مطلب دا دے، چې مونځ باندې الله د انسان ګناهونه معاف کوي، په مونځ باندې الله د انسان درجات بلند کوي، پدې باندې ډير زيات احاديث راغلي دي.

**د سيدنا ابي عثمان ﷺ روايت**

سيدنا ابي عثمان ﷺ فرمائي: چې زهٔ سيدنا سلمان ﷺ سره د يَو اُونې لاندې ناست ووم، هغهٔ د اُونې يَو څانګه را اُونيوله، اُوچه څانګه وه، داسې موسم وو، چې د

اُونو نه پانړې غورزېدلې، او وېسندله، چې په دې سره د هغې پانړې اُوغورزېدلې، بيا ئې ما ته اوفرمائيل: چې ابو عثمانه! تا ما نه دا تپوس اُونۀ کړو، چې ما دا ولې اُوکړل؟ ما ورته اووئيل: چې ولې دې اوکړل؟ هغوي اوفرمائيل: چې زۀ يَو ځل د نبي ﷺ سره د يَو اُونې لاندې ووم، نو نبي ﷺ هم د هغې اُونې اُوچه څانګه اُونيوله، او دغسې ئې اُوکړل، چې پۀ هغې سره د هغې څانګې پانړې اُوغورزېدلې، بيا نبي ﷺ ارشاد اوفرمائيل: چې سلمانه! تپوس نۀ کوې چې ما داسې ولې اُوکړل؟ ما عرض اُوکړو چې اُوښايۀ ولې مو اُوکړل؟ نبي ﷺ اوفرمائيل: چې کله مسلمان پۀ ښۀ شان اودس اُوکړې بيا پنځۀ مونځونه اُوکړې، نو د هغۀ نه ګناهونه داسې دُوړېږي لکه څنګه چې ددې اُونې نه دا پانړې دُوړېږي.

يَو مسلمان بنده پنځۀ وخته پابندۍ باندې مونځ کوې، ګناهونه ترې داسې دُوړېږي، لکه څنګه چې د اُونو نه پانړې دُوړېږي.

اوس هغه خلق پدې خپله خبره کښې دروغژن دې، چې د خپلې خبرې پۀ مقصد نۀ پوهيږي، چې وائي: صرف زړۀ صفا ساته دا نيکي ده، زړۀ صفا کيږي، په نيک عمل سره، او ګناهونه لرې کيږي، پۀ مونځ سره، کۀ مونځ نۀ کوې نو ستا نه ګناهونه نۀ لرې کيږي، او ستا زړۀ نۀ صفا کيږي.

علماء کرام ذکر کوې، ددې نه مراد هغه ګناهونه نۀ دې، چې يَو سړے دې ګناه کبيره کوې، او بيا راشي او مونځ کوې چې ګناه به مې معاف شي، ګناه کبيره پۀ مونځ باندې نۀ معاف کيږي، ګناه کبيره چې ده، د هغې نه به توبه اُوباسې، د الله نه به معافي غواړې، واړۀ ګناهونه به درته الله پۀ مونځ باندې معاف کړي.

خو چې کله سړے مونځ ګزار شي، نو الله ورته د توبې توفيق نصيب کړي، او چې مونځ نۀ کوې نو الله ورله د توبې توفيق نۀ ورکوي؛ ځکه توبه خو سړے هله

اُوباسې چې د سړي زړهٔ نرم شي، نو چې دے فرض مونځ پرېږدي، لویه ګناه کوي، نو د بلې ګناه نه به څهٔ توبه اُوباسي.

## د سیدنا ابو هریره ﷺ روایت

سیدنا ابو هریره ﷺ فرمائي: «أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: أَرَأَيْتُمْ لَوْ أَنَّ نَهَرًا بِبَابِ أَحَدِكُمْ يَغْتَسِلُ فِيهِ كُلَّ يَوْمٍ خَمْسَ مَرَّاتٍ، هَلْ بَقِيَ مِنْ دَرَنِهِ شَيْءٌ؟ قَالُوا: لَا يَبْقَى مِنْ دَرَنِهِ شَيْءٌ، قَالَ: فَذَلِكَ مِثْلُ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ، يَمْحُو اللهُ بِهِنَّ الْخَطَايَا».[1]

"سیدنا ابو هریره ﷺ نه روایت دے، چې هغهٔ د نبي ﷺ نه اَوریدلې دي، چې فرمائیل ئې: چې ما له خبر راکړئ! کچرته د یَو سړي د کور او د دروازې مخې ته یَو نِهر بهیږي، او دا انسان پنځهٔ وخته پهٔ هغه نِهر کښې غسل کوي، اے زما صحابه کرامو! آیا ددې انسان پهٔ بدن به څهٔ خِرے او ګندګې پاتې شي؟ صحابه کرامو ورته اوفرمائیل: اے د الله پیغمبره! چې کوم سړے پهٔ ورځ کښې پنځهٔ وخته غسل کوي، د هغهٔ پهٔ بدن به ذرا خِرے پاتې نهٔ شي، نبي ﷺ فرمائي: اے صحابه کرامو! دغسې د هغه انسان مثال دے چې هغه پنځهٔ وخته پابندئ سره مونځ کوي، د هغهٔ نه ګناهونه لرې کیږي".

رسول الله ﷺ فرمائي: اے زما صحابو! ما ته خبر راکړئ، کهٔ یَو سړے دے، او هغه یَوځائے کښې کار کوي، سحر پټې ته لاړو، او ددهٔ او د هغه پټې مینځ کښې پنځهٔ نهرونه دي، دے هغې پټې ته لاړو، کار ئې پکښې اُوکړو، نو بدن ئې خِرَن شو، نو هغه نهر کښې ئې غسل اُوکړو، بیا ئې کار اُوکړو، بیا ئې غسل اُوکړو، تر دې پورې چې کله ئې مازیګر کار بس کړو، بیا ئې غسل اُوکړو، اے زما صحابو! ددې انسان پهٔ بدن به څهٔ خِرے پاتې شي، صحابه کرام ورته وائي: نه د هغهٔ پهٔ بدن به بالکل خِرے

(1) [رواه مسلم، رقم: (667)، والترمذي، رقم: (2868)، والنسائي، رقم: (462)].

نه پاتې کيږي، نبي ﷺ فرمائي: دغسې مثال د پنځو مونځونو دے، چې مسلمان بنده مونځ اُوکړي، د هغې نه بعد ترې وړه ګناه اوشوه، نو هغه ګناه د مونځ په وجه ختمه شوه؛ څکه واړه ګناهونه الله په مونځ باندې معاف کوي، نو دا لويه د سعادت خبره ده، چې مونځ اُوکړه، نو الله به ستا ګناهونه معاف کړي.[1]

### د سيدنا ابو هريره ﷺ دويم روايت

سيدنا ابو هريره ﷺ فرمائي: چې رسول الله ﷺ فرمائي: «الصَّلَوَاتُ الْخَمْسُ وَالْجُمُعَةُ إِلَى الْجُمُعَةِ وَرَمَضَانُ إِلَى رَمَضَانَ مُكَفِّرَاتٌ لِمَا بَيْنَهُنَّ إِذَا اجْتُنِبَتِ الْكَبَائِرُ».[2]

"رسول الله ﷺ فرمائي: پنځه وخته پابندئ سره مونځ کول، د يَوې جمعې مونځ کول د بلې جُمعې پورې، او د يَو رمضان روژې نيول بل رمضان پورې، دا کفاره ده د هغې ګناهونو نه چې ددې په مينځ کښې د انسان نه اُوشي، کله چې انسان ورسره لوې ګناهونه نۀ وي کړې". او لوې ګناهونه ډير دي، د دروغو نه ځان ساتي، چغلئ نه ځان ساتي، د زِنا نه ځان ساتي، شرابو څکلو نه ځان ساتي، د سود نه ځان ساتي، د غلا نه ځان ساتي، غيبت نه ځان ساتي، دا لوې لوې ګناهونه دي، چې ددې نه ځان بچ کوي، واړۀ ګناهونه به ورته الله د مونځ په وجه معاف کوي.

### د نن دَور د خلقو حالت

نن دَور کښې خلقو ته لوې ګناهونه واړۀ ښکاري، او واړۀ ګناهونه خلقو جائز ګنړلي دي، هغې ته هډو ګناه نۀ وائي، غيبت کوي، غيبت ته ګناه نۀ وائي، غيبت به کوي، وائي: الله دې راته معافي اُوکړي، او بيا غيبت شروع کړي، مُحرمات څيزونه خوري، د هغې څۀ پروا نۀ کوي، سود کوي، د هغې پروا نۀ کوي، دا ورته ګناه نۀ

---

(1) [رواه الطبراني فی "المعجم الأوسط"، رقم: (198)].

(2) [رواه مسلم، رقم: (233)].

ښکارې، کیره خرَول ورته ګناه نهٔ ښکارې، دا ګناهونه پهٔ دې مُلک کښې عام شوې دې، مسلمان سره دهوکه کول ورته ګناه نهٔ ښکارې، دروغ وئیل ورته ګناه نهٔ ښکارې، او کهٔ ورته دې اووئیل: چې دروغ مهٔ وایه وائي: ما کپ لګولو، مسلمان سره ظلم او زیاتے کول ورته ګناه نهٔ ښکارې، دا ورته وارهٔ ګناهونه ښکارې، حالانکه دا غټ غټ ګناهونه دې. الله رب العزت فرمائي: ﴿وَأَقِمِ الصَّلَاةَ إِنَّ الصَّلَاةَ تَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ﴾.[1]

"مونځ کوه، پابندئ سره مونځ سړے د بے حیایئ نه او د ناروا کارونو نه منع کوي" هغه ګناهونه چې عقل ئې بد ګڼړي، د هغې نه هم سړے منع کوي، چې عقل ئې بد نهٔ ګڼړي خو شریعت ورته ناروا وائي.

**د سیدنا عمر ﷛ دَور کښې د یَو کس واقعه**

علماء کرام ذکر کوي، د سیدنا عمر ﷛ پهٔ دَور کښې یَو سړے پهٔ یَو زنانه باندې عاشق وو، د هغې زنانه سره ئې ډیر زیات تعلقات وو، هر کار ئې د هغې دپاره پرېخودے وو، هغه زنانه ورته وائي: زما یَو شرط دے، کهٔ هغه دې پورا کړو، بیا چې ته څهٔ وائې هغه به کوو، او هغه شرط دا دے چې ته به څلویښت ورځې، د سیدنا عمر فاروق ﷛ پسې د امامتئ مونځ کوې، څلویښت ورځې به زما خو ته نهٔ راځې، هغه ورته اووئیل: دا خو آسانه خبره ده، جومات ته راغلو، او څلویښت ورځې د سیدنا عمر فاروق ﷛ پسې مونځ اُوکړو، چې کله څلویښت ورځې تیرې شوې، نو هغې زنانه خوا ته لا ړو، ډیر وخت بعد د هغې زنانه سره میلاؤ شو، هغه ورته وائي: څهٔ وجه ده، اوس خو نهٔ راځې؟ هغه ورته وائي: اُوس ستا د مینې نه ماته داسې مینه میلاؤ شوه، چې ستا مینه هغې پسې نهٔ رسي، مخکښې خو زما تا سره محبت وو، اُوس زما د الله سره محبت پیدا شو.

---

[1] [سورة العنكوت: 45].

نو چې کله یَو سړے صحیح طریقې سره مونځ کوي، نو دا سړے خپله د ګناهونو نه منع کوي، چې کله دي مونځ اُوکړو، او د هغې نه پس ګناه کوې، نو دا خپل ضمیر به تا ملامته کوي، ځکه مونځ کښې نهایت عاجزي ده، چې اُوس دي دومره عاجزي اُوکړه، چې دا خپل تندے دي په زمکه باندې د الله د رضا دپاره کیخودو، تا مونځ کښې اووئیل: چې یا الله! ستا د حکم خلاف به نهٔ کوم، تا په سجده کښې اووئیل: چې "سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلٰى"، تا په قیام کښې اووئیل: ﴿إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ ★ اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ ★ صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ﴾ ددې وعدو نه بعد ځکه د الله مخالفت کوې؟ مونځ کښې خو دې غټې غټې وعدې اُوکړې، او اُوس د هغې خلاف کوې، چې کله سړے د مونځ په مطلب پوهیږي، نو دا مونځ سړے بالکل د ګناه نه منع کوي.

او دا خبره یاد اُوساتئ! چې غلا کر سړے مونځ نهٔ کوي، سود خور سړے مونځ نهٔ کوي، خو افسوس دا دے چې زمونږ مونځونه صحیح نهٔ دي!!!

**د منافق مونځ**

حدیث کښې راځي، دا د منافق مونځ دے چې کله نمر په زیړې شي، نو جومات ته زر رامنډه کړي، او زر زر اَودس اُوکړي، څهٔ اندامونه اُوچ، او څهٔ لواندهٔ، «فَنَقَرَ أَرْبَعًا لَا يَذْكُرُ اللهَ فِيهَا إِلَّا قَلِيلًا».(1)

"نو د چرګانو پشان ځلور ټونګې اووهې" او جومات نه ځې.

مونځ خو دا نهٔ وو، مونځ خو د الله سره یَو مناجات وو، مونځ خو ډیر قیمتي شے وو، په تمامو اعمالو کښې بهترین عمل هغه مونځ وو، د هغې نه تا ځان خلاص کړو، نو کهٔ زمونږ مونځونه صحیح شول، نو هر څه به صحیح شي، کهٔ مونږ د مونځ په مطلب ځان

(1) [رواه الترمذي، رقم: (160)، وأبو داود، رقم: (413)].

پوهه کړو، نو زمونږه هر کار به برابر شي، خو مونږ د خپل مونځ د مطلب نه ناخبره يو.

الله رب العزت فرمائي: ﴿فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّينَ ★ الَّذِينَ هُمْ عَن صَلَاتِهِمْ سَاهُونَ ★ الَّذِينَ هُمْ يُرَاءُونَ ★ وَيَمْنَعُونَ الْمَاعُونَ﴾.[1]

"داسې مونځ کونکو دپاره دي هلاکت وي، چې هغوي د خپل مونځ د مطلب نه نا خبره دي، او منع کوي معمولي شے".

ډير خلق داسې دي، چې شپيتهٔ (60)، اَويا (70) کاله ئې عبادت اُوکړو، او کهٔ مونځ ترې واورې نو مونځ ئې غلط دے، کهٔ تپوس ترې اُوکړې چې معنٰی ئې څهٔ ده؟ نو معنٰی خو يَو کس له نهٔ ورځي، نو دا مونځ به مونږ څهٔ د بدئ نه منع کړي!!! خشوع خضوع نشته، رکوع او سجده پهٔ صحيح طريقه باندې نهٔ ده، ولاړ پهٔ مونځ باندې وي، او سوچ ئې بل خوا تلے وي، دا مونځ د بدئ نه منع کول نهٔ کوي، صحيح طريقې سره مونځ اُوکړه. ﴿إِنَّ الصَّلَاةَ تَنْهَىٰ عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنكَرِ﴾.[2]

صحيح طريقې سره مونځ اُوکړه، الله به درته د مونځ پهٔ وجه ټول گناهونه معاف کړي.

**واقعه**

يَو امام پسې خلقو د مازيگر مونځ کولو، هغې کښې غلط شو، د مازيگر څلور رکعته ئې کول، نو يَو مقتدي ورته آواز ورکړو، چې اُستاذ جي! درې رکعته دي اُوکړل، وائي: تا ته څنگه پته اُولگيده، چې ما درې رکعته اُوکړل؟ هغهٔ ورته اووئيل: زما څلور دوکانونه دي، نو د يَو يَو دوکان حساب کتاب زهٔ پهٔ يَو يَو رکعت کښې کوم، نو ما د درېُو دوکانونو حساب کړے دے، او د يَو پاتې دے. مونږ چې مونځ له راشو، نو زمونږ سوچ بل طرف ته لاړ شي.

(1) [سورة الماعون: 4-7].

(2) [سورة العنكبوت: 45].

يَو حديث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: يَوه ډله د شيطانانو داسې ده، چې د هغوي دا ډيوټې ده، چې کله آذان اُوشي، نو هغه به اول.تا په پټې يا دوکان کښې مشغول کړي، چې له وختې دے لاړ به شې، شيطان ورته وائي: لږ صبر اُوکړه، وخت له شته، پدې طريقه ئې د جمعې د مونځ نه پاتې کړي، نو چې جمعې نه ئې پاتې کړي، نو ورته وائي: جمع خو درنه هسې هم اُوشوه، لاړ به شې، نو چرته ئې حصار کړي، نو چې نمر په زيړې شي نو بل کار کښې مبتلا کړي، نو مونځ ترې قضا شي. دا يَو قسم شيطانان دي، چې هغوي دا کار کوي.

الله وائي: شيطان ستاسو دښمن دے، نو دښمنې ورسره اُوکړئ. نو چې کله انسان د شيطان ددې وسوسې نه بچ شي، او جومات ته روان شي، لاره کښې ورته څۀ شے مخې ته کړي، کله به درته انسې شيطان راشي؛ ځکه شيطانان دوه قسمه دي: يَو اِنسې شيطان دے، يَو جنې شيطان دے.

انسې شيطان به درته مخې ته راشي، چې هغه مونځ نۀ کوي، نو تاته به وائي: راځه چې کپ اُولکوو، نو تا به څۀ طريقې باندې د مونځ نه حصاروَي، نو چې کله جومات ته را دننه شي، نو شيطان وائي: سړے خو راغے خو چې اُوس ورسره څۀ چل اُوکړم؟ نو دا شيطان وريسې جومات ته راشي، نو په اَودس کښې ورته شک پيدا کړي، کله ورته وائي: يَو اندام درنه اُوچ پاتې شو، کله ورته وائي: بل اندام درنه پاتې شو، نو اَودس کښې ورته شک پيدا کړي، خو چې اَودس هم په صحيح طريقې سره اُوکړي، نو شيطان وائي: په دۀ خو زۀ هډو غالب نۀ شوم، خو چې کله په مونځ باندې اُودريږي، نو شيطان وائي: راشه اُوس ئې پدې مونځ کښې غلط کړه، نو دے ولاړ په مونځ باندې وي، او کله ئې يَو خوا سوچ ځي، او کله ئې بل خوا سوچ ځي، نو مونځ اُوکړي، خو پدې پوهه نۀ شي، چې ما څو رکعته اُوکړل، نو شيطان پرې ټول مونځ ګډوډ کړي.

### د سیدنا ابن مسعود ﷺ روایت

سیدنا ابن مسعود ﷺ فرمائي: چې نبي ﷺ فرمائي: چې کله د مونځ وخت شي، نو یَوه فرشته اعلان کوي، اے د آدم ﷺ اولاده! پاسئ او د جهنم هغه اُور چې تاسو د خپلو ګناهونو په وجه په خپلو ځانونو بل کړے دے، هغه اُور مړۀ کړئ، مونځ اُوکړئ، چې هغه اُور مړۀ شي، ستا دپاره اُور بل شوے دے، مونځ اُوکړه چې هغه اُور مړۀ شي.[1]

بل حدیث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: د هر مونځ وخت کښې فرشته آواز کوي، اے د آدم ﷺ اولاده! پاسئ او هغه اُور چې تاسو خپل ځان دپاره بل کړے دے، هغه اُور مړۀ کړئ؛ ځکه الله په چا ظلم نۀ کوي (﴿وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيدِ﴾.[2]

"ستا رب بني آدم باندې د ذرې برابر ظلم نۀ کوي". بل ځائے کښې الله فرمائي: ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ﴾.[3]

"یقینًا الله چا باندې د ذرې برابر ظلم نۀ کوي". کۀ الله مونږ له سزا راکوي، نو دا زمونږ خپله ګناه ده، دا زمونږ د عمل سزا ده)، نو اے انسانانو! هغه اُور چې تاسو خپل ځان باندې بل کړے دے، مونځ اُوکړئ، چې هغه اُور مړۀ شي، چې بیا د ماسپخین مونځ وخت راشي، نو ملائک آواز کوي، اے د آدم ﷺ اولاده! پاسئ هغه اُور چې تاسو د سحر نه را واخلې تر ماسپخینه پورې د ګناهونو په وجه په ځانونو بل کړے وو، نو مونځ اُوکړئ چې هغه اُور مړۀ شي. نو د هر مونځ په وخت کښې فرشته آواز کوي.

### د مونځ په وجه د ګناهونو معافي

یَو حدیث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: کله چې یَو بنې آدم صحیح طریقې

---

(1) [رواه الطبراني].

(2) [سورة حم السجدة: 46].

(3) [سورة النساء: 41].

سره اَودس اُوکړي لاسونه ئې اووينځل، او مخ ئې اووينځلو، او په سر ئې مسح اُوکړه، او غوږونو باندې مسح اُوکړه، بيا پاسيدو، او خپې ئې اووينځلې، او بيا پاسيدو، او فرض مونځ ئې اُوکړو، نو پدې ورځ چې ترې کوم ګناهونه شوې دې، هغه ګناهونه چې ددهٔ خپو کړې دې، هغه ګناهونه چې ددهٔ لاسونو کړې دې، او هغه ګناهونه چې ددهٔ سترګو کړې دې، او هغه ګناهونه چې ددهٔ د غوږونو نه شوې وې، او هغه ګناهونه چې ددهٔ زړه کښې پيدا شوې وې، ټول ګناهونه ورته الله معاف کوې.[1]

د هر اندام جُدا جُدا ګناه ده، د سترګو جُدا ګناه ده، د غوږونو جُدا ګناه ده، د لاسونو جُدا ګناه ده، د خپو جُدا ګناه ده، د ژبې جُدا ګناه ده.

## د قيامت پهٔ ورځ انکار

يَو حديث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: د قيامت پهٔ ورځ چې کله بني آدم راوستے شي، بني آدم نه به تپوس اُوکړے شي، چې تا دا ګناه کړې ده، دا ګناه دې کړې ده؟ دے به وائي: يا الله! ما خو نهٔ ده کړې، دے به منکر شي، دے به وائي: ما باندې څوک ګواه پيش کړه، څوک ګواه شته؟ چې هغه دا ګواهي اُوکړي چې دهٔ دا ګناهونه کړې دي، او دے به وائي: والله کهٔ ګواه را باندې پيش کوې، نو هغه ګواه به پيش کوې، چې هغه زما د نفس وي، د بل چا ګواهي زهٔ نهٔ منم، الله به ورته وائي: صحيح ده، (قرآن کريم کښې الله فرمائي: ﴿ٱلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلَىٰٓ أَفْوَٰهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَآ أَيْدِيهِمْ وَتَشْهَدُ أَرْجُلُهُم بِمَا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ﴾.[2]

الله وائي: "د قيامت پهٔ ورځ به زهٔ د دهٔ خُلهٔ بنده کړم، مونږ سره به ددې انسان لاسونه خبرې شروع کړي، خپې به ورباندې ګواهي شروع کړي، پهٔ سبب د هغې

---

(1) [رواه أحمد في "مسنده"، رقم: (8007)].

(2) [سورة يس: 65].

چې دُنیا کښې دوې کوم اعمال کړي دي".

او نبي ﷺ فرمائي: یَو یَو اندام به پرې ګواهي شروع کړي، (لاس به ګواهي شروع کړي، الله! هغه ځیز چې د هغې راغستل نا جائز وو، هغه ځیز ما را اوچت کړے وو، غلا مې پرې کړې وه، لاس به پخپله خبرې کوي، خپې به ګواهي کوي، چې یا الله! هغه ځائے ته چې تلل ورته نا جائز وو مونږ هغې ته تلي وو، غوږونه به ګواهي کوي، یا الله! هغه خبرې چې د هغې اوریدل نا جائز وو مونږ هغه خبرې اوریدلې وي، ګانې بجانې مو اوریدلې وي، د پردو ښځو خبرې مو اوریدلې وي، الله غیبت اوریدل ګناه وه، مونږ غیبت اوریدلے وو، سترګې به ګواهي کوي، الله! هغه ځیزونه چې هغې ته کتل ګناه وه، ما هغې ته کتلي وو، یَو ځائے کښې د ګناه کار کیدو مونږ ورته کتلي وو، تې وي ته کتل ګناه وه، ما ورته کتلي وو، د انسان دا سترګې انسان باندې ګواهي کوي، د انسان دا ژبه به انسان باندې ګواهي کوي، الله! هغه خبرې چې هغه ماته مناسب نه وې، ما هغه خبرې کړې وې، دروغ مې وئیلې وو، غیبت مې کړے وو، کنځلې مې کړې وې، مسلمان ته مې بدې ردې وئیلې وې، د انسان عورت به ګواهي کوي، چې الله! ما ئې تصدیق کړے وو، دا یَو یَو اندام د انسان به پهٔ انسان باندې ګواهي کوي).[1]

نو نبي ﷺ فرمائي: کله چې بنده مونځ اُوکړي، دهٔ مخ اوینځلو نو هغه ګناه چې ددهٔ سترګو نه شوې ده، نو هغه ګناه ورته الله معاف کوي، او چې د غوږونو مسح ئې اُوکړه، نو هغه ګناهونه چې ددهٔ د غوږونو نه شوي دي، نو هغه ورته الله معاف کړي. (خو چې وارهٔ ګناهونه وي، مثال پهٔ طور غیبت شو، نو دا خو لویه ګناه ده؛ ځکه حدیث کښې راځي: «الْغِيبَةُ أَشَدُّ مِنَ الزِّنَا».[2]

---

(1) [رواه أبو عمر يوسف بن عبد الله النمري القرطبي في "جامع بيان العلم وفضله"، رقم: (1821)].

(2) [رواه الطبراني في "المعجم الأوسط"، رقم: (6590)، والبيهقي في "شعب الإيمان"، رقم: (6315، و6316)].

"غیبت د زنا نه هم سخته ګناه ده".

علماء کرام ذکر کوي د غیبت توبه به څنګه اُوباسي؛ څکه علماء کرام ذکر کوي چې لویه ګناه خو بغیر د توبې نه نهٔ معاف کیږي، د غیبت توبه دا ده، چې چا پسې دې خبرې کړې دي، هغې سړي له به ورشي، چې وروه ستا غیبت مې کړے دے، ستا خبرې مې نورو خلقو ته کړې دي، ما معاف کړه، نو کهٔ هغه وائي: چې معاف مې کړې، نو الله به دې توبه قبلوي؛ څکه دا حقوق العباد دي، نو چې هغهٔ نهٔ ئې معاف کړے، نو الله دې هم نهٔ معاف کوي) نو چې اَودس کنبې دې خپې اووینځلې نو هغه ګناهونه چې د خپو نه شوي دي، الله به درته هغه ګناهونه معاف کړي، لاسونه دې اووینځل هغه ګناهونه چې د لاسونو نه شوي دي، هغه به درته الله معاف کړي.

**د سیدنا عثمان ﷺ روایت**

حدیث کنبې راځي، سیدنا عثمان ﷺ ذکر کوي، رسول الله ﷺ یَو ځل مونږ ته یَو حدیث ذکر کړو، مونږ د مونځ نه واپس شو، او زما پهٔ خیال دغه مونځ د مازیګر وو، د مازیګر مونځ مو اُوکړو، او د جومات نه بهر را اُووتُو، وائي: نبي ﷺ اوفرمائیل: «مَا أَدْرِي أُحَدِّثُكُمْ أَوْ أَسْكُتُ» "نهٔ پوهیږم زهٔ چې تاسو ته حدیث بیان کړم، او کهٔ چپ شم؟" صحابه کرام وائي: مونږ ورته اووئیل: کهٔ د خیر خبره وي نو مونږ ته ئې اُوکړه، وائي: نبي ﷺ اوفرمائیل: «مَا مِنْ رَجُلٍ يَتَوَضَّأُ فَيُحْسِنُ الْوُضُوءَ ثُمَّ يُصَلِّي، إِلَّا غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الصَّلَاةِ الْأُخْرَى» وائي: "نشته دے یَو سړے چې اَودس اُوکړي او خائسته کړي اَودس خپل، بیا مونځ اُوکړي، مګر هغهٔ ته معاف کیږي، هغه ګناهونه چې ددې مونځ او د بل مونځ مینځ کنبې دي".[1]

[1] [رواه ابن أبي شيبة في "مصنفه"، رقم: (7648)].

**د سيدنا ابو هريره او د سيدنا ابو سعيد خدري ﷺ روايت**

دواړه فرمائي: «خَطَبَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ» "د الله پيغمبر مونږ ته يو ځل بيان كولو، نو فرمائيل ئې: چې زما دې هغې ذات باندې قسم وي، چې زما روح د هغهٔ پهٔ اختيار كښې دے"، بيا د الله پيغمبر سَر ښكته كړو، او چپ شو، زمونږ نه هر يو سړي سَر ښكته كړو، او پهٔ ژړا شو، هر يو صحابي ژړل، مونږ پته نهٔ وه، چې نبي ﷺ پهٔ څهٔ باندې قسم كړے دے، بيا نبي ﷺ خپل سَر مبارك اُوچت كړو، او د نبي ﷺ پهٔ مخ مبارك د خوشحالئ آثار وو، او مونږ ته د نبي ﷺ خوشحالي د سُرو اُوښانو نه زياته خوښه وه، نبي ﷺ مونږ ته دا حديث اووئيلو: «مَا مِنْ عَبْدٍ يُصَلِّي الصَّلَوَاتِ الْخَمْسَ، وَيَصُومُ رَمَضَانَ، وَيُخْرِجُ الزَّكَاةَ، وَيَجْتَنِبُ الْكَبَائِرَ السَّبْعَ، إِلاَّ فُتِّحَتْ لَهُ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ، فَقِيلَ لَهُ: ادْخُلْ بِسَلاَمٍ» "داسې يو بنده نشته، چې هغهٔ پنځهٔ وخته پابندئ سره مونځ كوي، او د رمضان روژې نيسي، او زكوٰة وركوي، او د اووهٔ (7) غټو غټو گناهونو نه ځان بچ كوي، مگر د هغهٔ دپاره به د قيامت پهٔ ورځ د جنت آتهٔ واړه دروازې كهولاؤ كړے شي، او ورته به اووئيلے شي: دننه شه پهٔ سلامتيا سره".[1]

**د سيدنا عبد الله بن عمرو ﷺ روايت**

وائي: نبي ﷺ ته يو كس راغے، ورته وائي: «أَيُّ الأَعْمَالِ أَفْضَلُ؟» "اے د الله پيغمبره ﷺ كوم يو عمل غوره دے؟" نبي ﷺ ورته اوفرمائيل: «الصَّلاَةُ» "پهٔ تمامو عملونو كښې بهترين عمل مونځ دے" هغه صحابي پهٔ دويم ځل وائي: بيا كوم عمل غوره دے؟ نبي ﷺ ورته فرمائي: «الصَّلاَةُ» "مونځ بهترين عمل دے"، درې ځله ورته

(1) [رواه النسائي، رقم: (2438)].

نبي ﷺ وائي: چې مونځ بهترین عمل دے.[1]

علماء کرام ذکر کوي، د نبي ﷺ مثال د حکیم وو، چا کښې چې به کوم نقصان وو، تپوس به ئې ترې اُوکړو، نبي ﷺ به د هغې سړي متعلق جواب ورکولو.

**د سیدنا عبد الله بن مسعود رضی الله عنه د نبي ﷺ نه تپوس**

سیدنا عبد الله بن مسعود رضی الله عنه د نبي ﷺ نه تپوس کوي، «أَيُّ الْأَعْمَالِ أَحَبُّ إِلَى اللهِ؟» "پهٔ تمامو عملونو کښې کوم يَو عمل بهتر دے؟ نبي ﷺ ورته فرمائي: مونځ بهتر دے، بیا ووته نبي ﷺ وائي: د مور پلار سره احسان کول بهتر عمل دے، بیا ورته نبي ﷺ فرمائي: «ثُمَّ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللهِ» "د الله لاره کښې جهاد کول، پهٔ تمامو عملونو کښې بهترین عمل دے".[2]

اګر چې مونځ آسان دے، خو جهاد خو ډیر ګران کار دے، جهاد ته هیڅ څوک غاړه نهٔ ږدي، الله رب العزت فرمائي: ﴿لَيْسَ الْبِرَّ أَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ﴾.[3]

"نیکي صرف دیته نهٔ وائي چې صرف مونځ کوه، کله مشرق ته مخ کوه، او کله مغرب ته مخ کوه" ایمان صرف دا نهٔ دے، مونځ خو د ایمان يَوه حصه ده.

دا خو صرف د اسلام يَوه حصه او برخه ده، ټول دین پهٔ مونځ کښې نهٔ دے، صرف پهٔ مونځ باندې نهٔ خلاصیږي، د اسلام پهٔ تمامو احکاماتو به عمل کوې. او علماء کرام ذکر کوي چې د اسلام پهٔ مضبوطو حکمونو کښې جهاد کول دا مضبوط حکم دے.

---

(1) [الترغيب والترهيب].

(2) [رواه البخاري، رقم: (6465)، ومسلم، رقم: (85)].

(3) [سورة البقرة: 177].

ددې وجې نه بعض علماء کرام ذکر کوي، چې د اسلام بنيادونه شپږ دي: (1) کلمه شهادت، (2) مونځ، (3) زکوة، (4) روژه، (5) حج، (6) الجهاد في سبيل الله تعالی.

**د جهاد باره کښې د نبي ﷺ فرمان**

حديث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: «أَفْضَلُ الْجِهَادِ كَلِمَةُ عَدْلٍ عِنْدَ سُلْطَانٍ جَائِرٍ».[1]

"بهترين جهاد د ظالم بادشاه مخکښې حقه خبره کول دي" دا بهترين جهاد دے.

بل حديث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: «مَنْ مَاتَ وَلَمْ يَغْزُ، وَلَمْ يُحَدِّثْ بِهِ نَفْسَهُ، مَاتَ عَلَى شُعْبَةٍ مِنْ نِفَاقٍ».[2]

"کوم انسان چې مړ شو، او د الله په لاره کښې ئې جهاد ونۀ کړو، او زړۀ کښې ئې د جهاد خيال هم رانغلو، دا سړے د منافقت په مرګ باندې مړ شو" دا سړے د دنيا نه منافق لاړو؛ ځکه دا خو منافقان وو، چې هغوي به د جهاد اعلان واوريدو، نو هغوي به پټ شول، الله د منافقانو صفت ذکر کوي: ﴿رَضُوا بِأَنْ يَكُونُوا مَعَ الْخَوَالِفِ وَطَبَعَ اللَّهُ عَلَى قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ﴾.[3]

"دا منافقان پدې ډير خوشحاليږي چې روستو پاتې شي، د جهاد نه، او مُهر وهلے دے الله په زړونو د دوي پس دوي نۀ پوهيږي".

**د منافقانو عمل**

قرآن کريم کښې الله د منافقانو عمل ذکر کوي: ﴿وَقَالُوا لَا تَنْفِرُوا فِي الْحَرِّ قُلْ نَارُ

(1) [رواه ابن ماجة، رقم: (4011)].

(2) [رواه مسلم، رقم: (1910)].

(3) [سورة التوبة: 93].

﴿جَهَنَّمَ أَشَدُّ حَرًّا لَّوْ كَانُوا يَفْقَهُونَ﴾.[1]

چې د جهاد موقع به راغله نو "منافقانو به يو بل ته وئيل: كرمئ كښې جهاد له مه ځئ، ډيره زياته كرمي ده" الله وائي: "منافقانو ته اووايه: اُور د جهنم ډير زيات كرم دے، كاش!!! كۀ دوي پوهيدے". نو جهاد "أَحَبُّ الأَعْمَالِ" دے.

**د يو ځوان سره د سيدنا عمر فاروق ﷺ معامله**

سيدنا عمر فاروق ﷺ يو ځل بازار كښې روان وو، بازار كښې ئې يو ځوان اُوليدو، مرۀ مرۀ روان وو، ځان پسې ئې خپې رابنكلې، سيدنا عمر فاروق ﷺ اُونيولو، او ورته وائي: بيمار ئې؟ وائي: نا، وائي: څۀ تكليف دے درته؟ وائي: نا، يو دُوره ئې ورله وركړه، او ورته ئې اووئيل: بازار كښې چې ځې، نو نيغ ځه، او تيز ځه، يهود او نصارئ به درته كورې، نو وائي به: مسلمانان كمزورې شوې دې.

**د مسلمانانو صفت**

د مسلمانانو صفت به دا وي، ﴿مُّحَمَّدٌ رَّسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ﴾.[2]

"محمد رسول الله ﷺ او د هغۀ د ملكرو د هغوي به دا صفت وي، چې كافرانو باندې به سختې كونكې وي، يو بل باندې به مهربانه وي".

خپل مينځ كښې به يو بل سره محبت ساتې، د اسلام حكم دا دے، چې الله ته عاجزې كول دې، انسان چې څومره الله ته عاجزې اُوكړې، دومره د الله خوښ وي، خو د حج پۀ موسم كښې چې كله د بيت الله نه طواف كوې، نو دے به رَمل او پهلوانې كوې، لاسونه به خوزوې، د مستئ پۀ شكل به منډې وهې. دا ولې، تكبر خو منع دے،

---

[1] [سورة التوبة: 81].

[2] [سورة الفتح: 29].

تکبر خو جائز نهٔ دے، دے د الله کور کښې ولې تکبر کوي، د الله کور خو هغه مقام دے، چې الله ته پکښې اُوژاړه، الله ته پکښې عاجزي اُوکړه، او دے طواف کښې پهلواني کوي دا ولې؟ ددې بنيادي وجه دا وه، چې کله صحابه کرام ﷺ مديني منورې ته راغلل، نو مدينه کښې هغوي اُوسيدل، د مديني آب و هَوا کمزورې وه، د مکې د آب وهَوا پهٔ نسبت باندې، نو کافرانو به وئيل: دا مؤمنان مديني ته تلې دې، د مديني اُوبهٔ کمزورې دې، زمکه ئې کمزورې ده، دا صحابه کرام خراب شوي دې، زيړ زيړ دې، مونږ سره جنگ نهٔ شي کولے، نو الله حکم را اُوليږلو، چې زما پيغمبره ﷺ صحابه کرام چې بيت الله ته بوځې، نو بيت الله کښې به پهٔ مستئ باندې طواف کوئ، چې کافرانو ته پته اُولګي، چې مونږ خو وئيل: چې دوي خو کمزورې دې، او دوي خو داسې منډې وهي، چې داسې منډې خو ځوانان هم نهٔ شي وهلے. نو مسلمانان به پهٔ يَو بل باندې رحم دل وي، يَو بل باندې به مهربانه وي، او د کافرانو مقابله کښې به چرته هم نرمي نهٔ کوي.

حديث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: «جَاهِدُوا الْمُشْرِكِينَ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ وَأَلْسِنَتِكُمْ».[1]

نبي ﷺ فرمائي: "د مشرکانو سره جهاد اُوکړئ پهٔ ژبهٔ باندې جهاد ورسره اُوکړه، پهٔ مال باندې جهاد ورسره اُوکړه، او پهٔ نفس باندې ورسره جهاد اُوکړه".

افسوس دا دے چې نن مسلمانان د دُنيا دپاره توله ورځ اُوزګار دي، ليکن کهٔ آواز ورته اُوکړے شي، چې راجمع شئ د کافرانو خلاف آواز اوچتوو، نو هغې ته يَو مسلمان هم نهٔ دے نيار، دا حال دے، جنت دومره آسان نهٔ دے. الله رب العزت فرمائي: ﴿أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُمْ مَثَلُ الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ مَسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ

(1) [رواه أبو داود، رقم: (2504)].

﴿وَالضَّرَّاءُ وَزُلْزِلُوا﴾.[1]

"آیا تاسو کمان کوئ چې تاسو به جنت ته لاړ شئ، او تاسو ته به هغه شان حال نهٔ وي راغلے، کوم چې ستاسو نه مخکښې خلقو ته راغلے وو، هغوي ته تکلیفونه او مصیبتونه رسیدلې وو".

د هغوي مال لوټ کړے شوے وو، مال ترې تول کافرانو اوړلے وو، د هغوي بدنونه ذره ذره شوې وو، هله وربانديې د جنت زیرې شوې وو.

نن مسلمان د زمکې دپاره جنګ کولے شي، د دُنیا دپاره جنګ کولے شي، بل مسلمان وژني، خو د الله د دین دپاره پهٔ تا کښې څومره غیرت دے؟

## د یَو صحابي واقعه

یَو صحابي نبي ﷺ ته وائي: د الله پیغمبره ﷺ! کهٔ چرته ما ته شهادت میلاؤ شي، نو «أَيْنَ أَنَا» "زهٔ به کوم ځائے کښې یم"، نبي ﷺ ورته فرمائي: کهٔ چرته تهٔ شهید شوې، تهٔ به پهٔ جنت کښې ئې، د هغې صحابي لاس کښې کجورې وې، کجورې ئې خوړلې، چې کله ئې دا خبره واوریده، هغه کجورې ئې اُوغورزلې، چې دا کجورې زهٔ خلاصوم، او بیا زهٔ جنګیږم، او بیا جنت ته ځم، پدې خو ډیر وخت لګي، ما له ددې نه مخکښې جنت پکار دے، د جنت کجورې ولې نهٔ خورم؟ کجورې ئې اُوغورزولې، او لاړو، جنګ ئې شروع کړو، نور کافران ئې هم مړهٔ کړل، او پخپله هم شهید شو.[2]

دا د مسلمان شان دے، اُوس خو مسلمان دومره بې غیرته شوے دے، چې چغې ورته وهه، او دهٔ کښې غیرت نهٔ راځي، کافر راځي، او د مسلمان ملک کښې پهٔ مسلمان حمله کوي، او مسلمان کښې غیرت نهٔ راځي، یا خو هغه دُور وو، چې

---

(1) [سورة البقرة: 214].

(2) [رواه مسلم، رقم: (1899)].

بسم الله الرحمن الرحيم

إِنَّ الَّذِينَ يُؤْذُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ لَعَنَهُمُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَأَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا مُّهِينًا

(سورة الأحزاب: 57)

# موضوع

# دَ تصویر حکم

بمقام: جلسې

خطیب

نصیح اللسان لذیذ البیان علامه عبد الحق ربّانی حفظه الله

# د تصوير حکم

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهُ وَلَا آخِرَ لَهُ لَا ضِدَّ لَهُ وَلَا نِدَّ لَهُ وَلَا مُمِدَّ لَهُ وَلَا بَشِيْرَ لَهُ وَلَا نَذِيْرَ لَهُ وَلَا وَزِيْرَ لَهُ وَلَا مُشِيْرَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدَهُ وَرَسُوْلَهُ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُؤْذُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ لَعَنَهُمُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَأَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا مُّهِينًا﴾.(1)

وَعَنْ عَبْدِ الله بْنِ مَسْعُوْدٍ ﷺ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَذَابًا عِنْدَ الله يَوْمَ الْقِيَامَةِ الْمُصَوِّرُوْنَ».(2)

عزتمندو حاضرينو مسلمانانو رونړو! ما د قرآن کريم يو آيت اُولوستو، او د احاديثو د رسول الله ﷺ ما يو حديث عرض کړو، الله رب العزت چې کله نه انسانان پيدا کړي دي، نو پدې انسانانو باندې الله وخت په وخت امتحانات کوي، بعض شريعت کښې پرې يو شے حرام کړې، بل شے جائز کړې دے، بعض شريعت کښې يو شے جائز کړے دے، بل کښې ئې حرام کړے دے، دا ددې دپاره چې الله په خلقو امتحان کوي، چې زما حکمونه منې، او کهٔ نهٔ منې، صرف خپل خواهش پسې روان وي، پدې بيان کښې د يو حرام شي ذکر کوو چې هغې کښې ډير خلق مبتلا

(1) [سورة الأحزاب: 57].

(2) [رواه البخاري، رقم: (5950)].

دي، حالانکه دا شے حرام دے، الله او د الله پيغمبر ﷺ ترې منع کوې، چې هغه تصوير جوړول دې، تصويران ساتل او تصويران ايستل دې، په دوکان کښې کور کښې او ديره کښې لګول دا ناجائز کار دے، الله او د الله پيغمبر ﷺ ناجائز کړے دے. ډير احاديث دې پدې باندې چې د تصوير ويستل حرام او نا روا دې، او د الله پيغمبر چې کومه خبره کوې، نو د ځان نه ئې نۀ کوې، د الله د طرف نه ورته حکم وي، نو الله او د الله پيغمبر ﷺ حرام کړے څيز چې هغه تصوير دے، هغه د هر چا کور کښې شته، هغه ئې د خپلو کورونو د خائست يو سبب ګرځولے دے، کورونو کښې ئې تصويران لګولي دې، يا ئې ورباندې جوړ کړے وي، دوکانونو کښې خلقو تصويران لګولي دې، يا ئې جوړ کړے وي.

چا د حرام کار جوړول شروع کړل، يعنې د تصوير جوړول، او د هغې پيسې خوړل حرام دې، خلقو ددې دپاره دوکانونه کهولاؤ کړې دې، چې هغوي تصويران اُوباسې، او د خلقو نه پرې پيسې آخلې، نو دا لويه ګناه ده، او په خلقو کښې عامه ده، تصوير جوړول دا لويه ګناه ده، دا ډير قبيح عمل دے، هميشه دپاره چې خلق تباه شوې دې، نو تصوير جوړول او تصوير ته کتل د هغوي د هلاکت سبب ګرځيدلے دے. مخکښې قومونو کښې چې کوم قومونه تباه شوې دې، چې هغوي د بوتانو عبادت کولو، د ګټو عبادت ئې کولو، دا بوتان او هغه ګټې دا ګټې نۀ وي، بلکه دا به ئې د نيکانو بندګانو په شکل باندې بوتان جوړ کړې وو، او د هغوي عبادت به ئې کولو، کله چې اول د بوتانو عباد ت شروع کيدو.

علماء کرام ذکر کوې، کله چې د آدم عليه السلام ځامن وفات شول، نو د هغوي نه وروستو چې کوم خلق پيدا شول، هغه ډير نيکان خلق وو، هغوي د بوتانو عبادت نۀ کولو، د الله نه ماسيوا د بل چا عبادت ئې نۀ کولو، خو شيطان راغے، او هغوي ته ئې زړونو کښې وسوسه

واچوله، ورته وائي: دا نیکان خلق وفات شوي دي، که تاسو د هغوي تذکرې کولے، نو ستاسو
به عبادت کښې نور هم شوق پیدا شي، نو وسوسه ئې ورته واچوله، چې د هغوي په شکل
تصویران جوړ کړئ، او ځان له ئې خپلو عبادت خانو او جوماتونو کښې کیدئ، نو چې کله
تاسو عبادت له راځئ، نو د هغوي تصویرانو ته به ګورئ، نو ستاسو به ددین د کار سره مینه او
محبت پیدا کیږي، او عبادت به په شوق باندې کوئ، نو هغوي تصویران جوړ کړل، په هغوي
خلقو کښې خو چا د تصویرانو عبادت نهٔ کولو، عبادت ئې خو د الله کولو، خو کتل به ئې
تصویرانو ته، چې زما شوق عبادت ته سیوا کیږي؛ ځکه د نیکانو بندګانو تصویران وو، کله
چې هغه پیړئ ختمه شوه، هغوي پسې بله پیړئ راغله، نو هغوي ددغې تصویرانو نه
ضروریات او حاجات غوښتل شروع کړل، نو الله تباه کړل، نو د بوتانو او کتو عبادت ئې نهٔ
کولو، دوي به هغې تصویرانو ته کتل، او د هغوي عبادت به ئې کولو، او د هغې د وجې نه
کفر او شرک کښې مبتلا شول، مخکښې قومونه د تصویر د وجې نه هلاک شوي وو.

د رسول الله ﷺ شریعت کښې چې اُوس خومره خلق په بے حیایئ کښې مبتلا
دے، خومره خلق په ګناهونو کښې مبتلا دے، د هغې وجه دا ده چې تصویر به ئې
جوړ کړے وي، د هلک او د جینئ او هغې ته ګورې نو د هغې نه متأثره شي.

نن چې دا خومره بے حیائې عام ده، ددې لویه وجه تصویران دي. نو تصویر
جوړول ناروا دي، چې څوک تصویران جوړوي نو د هغهٔ دا کسب هم ناروا دے.

ما چې کوم آیت لوستے وو، په هغې کښې الله فرمائي: ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُؤْذُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ لَعَنَهُمُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَأَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا مُهِينًا﴾.[1]

"یقینًا هغه کسان چې هغوي تکلیف ورکوي الله ته او د الله پیغمبر ﷺ ته په

(1) [سورة الأحزاب: 57].

لعنت کړې دې الله هغوي لره په دُنيا او آخرت کښې" (لعنت دیته وائي: چې الله به ورته خپل رحمت نۀ ښائي، هر وخت به د الله د رحمت نه لرې وي).

الله ته او پيغمبر ﷺ ته تکليف څۀ دے؟ هر هغه کار کول چې په هغې الله خفه کيږي، هر هغه کار کول چې په هغې د الله پيغمبر خفه کيږي. دا سبب د لعنت د الله دے.

**د سيدنا عکرمه ﷺ قول**

سيدنا عکرمه ﷺ وائي: "نُزِلَتْ فِي الْمُصَوِّرِيْنَ".[1]

"دا آيت دَ تصوير ويستونکو باره کښې نازل دے".

چې ددې نه مراد تصوير اِيستونکې خلق دې، چې هغوي خلقو له تصويران اُوباسي، الله ئې هم خفه کړو، او د الله پيغمبر ئې هم خفه کړو.

**د تصوير کشې کونکو دپاره سخت عذاب**

رسول الله ﷺ فرمائي: «إِنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَذَابًا عِنْدَ اللهِ يَوْمَ القِيَامَةِ المُصَوِّرُونَ».[2]

نبي ﷺ فرمائي: "د قيامت په ورځ به سخت عذاب هغه چا له ميلاويږي، چې چا دُنيا کښې تصويران اِيستلې وي".

**د سيدنا عمر ﷺ روايت**

چې رسول الله ﷺ فرمائي: «إِنَّ الَّذِينَ يَصْنَعُونَ هَذِهِ الصُّوَرَ يُعَذَّبُونَ يَوْمَ القِيَامَةِ، يُقَالُ لَهُمْ: أَحْيُوا مَا خَلَقْتُمْ».[3]

نبي ﷺ فرمائي: "کوم خلق چې د جاندارو څيزونو تصويران جوړوې د قيامت په ورځ به دوي له عذاب ورکولے شي، الله به ورته وائي: چې تاسو دُنيا کښې کوم

(1) [تفسير زاد المسير، تحت آية سورة الأحزاب: 57].

(2) [رواه البخاري، رقم: (5950)].

(3) [رواه البخاري، رقم: (5951)].

څیزونه جوړ کړي وو په هغې کښې روح واچوئ، هغه ژوندي کړئ". نو روح اچول خو د الله کار دے، دا د بل چا کار نۀ دے، نو دے به هغې کښې روح نۀ شي اچولے، نو پدې به ورله الله سزا ورکوي.

**د سیده عائشې ﷺ روایت**

سیده عائشه ﷺ فرمائي: یَو ځل نبي ﷺ کور ته راغے، د هغۀ د راتلو نه مخکښې ما یَوه پرده جوړه کړې وه، کور کښې مې زوړنده کړې وه، په هغې باندې تصویران وو، کله چې نبي ﷺ کور ته راغے، چې وي کتل، نو په هغې پرده کښې تصویران وو، نو د کور دروازه کښې اُودریدو، دننه نۀ راتلو، واپس روان شو، سیده عائشه ﷺ وائي: ما ورته آواز اُوکړو، «یَا رَسُولَ اللهِ أَتُوبُ إِلَى اللهِ، وَإِلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاذَا أَذْنَبْتُ؟» "ما چې کومه ګناه کړې ده، د هغې ګناه په وجه زما نه الله او د الله پیغمبر ﷺ خفه دے؟، زۀ د هغې ګناه نه توبه اُوباسم"، (یعني چې کوم ځائے ګناه کیږي هغې ځائے ته به نۀ ورځې، هغې کور او دوکان ته مۀ ورځه، چې هغې کښې تصویران دې، او کۀ لاړې، نو تۀ هم ګناهګار ئې) نو عائشې ﷺ اووئیل: چې زۀ توبه اُوباسم، نو نبي ﷺ اوفرمائیل: چې دا پرده تا زوړنده کړې ده دا د څۀ د وجې نه؟ نو سیده عائشه ﷺ وائي: ما ورته اووئیل: چې د الله پیغمبره ﷺ! دا خو ما یَوه پرده را زوړنده کړې وه، وائي: نبي علیه والسلام اوفرمائیل: چې دا پرده اُوشلوه، نو هله به زۀ درځم، وائي: ما هغه پرده اُوشلوله، هغه تصویران مې ترې ختم کړل، نو نبي ﷺ بیا کور ته راغے، (نو کۀ تصویر بل چا جوړ کړے دے، او تۀ ئې کور ته راوړې نو هم ګناه ده) بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل: یقینًا ددې تصویر جوړونکو له به د قیامت په ورځ عذاب ورکولے شي، او ورته به اووئیلے شي: چې تاسو کوم شے جوړ کړے دے، دا ژوندي کړئ، او بیا نبي ﷺ اوفرمائیل: چې کوم کور کښې تصویرونه وي،

فرشتې هغې کور ته نهٔ دننه کیږي.[1]

**د سیدنا ابو طلحه ﷺ روایت**

سیدنا ابو طلحه ﷺ فرمائي: چې رسول الله ﷺ فرمائي: «لاَ تَدْخُلُ المَلاَئِكَةُ بَيْتًا فِيهِ كَلْبٌ وَلاَ تَصَاوِيرُ».[2]

رسول الله ﷺ فرمائي: "هغې کور ته د رحمت ملائک نهٔ ورځي، کوم کور کښې چې سپے وي، یا پکښې تصویران وي".

**د یَو سړي واقعه**

یَو سړے وو، هر وخت به ئې د ځان سره سپے ګرځولو، ددې دپاره وائي: چې ما حدیث اوریدلے دے، چې هغې خلقو سره ملائک نهٔ ګرځي کومو خلقو سره چې سپے ګرځي، نو زهٔ ځکه د ځان سره سپے ګرځوم چې ما سره سپے وي، نو ما سره به ملائک نهٔ راځي، نو زما ورح به فرشتې نهٔ اخلي، پدې خیال ئې د ځان سره سپے ګرځولو، نو یَو هوښیار سړي ورته اووئیل: تهٔ خو د ځان سره هر وخت سپے ګرځے، خوستا نه به هغه ملائک روح اخلي کوم ملائک چې ددې سپې نه ورح اخلي.

نو کوم کور کښې چې سپے وي، یا پکښې تصویران وي، نو هغې کور ته د رحمت فرشتې نهٔ دننه کیږي.

**د سیدنا ابو هریره ﷺ روایت**

ابو هریره ﷺ وائي: چې رسول الله ﷺ فرمائیلي دي: ما سره یَو ځل جبریل امین ﷺ وعده اُوکړه، چې زهٔ به سحر درځم، نبي ﷺ به دننه او بَهر کیدو، چې اُوس به جبریل ﷺ راشي، اُوس به جبریل ﷺ راشي، جبریل امین ﷺ رانغلو، نبي ﷺ

(1) [رواه البخاري، رقم: (2105)].

(2) [رواه البخاري، رقم: (5949)].

ډیر خفه وو، چې نهٔ الله دروغ وائي، او نهٔ ملائک دروغ وائي، څهٔ وجه ده، ډیر وخت اُوشو، جبریل امین علیه السلام رانغلے، چې ناڅاپه د نبي علیه السلام خیال شو، نو کور کښې دننه د کټ لاندې وړوکے د سپي بچے وو، نبي علیه السلام اوفرمائیل: دا بهر کړئ، چې بهر ئې کړو، جبریل امین راغے، نبي علیه السلام ورته اوفرمائیل: تا خو ما باندې دومره تکلیف تیر کړو، څهٔ وخت پورې زهٔ ستا پهٔ انتظار ووم؟ د خپلې وعدې خلاف دې اُوکړو، جبریل امین علیه السلام ورته وائي: ما خلاف نهٔ دے کړے، خو ستا کور کښې دننه وړوکے کوترے کرځیدو، او مونږ هغه کور ته نهٔ دننه کیږو، کوم کور کښې چې دننه سپے وي، یا پکښې تصویران وي.[1]

نو هغې کور او دوکان ته د رحمت فرشتې نهٔ دننه کیږي، کوم کور کښې چې سپے وي یا پکښې تصویران وي.

## د سپي ساتل

درې قسمه سپي ساتل جائز دي:

(1) یَو د ښکار دپاره سپے ساتل جائز دې، مثال یَو سړے پرې مرزان نیسي، خو مرزان جنګوې نهٔ، د ځناورو او مارغانو جنګول دا ناروا دي.

(2) دویم د څوکیدارۍ والا سپے ساتل جائز دې، یَو سړے دُشمندار دے، یا دغل نه یریږي، یا ئې داسې ځائے کښې کور دے، چې یَواځې دے، د خپل حفاظت دپاره پهٔ کور کښې سپے ساتل جائز دے.

(3) دریم د کډو او بیزو دپاره سپے ساتل جائز دې، چې هسې نه پهٔ کډو او بیزو داسې ځناور راشي چې وي خوري، نو ددې د حفاظت دپاره سپے ساتل جائز دې.

---

(1) [رواه مسلم، رقم (2104)].

**د سپي ساتلو ځائے**

علماء کرام ذکر کوي، چې د سپي د ساتلو ځائے اُوپيژنه، اصحاب کهفو سره سپے تلے دے؛ ځکه د شپونکې سپے وو. نو سپے به کوم ځائے ساتې، ډير خلق ئې ځان سره کمره کښې اُودهٔ کوې، اکثر ئې ورته تُولايانې اچولې وي، او په هغې کښې ئې اُودهٔ کوې، دا هم جائز نهٔ دې، د سپي د ساتلو يَو ځائے دے، چې هغه د کور يَو گُټ کښې اُوتړه، دا نه چې ټول کور کښې گرځي، او ټول لوښې گنده کوې، داسې سپے ساتل هم ناروا دې. اصحاب کهفو سره سپے تلے دے، نو هغوي چې الله پهٔ غار کښې اُودهٔ کول، نو دا سپے به ئې ورسره هم وردننه کړے وے، دا سپے به هم غار کښې پټ پروت وو، سپے بَهر د غار پهٔ خُلهٔ کښې پروت وو، نو کهٔ ستا سپے دے، نو هغه به د کور يَو گُټ کښې وي، دا نه چې ټول کور کښې به گرځي. مطلب دا دے چې د سپي ساتل جائز دې، خو د دريُو قسمه سُپو، د ښکار سپے، د څوکيدارئ دپاره، او بل چې د کدو او بيزو سره گرځي.

ددې نه ما سيوا هسې د شوق دپاره سپې ساتل او ډوډئ ورله ورکوې، او هر وخت ئې لامبے، داسې سپے ساتل نا جائز دې، او کهٔ د جنګ پهٔ خيال ئې ساتې نو بالکل حرام دې. او د هغې پيسې هم ناروا دې.

نو نبي ﷺ فرمائي: هغې کور ته د رحمت فرشتې نهٔ وردننه کيږي کوم کور کښې چې سپے وي، يا پکښې تصويران وي.[1]

**د سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما روايت**

هغوي فرمائي: چې رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: «مَنِ اقْتَنَى كَلْبًا، إِلَّا كَلْبَ مَاشِيَةٍ،

(1) [رواه البخاري، رقم: (5949)].

أَوْ ضَارِيًا، نَقَصَ مِنْ عَمَلِهِ كُلَّ يَوْمٍ قِيرَاطَانِ». [1]

نبي ﷺ فرمائي: "چا چې سپے اُوساتلو ددې درې قسمه سپو نه علاوه چې نهٔ ښکار کوې، نهٔ د کډو بيزو سره ځې، او نهٔ د څوکيدارئ دپاره دے (بلکه هسې ئې ساتلے دے) نو هره ورځې به ددهٔ دوه قيراطه اجر کميږي".

دوه قيراطه خو دې کولے نهٔ شې، روزانه به د هغهٔ د اجر نه دوه قيراطه اجر کمولے شې. نو د رحمت ملائک هغه کور ته نهٔ دننه کيږي، کوم کور کښې چې سپے دے، يا پکښې دننه تصويران لګيدلې دي.

د ضرورت والا تصويران

د ضرورت دپاره تصوير ساتل جائز دي. د هغې استعمال جائز دے. مثال پهٔ طور يَو سړے بهر ملک ته ځي، نو کهٔ ددهٔ سره تصوير نشته، پاسپورټ نشته، شناختي کارډ نشته، نو دے نهٔ پريدې، نو ددې سړي دپاره پاسپورټ دپاره تصوير ايستل جائز دي؛ ځکه د ملک قانون داسې دے، د هغې نه بله کولے نهٔ شې، کهٔ تهٔ پرې تصوير نهٔ اُوباسې، تاله شناختي کارډ نهٔ جوړوې، دا عذر دے، او مسئله دا ده، چې د عذر د وجې نه ناروا شے کله نا کله جائز کيږي.

دا رنګه يَو سړے دے، او د هغهٔ جيب کښې پيسې دي، نو پهٔ پيسو باندې تصويران شته، اُوس کهٔ يَو سړے وائي: چې زهٔ پکښې تصوير نهٔ منم، او هغه تصوير ترې لرې کړې، نو بيا ترې هغه پيسې څوک نهٔ اخلي. دا عُذر دے، او دا خير دے. پيسو باندې تصوير خير دے، دا رنګه پاسپورټ باندې تصوير شناختي کارډ باندې تصويران جائز دي.

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (5482)، ومسلم، رقم: (1574)].

## فضول تصویران

هغه تصویران چې هغې کښې هیڅ خیر نشته، او تا ایستې دې، د هغې څهٔ مقصد دے؟ تهٔ پکښې ولاړ ئې، او د خپل ځان تصویر دې ایستے دے، او خپل کور کښې او بیټک کښې دې لګولے دے، نو ددې څهٔ مطلب دے؟ یا ستا تصویر نهٔ دے، نورو خلقو پهٔ ګوتو جوړ کړے دے، د سرو یا د ښځو یا د ماشومانو یا د ځاروو، او تا راوړے دے، او پهٔ خپل کور کښې دې لګولے دے، نو دیته څهٔ ضرورت دے؟ خو دا خبره یاد اُوساتۀ چې قیامت کښې به الله وائي: دا ژوندې کړۀ.

## د تصویرانو شوق

د یَو سړي شوق دے، چې خپل کور او خپله دیره ښائسته کول غواړې، نو اول خو ددې نه بل ښائست شته، چې ښائسته پلیسترې دې ورکړے دے، چونه او رنګ دې ورکړے دے، نو دا ښائست کافي دے، او کهٔ بیا هم تهٔ وائې: چې زهٔ پکښې څهٔ ښکلے شے لګوم، نو داسې تصویر اُولګوه چې هغه د جاندار شې نهٔ وي، یعنې د روح والا شے نهٔ وي، د آبادۍ تصویران پکښې اُولګوه، د اُونو او ځنګلونو تصویران پکښې اُولګوه، داسې تصویران لګول جائز دي.دا خو د انسان د تصویر نه زیات خوند کوي، دا خو د پردو زنانو د تصویرانو نه زیات خوند کوي. خو افسوس دا دے!!! چې شیطان دا کوشش کوي، چې هغه مونږ داسې ګناهونو کښې مبتلا کړي چې هغه مونږ ته ګناه نهٔ ښکاري.

اکثر هلکان پهٔ سائیکلو باندې کرځي، نو د سائیکل پهٔ ورستو چمټه باندې ئې هم تصویران لګولي وي، او تصویران هم اکثر د جینۍ وي، او د جینۍ هغه تصویر هم داسې وي، چې هغه نیمه برښده وي، نو هلک ته حیاء هم نهٔ ورځي، چې دا سائیکل خپل کور ته راولي، او هغه سائیکل ته د هغهٔ مور، پلار، رونړه او خویندې ټول ګوري، نهٔ دې هلک له حیاء ورځي، او نهٔ د کور خلقو له حیاء ورځي، چې پهٔ پدې سائیکل ئې څهٔ لګولي دي؟

## د حياء باره کښې د نبي ﷺ فرمان

رسول الله ﷺ فرمائي: «الْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِنَ الْإِيمَانِ».[1]

رسول الله ﷺ فرمائي: "حياء د ايمان يَو شاخ دے".

حياء د ايمان يَو برخه ده. چې چا کښې حياء نۀ وي، دۀ کښې ايمان هم نۀ وي، حياء يَو ډير قيمتي شے دے، هر انسان له پکار دي چې ځان کښې حياء پيدا کړي. نن د خلقو نه حياء چرته تلې ده؟ چې ايمان به پدې خلقو کښې څنګه پاتې شي؟ چې هغوي کښې حياء نۀ وي، پۀ کور کښې به ئې تې وي پروت وي، هغې کښې به د ښځو او سړو تصويران راځي، هغې کښې به د مينې او محبت غلط غلط فلمونه راځي، مور، پلار، رونړه او خويندې ټول ورته پۀ اتفاق باندې ګورې، يَو کس کښې هم حياء نۀ راځي، مور پلار ته حياء نۀ ورځي چې د خپلو بچو مخکښې دا تصويران ګورې، بوډاګان، ځوانان او ماشومان ټول ورته ګورې، د يَو تن زړه کښې دا نۀ راځي چې دا زۀ څۀ کوم؟ دا څومره پۀ لويو ګناهونو کښې خلق مبتلا دي؟! خو افسوس دا دے! چې زمونږ صرف دُنيا ته خيال دے، خپل عيش او عشرت تيرؤ، هغه طريقه کۀ د الله خوښه ده، او کۀ نا خوښه ده. آخرت خو زمونږ نه هير دے.!

## د مسلمان صفت

الله رب العزت فرمائي: ﴿وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَنْ يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ﴾.[2]

---

(1) [رواه النسائي، رقم: (5006)].

(2) [سورة الأحزاب: 36].

الله رب العزت فرمائي: "د مسلمان سړي دپاره او د مسلمانې زنانه دپاره دا نۀ دي جائز کله چې الله او د الله پیغمبر د يَو کار فیصله اُوکړه". چې دوي پکښې بیا خپل اختیارات اُوچلوي. الله وئیلې دي دا شے حرام دے، د الله پیغمبر ﷺ وئیلې دي چې دا شے حرام دے، بیا مسلمان سړي او ښځې له نۀ دي پکار چې هغه کار اُوکړي، دا د مسلمان شان نۀ دے. د مسلمان شان خو دا دے چې کله ورته اووئیلے شي، چې الله داسې وئیلې دي، نبي ﷺ داسې وئیلے دي، وائي: زۀ ئې بالکل منم، دیته ایمان وائي.

## خپل خواهشات پریښودل

رسول الله ﷺ فرمائي: «لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى يَكُونَ هَوَاهُ تَبَعًا لِمَا جِئْتُ بِهِ».[1]

"تر هغې وخته پورې يَو سړے د کامل ایمان والا نۀ شي جوړیدے، تر څو پورې چې ددۀ تمام خواهشات د هغې دین نۀ وي تابع شوي، کوم دین چې محمد ﷺ د الله د طرف نه راوړے دے". الله او د الله پیغمبر يَو شان وئیلې دي، او تۀ بل شان روان ئې، ته څنګه مسلمان ئې؟!

دا خو د منافقانو ایمان دے، چې پۀ خُلې باندې يَوه خبره کوي، او زړۀ کښې بله خبره وي، مسلمان خو دیته وائي: چې ددۀ د ژبې او د زړۀ به يَوه خبره وي، مسلمان خو دیته وائي: چې دۀ وئیلې دي، زۀ الله منم چې زما رب دے، زۀ محمد رسول الله ﷺ منم چې زما پیغمبر دے. ددې څۀ مطلب دے؟ ددې مطلب دا دے: چې زۀ به د الله د حکم خلاف نۀ کوم، زۀ به د نبي ﷺ د طرِيقې خلاف نۀ کوم؛ ځکه زۀ مسلمان يم.

او کۀ نه الله وئیلې دي، ﴿أَقِيمُوا الصَّلَاةَ﴾[2]

"مونځ کوئ"، او تۀ ورځ کښې يَو مونځ کوې، یا يَو مونځ هم نۀ کوې، نو تۀ ځان

(1) [رواه البغوي في "شرح السنة"، رقم: (104)].

(2) [سورة البقرة: 43].

ته مسلمان د څۀ وائي؟ الله وئيلي دي ﴿وَآتُوا الزَّكَاةَ﴾.[1]

"زكوٰة وركوئ"، او تۀ زكوة نۀ پيژنې، د الله پيغمبر وئيلي دي، چې تاسو تمام خواهشات زما ددين تابع كړئ، ستا تمام خواهشات، تمام افعال او تمام اخلاق، ناسته ولاړه، ستا شكل وصورت، ستا غم ښادي هر څۀ د نبي ﷺ د طريقې خلاف دي، نو تۀ ځان ته څنګه اُمتي د نبي ﷺ وائې؟ نو ستا او د منافق مينځ كښې څۀ فرق راغے؟ خو صرف دومره ده، چې تۀ ځان ته منافق نۀ وائې، څوک درته منافق وئيلے نۀ شي، ستا نه به يريږي.

### تصوير ايستونكو له سخته سزا

رسول الله ﷺ فرمائي: «إِنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَذَابًا عِنْدَ اللهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الْمُصَوِّرُونَ».[2]

نبي ﷺ فرمائي: "يقينًا سخت عذاب به د قيامت په ورځ تصوير ايستونكي خلقو ته ميلاويږي" كۀ يَو سړے وائي: چې نبي ﷺ دروغ وائي، نو قرآن كريم كښې الله فرمائي: ﴿وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ ۝ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ﴾.[3]

"دا پيغمبر د خپل ځان نه خبرې نۀ كوي، دے چې تاسو ته كومه خبره كوي دا د الله د طرف نه دۀ ته وحې شوې ده".

او دا خبره ياد اُوساتئ! كچرته يَو مسلمان دا اُووائي: چې د الله خبره او د نبي ﷺ خبره دا دروغ دي، يا هسې ګپ شپ دے، دا مُليان هسې خلق يَروي، نو كچرته صحيح خبره وي، او دے د هغې نه انكار كوي نو انكار سره سړے كافر كيږي. دا مسئله ده.

نو نبي ﷺ فرمائي: سخته سزا به د قيامت په ورځ هغې خلقو ته ميلاويږي،

---

(1) [سورة البقرة: 43].

(2) [رواه البخاري، رقم: (5950)].

(3) [سورة النجم: 3-4].

کوم خلق چې تصویران جوړوي.

پدې دور کښې به کم خلق داسې وي، چې هغوي کره به تصویران نهٔ وي، او کهٔ د نورو تصویرانو وَس ئې نهٔ کیږي، نو د وټونو تصویران راوړي، او کور کښې او دوکان کښې لګوي، وائي: پدې دوکان او کور خائسته کوو، د ګناه پهٔ شي باندې ځائے نهٔ خائسته کیږي، ځائے د ثواب پهٔ کار باندې خائسته کیږي، او پهٔ هغې خائست به څهٔ اُوکړې؟ چې پهٔ هغې تا ته آخرت کښې سزا میلاویږي، چې اُوس پدې کښې روح واچوه.

د سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما روایت

سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي: ما پخپله د نبي ﷺ نه اَوریدلې دې، چې نبي ﷺ فرمائیل: چې چا پهٔ دروغه باندې اووئیل: چې ما بیګا داسې خوب لیدلے وو، او دهٔ خوب لیدلے نهٔ وو، نبي ﷺ فرمائي: پهٔ ورځ د قیامت به ورته الله وائي: دا دوه وَربشې واخله او دې دواړو وربشو له غوټې ورکړه، دے به چرې هم دا وربشې غوټه کولے نهٔ شي، تر هغې به عذاب کښې پروت وي، الله به ورته وائي: چې تا یَو خوب لیدلے نهٔ وو، نو تا ولې پهٔ دروغه باندې خلقو ته اوئیل: چې ما خوب لیدلے دے؟ نن به داسې سزا درکوم چې یَو شے نهٔ غوټه کیږي، زهٔ به تا ته وایم، چې دې له غوټه ورکړه.

دویم نبي ﷺ فرمائي: کوم دوه کسان چې خبرې کوي، خپل مینځ کښې ګپ شپ لګوي، او دے غلے غلے راغے، او د هغوي خبرو ته ئې غوږ کیخودو، یا هغه خلق ددهٔ نه نفرت کوي، ددهٔ نه خبره پټوي، او دے راغلو، د هغوي مینځ کښې کیناستو، نبي ﷺ فرمائي: د داسې انسان پهٔ دواړو غوږونو کښې به وِیلې کړے شوې قلَعي (ویلې کړے شوې تانبه) واچولے شي.

دریم نبي ﷺ فرمائي: «وَمَنْ صَوَّرَ صُورَةً عُذِّبَ، وكُلِّفَ أَنْ يَنْفُخَ فِيهَا، وَلَيْسَ بِنَافِخٍ».[1]

(1) [رواه البخاري ، رقم: (7042)].

"چا چې تصویر جوړ کړو، نو الله به دي انسان له په هغې باندې عذاب ورکوي، او الله به ورته وائي: چې شابه اُوس پدې کښې روح واچوه". دے به په هغې کښې روح اچولے نه شي، نو چې روح پکښې نه شي اچولے نو دۀ له به الله سزا ورکوي، چې ولې دي تصویران جوړول؟

**مذکوره حدیث مبارک یَو اهمه خبره**

پدې حدیث کښې یَوه خبره تیره شوه، چې دوه کسان خپل مینځ کښې خبرې کوي، نو د هغوي خواته مۀ ورځه. د شریعت حکم دا دے څومره صفا خبرې کوي؟ خو که نقصان دے، نو زمونږ نقصان دے، رسول الله ﷺ فرمائي: چې کله درې کسان په لاره باندې روان دي، دوه کسان دي، د هغۀ نه نۀ جُدا کیږي، چې ځان له پټې خبرې اُوکړي، دا ناروا دي؛ ځکه هغه بل کس به زړۀ کښې وائي: چې دوي ما دپاره څۀ بندوبست کوي، چې ما نۀ خبروي، د هغۀ زړۀ کښې شک راځي. نو داسې کار جائز نۀ دے.

**د علماء کرامو فتوٰی**

علماء کرام ذکر کوي، یَو څو قسمه کسان دي، که څۀ چا سپک کړل، نو خپل ځان دي ملامته کړي بل څوک دي نۀ ملامته کوي.

(1) یَو هغه کس دے، چې دوه کسان خپل مینځ کښې خبرې کوي، او دے بغیر د اجازت نه راغے، او د هغوي دواړو مینځ کښې کیناستو، نو که هغوي بے عزته کړو، او ملامته ئې کړو، نو د خپل ځان نه دي خفه شي، هغوي نه دي نۀ خفه کیږي.

(2) دویم هغه سړے چې چا ورته د ډوډۍ دعوت نۀ دے ورکړے، او دے بغیر د دعوت نه ډوډۍ له ځي، نو که هغوي سپک کړو، چې تا ته چا وئیلي دي، چې راځه؟ نو دے دي خپل ځان ملامته کړي، د هغوي نه دي نۀ خفه کیږي، چې تاسو زۀ د خیرات نۀ اُوشړلم.

## د سیدنا ابو هریره ﷺ روایت

سیدنا ابو هریره ﷺ فرمائي: چې رسول الله ﷺ فرمائي: «تَخْرُجُ عُنُقٌ مِنَ النَّارِ يَوْمَ القِيَامَةِ لَهَا عَيْنَانِ تُبصِرَانِ وَأُذُنَانِ تَسْمَعَانِ وَلِسَانٌ يَنْطِقُ، يَقُولُ: إِنِّي وُكِّلْتُ بِثَلَاثَةٍ، بِكُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ، وَبِكُلِّ مَنْ دَعَا مَعَ اللهِ إِلَهًا آخَرَ، وَبِالمُصَوِّرِينَ».(1)

رسول الله ﷺ فرمائي: "د قیامت په ورځ به د جهنم د اُور نه یَو اژدها را اُوځي، د هغې به دوه سترکې وي، چې په هغې به لیدل کوي، دوه غوږونه به يې وي، چې په هغې اوریدل کوي، او ژبه به ئې وي، چې په هغې به خبرې کوي، دا اژدها به آواز کوي: چې زۀ په درې قسمه خلقو باندې مقرر شوې یم: (1) یَو هر ظالم عناد کونکې سره زما کار دے، (چې دے دُنیا کښې ظالم وو، د غریبانانو سره ئې ظلم کړے وو)، (2) دویم زۀ په هر هغه چا مقرر یم، چې چا دُنیا کښې د الله سره بل شریک کړځولے وو، (3) دریم زۀ په هر هغه چا مقرر یم چا چې دُنیا کښې تصویرونه جوړول".

## د سیدنا ابن عباس ﷺ خواته د یَو سړي راتلل

یَو حدیث کښې راځي، چې سیدنا عبد الله بن عباس ﷺ ته یَو سړے راغے، او ورته وائي: چې اے عبد الله بن عباسه! زما کار دا دے، چې زۀ تصویران جوړوم، یعنې زما رزق پدې کښې دے، نو کۀ زۀ تصویران نۀ جوړوم نو زۀ به څۀ خُورم؟ سیدنا عبد الله بن عباس ﷺ ورته وائي: راشه، ځان ته ئې نزدې کړو، او په سَر ئې ورله لاس کیخودو، او ورته وائي: هغه حدیث درته بیانوم چې ما پخپله د نبي ﷺ نه اَوریدلے دے، او ورته وائي: ما پخپله د نبي ﷺ نه دا خبره اَوریدلې ده، چې چا تصویر جوړ کړو، نو الله به دي انسان.ته وائي: چې شابه پدې کښې روح واچوه، نو دے به

(1) [رواه الترمذي، رقم: (2574)].

هغې روح اچولے نهٔ شي، نو الله به سزا ورکوي، جهنم ته به ئې غورزوي. چې کله هغې سړي دا خبره واوریده، نو حدیث کښې راځي، هغه سړي یَو لویه چغه وېستله او مخ ئې تک زیړ شو، سیدنا عبد الله بن عباس ﷺ ورته وائي: واه وُرَک شې، تباه شې، کهٔ یَو کار کوې، نو هغه جائز دے، وائي: څنګه؟ وائي: ته چې تصویر جوړے، نو تصویران جوړ کړه د هغې شي چې هغې کښې روح نشته، د اُونو تصویران جوړ کړه، د کټو تصویران جوړ کړه، خو د ساه والا تصویر مهٔ جوړوه.[1]

اکثرو ځایونو کښې خلقو تصویران لګولي وي، کونتره یا طوطې ئې جوړ کړے وي، او هغې ته ئې خُلهٔ کښې تار ورکړے وي د هغې تار یَو طرف او بل طرف ته د لرګې یَو تخته وي، پهٔ هغې باندې کلمې لیکلې وي، سبحان الله ئې پرې لیکلې وي، الحمد لله پرې لیکلې وي، لا إله إلا الله محمد رسول الله پرې لیکلې وي، دا کار هم ناروا دے.

مسئله خو دا ده: علماء کرام ذکر کوي، چې پهٔ دیوالونو باندې او لرګو باندې د الله د کتاب آیاتونه لیکل، او هغه اویزاندول د الله د کتاب بے عزتي ده، د جومات پهٔ دیوال هم د قرآن کریم آیت نهٔ شي لیکلے. نو یَو خوا دې کلمې لیکلې دي، او بل خوا دې ورسره تصویران لګولي دي، دا ګناه ده، نو تصویر چې د جاندار شي وي کهٔ د مرغهٔ تصویر دے، کهٔ د نورو ځناورو تصویر دے، د هغې جوړول ناروا دي، کهٔ یَو انسان کور ته تصویران راوړي، نو چې داسې تصویران راوړي چې هغه د ساه والا نهٔ وي.

**د سیدنا ابن عباس ﷺ بل روایت**

چې رسول الله ﷺ فرمائي: «إِنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنْ قَتَلَ نَبِيًّا، أَوْ قَتَلَهُ نَبِيٌّ، أَوْ قَتَلَ أَحَدَ وَالِدَيْهِ، والْمُصَوِّرُونَ، وَعَالِمٌ لَمْ يَنْتَفِعْ بِعِلْمِهِ».[2]

---

(1) [رواه مسلم، رقم: (2110)].

(2) [رواه البيهقي في "شعب الإيمان"، رقم: (7504)].

رسول الله ﷺ فرمائي: "سخته سزا به د قيامت پهٔ ورځ يَو څو قسمه خلقو ته ميلاويږي: (1) يَو هغه سړي ته به سخته سزا ميلاويږي چې د هغهٔ د لاس نه نبي (پيغمبر) وژلے شوے وے، (2) دويم هغه سړي ته به سخته سزا ميلاويږي چې هغهٔ له يَو نبي (پيغمبر) وژلے وي، (مقابله ئې ورسره کوله، او مړهٔ ئې کړو، هغهٔ ته به سخته سزا ميلاويږي)، (3) دريم هغه انسان ته به سخته سزا ميلاويږي چې مور پلار کښې يَو تن مړهٔ کړے وي، يا ئې مور مړه کړې وي، يا ئې پلار مړهٔ کړے وي، (4) څلورم تصوير اِيستونکې انسانانو ته به سخته سزا ميلاويږي، چې کوم خلق تصويران اُوباسي، (5) پنځم هغه عالم چې پخپل علم نه فائده نهٔ اخلې، هغهٔ ته به سخته سزا ميلاويږي". نو پدې خبره تاسو ښهٔ پوهه شوئ چې تصوير اِيستل او تصويران ساتل گناه ده.

او نن دور کښې به داسې څوک وي، چې هغه ته به دا پته نهٔ وي، چې تصويران ساتل ناروا دي، هر څوک خبر دے، چې تصوير ساتل ناروا دې، او بيا هم دا کار کوي، نو د قيامت پهٔ ورځ به ورته سخته سزا ميلاويږي.

**تصوير او اُوچت قبر ختمول**

سيدنا حيان بن حصين ﷺ فرمائي: چې ما ته سيدنا علي ﷺ اوفرمائيل: آيا زهٔ تا له پهٔ هغه کار باندې نهٔ ليږم د کوم کار دپاره چې نبي ﷺ ما له ليږلے وو، او هغه کار دا دے، «أَنْ لَا تَدَعَ تِمْثَالًا إِلَّا طَمَسْتَهُ وَلَا قَبْرًا مُشْرِفًا إِلَّا سَوَّيْتَهُ» چې کوم ځائے کښې تهٔ تصوير گورې نو هغه ورانوه، او دا اُوچت اُوچت قبرونه برابر کړه، ددې اُوچتوالے ختم کړه.[1]

نن خلقو د قبرونو نه بنگلې جوړې کړې دې، نبي ﷺ د خپل ترهٔ زوې پدې

(1) [رواه مسلم، رقم: (969)].

مقرر کړے وو، چې کوم ځائے کښې اُوچت قبر وي، هغه د نورو قبرونو سره برابر کړه، هسې نه چې خلق د هغې نه امدادونه غوښتل شروع کړي. لکه چې اُوس چې پرې خلقو جنډې اودرولې دي، او قبرونه ئې پاښۀ کړي دي، او ډيوې پرې بلوي، دا ټول بدعات او شرکيات دي. د نبي ﷺ زمانه کښې داسې نۀ دي شوي، معمولې چې به قبر اُوچت وو، هغه به ئې برابرولو، چې څوک د قبر عبادت ونۀ کړي.

**د تصوير ساتلو ګناه ده**

علماء کرام دا درې واړه بابونه پۀ يَو ځائے راوړي، معلوميږي داسې چې د رحمت ملائکې خو ډيرو ځايُونو ته نۀ ځي، خو دي دريُو ځايونو ته د رحمت ملائکې نه ځي.

(1) يَو هغه کور ته چې کوم کور کښې تصوير لګيدلے دے.

(2) دويم هغه کور ته چې هغې کښې سپے دے.

(3) دريم هغې کور ته چې هغې جرسونه دي، کۀ څاروو کښې دي، او کۀ د انسانانو خپو کښې دي. دا مرض هم پدې خلقو کښې عام دے. شيطان به هغه شے پدې خلقو کښې دننه کوي، چې کوم ناروا شے وي، حلال کارونه ترې ختموي.

علماء کرام ذکر کوي، رياض الصالحين کښې امام نووي رحمه الله باب ذکر کوي:

"باب کراهية تعليق الجرس في البعير وغيره من الدواب...". [1]

وائي: "باب دے پۀ بيان د دې کښې چې مکروه دي جرس زوړندول اوښ او نورو څناورو ته". دا ناروا دي.

نن دور کښې اکثرو خلقو څاروو ته جرسونه زوړند کړي دي، پکار دا دي

(1) [رياض الصالحين: 473].

چې مسلمانان دا څيزونه د خپلو څاروو نه ختم کړي. څاروے پليت نۀ دے، خو ددې جرس پۀ وجه به ستا کور ته د رحمت فرښتې نۀ راځي. جرس دا د شيطان شپيلۍ ده. حديث کښې راځي: «الْجَرَسُ مَزَامِيرُ الشَّيْطَانِ».[1]

"جرس دا د شيطان شپيلۍ ده". بل حديث کښې راځي: «لاَ تَصْحَبُ الْمَلاَئِكَةُ رُفْقَةً فِيهَا كَلْبٌ وَلاَ جَرَسٌ».[2]

"د هغې ډلې سره ملائک نۀ ملګرې کيږي چې کومې ډلې سره سپے کرځي، يا ورسره جرس دے". ډيرو خلقو د خپلو بچو پۀ خپو کښې جرسونه اچولې دي، چې ماشوم پۀ کرځيدو شي، نو خلق ورته خپو کښې جرس واچوي، دا جرس د ماشوم خپو کښې اچول ناروا دي.

سيدنا عمر بن الخطاب ﷺ ته د عبد الله بن زبير ﷺ لُور راوړلے شوه، چې لُور ئې ورته راوړه، نو د هغې خپو کښې جرسونه وو، سيدنا عمر ﷺ د هغې دواړو خپونه جرسونه اوشلول، او بيا ورته اووئيل: ما د نبي ﷺ نه اَوريدلې دي: چې نبي ﷺ فرمائيل: «إِنَّ مَعَ كُلِّ جَرَسٍ شَيْطَانًا».[3]

"يقينًا ددې يَو يَو جرس سره يَو يَو شيطان ملګرے وي".

مسلمانانو له پکار دي، چې د تصوير اِيستلو او ځان سره د ساتلو نه ځان اُوساتي.

(وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



---

(1) [رواه مسلم، رقم: (2114)].

(2) [رواه مسلم، رقم: (2113)، والترمذي، رقم: (1703)].

(3) [رواه أبو داود، رقم: (4230)].

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

وَالَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَفْرَحُونَ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمِنَ الْأَحْزَابِ مَن يُنكِرُ بَعْضَهُ... الخ

(سورة الرعد: 36)

# موضوع

# دَ قرآن کریم مقام

بمقام: جلسۍ

خطیب

فصیح اللسان لذیذ البیان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# د قرآن کریم مقام

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِينُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِهِ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهُ وَلَا آخِرَ لَهُ لَا ضِدَّ لَهُ وَلَا نِدَّ لَهُ وَلَا مُمِدَّ لَهُ وَلَا بَشِيْرَ لَهُ وَلَا نَذِيْرَ لَهُ وَلَا وَزِيْرَ لَهُ وَلَا مُشِيْرَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهِ وَأَصْحَابِهِ وَسَلَّمَ عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿وَالَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَفْرَحُونَ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمِنَ الْأَحْزَابِ مَنْ يُنْكِرُ بَعْضَهُ قُلْ إِنَّمَا أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ اللَّهَ وَلَا أُشْرِكَ بِهِ إِلَيْهِ أَدْعُو وَإِلَيْهِ مَآبِ ★ وَكَذَٰلِكَ أَنْزَلْنَاهُ حُكْمًا عَرَبِيًّا وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُمْ بَعْدَمَا جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ مَا لَكَ مِنَ اللَّهِ مِنْ وَلِيٍّ وَلَا وَاقٍ﴾.[1]

وَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «إِنَّ اللهَ يَرْفَعُ بِهٰذَا الْكِتَابِ أَقْوَامًا، وَيَضَعُ بِهِ آخَرِيْنَ»[2]

عزت مندو حاضرینو مسلمانانو رونړو! ما د سورت الرعد یو دوه آیاتونه تلاوت کړل، او د احادیثو د رسول الله ﷺ نه یو حدیث ما ستاسو وړاندې عرض کړو. حقیقت دا دے چې قرآن کریم د الله رب العزت ډیر زیات عزت مند کتاب دے، د دُنیا په کتابونو خو خود معزز او اُوچت کتاب دے، چې د آسمان نه الله کوم نور آسماني کتابونه نازل کړي دي، نو هغې ټولو کښې معزز مقام د قرآن کریم دے. د

(1) [سورة الرعد: 36-37].

(2) [رواه مسلم، رقم: (817)].

قرآن کریم د نزول سره مخکښې ټول کتابونه منسوخ شول، د جناب رسول الله ﷺ د راتلو سره د مخکښنو انبیاء کرامو نبوت او د هغوي هغه بعض مشن منسوخ شو.

اُمت د رسول الله ﷺ د دوي د هدایت دپاره الله قرآن کریم را اُولیږلو، یهودو او نصارو به صرف خپل پیغمبران منل، او بل پیغمبر به ئې نهٔ منلو. مؤمنان به ټول پیغمبران منې ﴿لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّن رُّسُلِهِ﴾.[1]

"مونږ جُدا والے نهٔ راولو پهٔ مینځ د یَو تن د انبیاء د الله کښې پهٔ منلو کښې ټول منو" چې دا د الله پیغمبران دي، خو لیکن عمل به پهٔ شریعت د جناب رسول الله ﷺ کوو، کچرته پهٔ یَو مقام کښې او یَوځائے کښې پهٔ مخکښنو شریعتونو کښې یَو کار جائز وو، او پهٔ شریعت د محمد مصفطی ﷺ کښې هغه ناجائز وو، نو بیا به هغه کار نهٔ کوئ، چې یَو سړے اووئ: چې مخکښې آمتونو کښې جائز وو، او کهٔ مخکښنو اُمتونو کښې یَو شے جائز وو، او دې اُمت کښې هم جائز وي، نو هغه به جائز وي.

نو قرآن کریم پهٔ تمامو کتابونو کښې یَو عظیم الشان کتاب وو، چې ددې د نزول سره الله مخکښې کتابونه منسوخ کړل. رسول الله ﷺ فرمائي: چې الله رب العزت د زمکې او آسمان د پیدا کولو نه زَر (1000) کاله مخکښې سورت طٰهٰ او سورت یٰس اولوستل، چې د الله کلام وي، او الله ئې ښخپله اُولولې، نو خومره خوند به کوې، نو چې هغه وخت ملائکو واوریدو، نو ملائکو اووئیل: «طُوبَىٰ لِأُمَّةٍ يَنْزِلُ هَذَا عَلَيْهَا» "خوشحالي ده د هغې اُمت دپاره چې پهٔ کوم اُمت به دا قرآن کریم راځي"، «وَطُوبَىٰ لِأَجْوَافٍ تَحْمِلُ هَذَا» "او خوشحالي ده د هغې سینو دپاره کومو سینو چې قرآن کریم اُوچت کړو"، کومو سینو چې قرآن کریم له ځائے ورکړو، هغه سینې ډیرې د خیر او

(1) [سورة البقرة: 285].

برکت والا دي، بیا ملائکې وائي: «وَطُوبىَ لِأَلْسِنَةٍ تَتَكَلَّمُ بِهَذَا».[1] "او خوشحالي ده هغه ژبو لره چې کومې ژبې د الله کتاب باندې چلیږي".

د نبي ﷺ ټول اُمت غوره دے، خو لیکن هغه خلق ډیر زیات غوره دي، چې د چا د قرآن کریم سره تعلق دے، چې د چا سینه کښې قرآن کریم پرُوت دے، د هغه انسان لوې مقام دے. ژبه خو هسې هم چلیږي، څوک غیبت کوي، څوک کنځلې کوي، خو هغه ژبې زیاتې مبارکې دي، چې د چا په ژبه د الله کتاب جاري دے.

**د نبي ﷺ یَو صحابي ته نصیحت**

رسول الله ﷺ یَو صحابي ته نصیحت کوي: چې همیشه دې ستا ژبه د الله په ذکر باندې لونده وي، یعني هر وخت پدې خپله ژبه د الله ذکر کوه.[2]

نو قرآن کریم ډیر عزت مند کتاب دے، خو لیکن مونږ ته ددې قدر معلوم نۀ دے، حالانکه کله چې یَو کپړا د قرآن کریم سره لګیدلې ده، هغه کپړا مبارکه شوه، کله یَو تخته د قرآن کریم سره لګیدلې ده، هغه تخته مبارکه کیدلے شي، نو چې د کوم انسان تعلق د قرآن کریم سره دے هغه انسان هم عزت مند دے.

**د قرآن کریم د لوستلو او د عمل فائده**

رسول الله ﷺ فرمائي: «مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ وَعَمِلَ بِمَا فِيهِ، أُلْبِسَ وَالِدَاهُ تَاجًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ، ضَوْءُهُ أَحْسَنُ مِنْ ضَوْءِ الشَّمْسِ فِي بُيُوتِ الدُّنْيَا لَوْ كَانَتْ فِيكُمْ، فَمَا ظَنُّكُمْ بِالَّذِي عَمِلَ بِهَذَا؟».[3]

"چا چې قرآن کریم اُولوستو، او بیا ئې په هغې باندې عمل اُوکړو، ددغې

---

(1) [رواه الدارمي، رقم: (3736)].

(2) [رواه الترمذي، رقم: (3375)].

(3) [رواه أبو داود، رقم: (1453)].

لوستونکي مور پلار ته به يَو تاج پهٔ سَر کړے شي، چې د هغې تاج رڼرا به د نَمر د رڼرا زياته خائسته وي" نو نبي ﷺ فرمائي: "څهٔ خيال دے ستاسو پهٔ هغه سړي باندې چې خپله ئې قرآن کريم باندې عمل کړے دے، چې د هغهٔ به کوم مقام وي؟"

**د قرآن کريم يَو حرف لوستلو باندې لَس نيکئ**

رسول الله ﷺ فرمائي: «مَنْ قَرَأَ حَرْفًا مِنْ كِتَابِ اللهِ فَلَهُ بِهِ حَسَنَةٌ، وَالحَسَنَةُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا، لاَ أَقُولُ الٓمٓ حَرْفٌ، وَلَكِنْ أَلِفٌ حَرْفٌ وَلاَمٌ حَرْفٌ وَمِيمٌ حَرْفٌ».[1]

رسول الله ﷺ فرمائي: "چا چې د الله د کتاب يَو حرف اُولوستو د هغهٔ دپاره ددې حرف بدله کښې يَوه نيکي ده، او د يَوې نيکئ بدله پهٔ لَسو (10) نيکو ورکولے شي" بيا نبي ﷺ فرمائي: "زهٔ دا نهٔ وايم، چې الٓمٓ ټول يَو حرف دے، الف جُدا حرف دے، لام جُدا حرف دے، ميم جُدا حرف دے". نو صرف پهٔ يَو الٓمٓ باندې تا ته دِيرش (30) نيکئ ميلاوېږي. نو چې کله يَو سړے د الله کتاب لولي، او يَو رکوع تلاوت دې اُوکړو، نو بے حسابه نيکئ دې اُوګټلې.

خو افسوس دا دے!!! چې ددې د قيمت نه مونږ څهٔ خبر يُو، د ګپ شپ دپاره وخت شته، ليکن د الله د کتاب دپاره وخت نشته.

**د قرآن کريم يَو آيت د يَوې اُوښې نه بهتر**

رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته اوفرمائيل: چې تاسو کښې کوم يَو سړے دا خوښوي چې هغه سحر وختې د بُطحان يا د عقيق بازار ته لاړ شي، او د هغې ځائے نه ځان دپاره دوه اُوښې سَرېې او بلاربې راولي، صحابه کرام ورته فرمائي: چې د الله پيغمبره دا زمونږ د ټولو خوښه ده، نبي ﷺ اوفرمائيل: جومات ته تلل او د دوو آياتونو

(1) [رواه رواه الترمذي، رقم: (2910)].

لوستل یا بل ته ځودل د دوو اوښو ته، او درې آیاتونه د درېو اوښو نه، او څلور آیاتونه د څلورو اوښو نه بهتر دي.[1]

علماء کرام ذکر کوي، دا صرف یو تمثیل دے؛ ځکه کۀ اوښه ډیره زیاته ښه شي، خو تعلق ئې صرف د دُنیا سره دے، چې تۀ د دُنیا نه لاړ شې، نو اوښه درنه پاتې شو، هیڅ فائده یو بل ته نۀ شي ورکولے، او یو آیت د قرآن کریم چې دې زده کړو، او عمل دې پرې اُوکړو، دلته درسره هم ملګرے دے، پۀ قبر کښې درسره هم ملګرے دے، پۀ میدانِ محشر کښې درسره هم ملګرے دے، ترڅو پورې چې ئې جنت ته نۀ ئې رسَولے. د قرآن کریم ډیر لوې شان دے، او دا خبره یاد اُوساتئ! چې کله د قرآن کریم ناظره زده کړو، د هغې نه بعد به د قرآن کریم پۀ ترجمه او معنی باندې ځان پوهه کړو، چې قرآن کریم کښې الله مونږ ته څۀ وائي؟ چې بیا پۀ هغې عمل اُوکړو.

افسوس دا دے!!! چې مونږ دا منو چې قرآن کریم د الله کتاب دے، خو مونږ د قرآن کریم تابع نۀ یُو، مونږ قرآن کریم د ځان تابع کړے دے، چې کومه خبره زمونږ د ذهن سره برابر ده، نو هغه منو، او چې کومه خبره زمونږ د ذهن خلاف ده، نو هغه مونږ نۀ منو.

## قرآن کریم نیغه لار ده

الله رب العزت قرآن کریم کښې فرمائي: ﴿وَأَنَّ هَٰذَا صِرَاطِي مُسْتَقِيمًا فَاتَّبِعُوهُ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَن سَبِيلِهِ﴾.[2]

"یقینًا دا قرآن کریم زما نیغه لاره ده، پس ددې قرآن تابعدارې اُوکړئ". قرآن کریم چرته دا نۀ دي وئیلي دي: چې کچرته ستا پۀ طبیعت یو خبره برابر نۀ ده، نو خیر

(1) [رواه مسلم، رقم: (803)، وأبو داود، رقم: (1456)].
(2) [سورة الأنعام: 153].

دے، بیا د قرآن کریم مهٔ منه. الله رب العزت فرمائي: ﴿فَاتَّبِعُوهُ﴾ "د دې قرآن کريم پسې روان شئ"، کهٔ قرآن دي پرېخودو او نورو لارو باندې روان شوې، نو الله رب العزت فرمائي: ﴿وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَن سَبِيلِهِ﴾ "د قرآن کريم نه ما سيوا د نورو لارو تابعدارې مهٔ کوئ، کنې د الله د لارې نه به مو واړوي". او چې کله د سمې لارې نه واوړيدئ، نو بيا مقصود ته نهٔ شئ رسيدے. کهٔ مقصود ته رسيدل غواړې، جنت ته رسيدل غواړې، د الله رضا ته ځان رسَول غواړې، نو قرآن کريم پسې روان شه.

يَو شاعر ډيره عجيبه خبره کوي، يَو سړے خانه کعبې ته تلو، د خانه کعبې لار ئې پرېخوده، د ترکستان پهٔ لار روان شو، يَو هوښيار سړے راغے، هغهٔ ورته اووئيل: چرته ځې؟ هغهٔ ورته اووئيل: زهٔ خو خانه کعبې ته ځم، هغه ورته وائي: دا لار خانه کعبې ته نهٔ ده تلې، دا ترکستان ته تلې ده، دا لار پريده، هغهٔ ورته اووئيل: نا نا زهٔ پدې لار باندې ځم، هغهٔ ورته وائي:

ترسم نمی رسی بکعبہ اے اعرابی　　　ایں راہ کہ تو میروی بترکستان است

"واه! د باندې نه راغلې سړيه زهٔ پهٔ دې باندې يريږم، چې تهٔ به خانه کعبې ته اُونرسيږې؛ ځکه څومره چې تهٔ پدې لاره ځې، نو دومره تهٔ د خانه کعبې نه لرې کيږې، خانه کعبې ته نهٔ شې رسيدے، ترکستان ته به رسيږې، خانه کعبې ته به هله رسې، چې د خانه کعبې پهٔ لاره روان شې". کله چې يَو انسان مقصود ته روان دے، نو د هغې لارې معلومول ضرورې دي.

الله وائي: نورې لارې پريدئ دا قرآن کريم زما نيغه لاره ده، ددې پسې روان شئ، ددې تابعدارې اُوکړئ.

ما چې کوم آياتونه لوستې وو: ﴿وَالَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَفْرَحُونَ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ﴾ الله وائي: "هغه کسان چې ما ورته کتاب ورکړے دے، خوشحاليږي پهٔ هغه

هغه چې دوي نه زاليږلي شوې دي". شان د مؤمن به دا وي چې دے به د الله کتاب باندې خوشحاليږي.

### د کافرانو صفت

د کافر صفت دا دے، چې هغه د الله د کتاب وئيلو په وخت کښې تنکيږي، قرآن کريم هره يوه خبره واضحه کړې ده. الله رب العزت فرمائي: ﴿وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ تَعْرِفُ فِي وُجُوهِ الَّذِينَ كَفَرُوا الْمُنكَرَ﴾.[1]

"کله چې لوستلے شي په دوي باندې زمونږ آياتونه واضحه، پيژنې به ته په مخونو د هغه کسانو کښې چې کفر ئې کړے دے تريوالے". الله وائي: کله چې زما کتاب بيانيږي، نو د کافر تندے به تريو وي.

### د منافقانو صفت

د منافق صفت الله قرآن کريم کښې بيانوي: ﴿أَوْ كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَاءِ فِيهِ ظُلُمَاتٌ وَرَعْدٌ وَبَرْقٌ﴾.[2]

الله وائي: "منافق باندې د الله کتاب داسې بد لګي لکه څنګه چې يو سرے باران کښې روان دے، او د برق پړق هغه حالت په هغه بد لګي"، دغسې منافق باندې د قرآن کريم آواز بد لګي، او څنګه چې ګړز ګړز سره غوږونو کښې ګوتې ورکوي، دغسې منافق د قرآن کريم د لوستلو په وخت کښې غوږونو کښې ګوتې ورکوي، څکه د قرآن کريم آواز پرې بد لګي.

---

[1] [سورة الحج: 72].

[2] [سورة البقرة: 19].

## د مسلمانانو صفت

الله رب العزت فرمائي: ﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَانًا وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ﴾.(1)

"يقينًا مؤمنان هغه كسان دي، كله چې لوستے شي په دوي باندې زمونږ آياتونه نو د دوي د ايمان هغه اثر سيوا كيږي، او خپل رب باندې ځان سپاري". دا د مسلمان صفت دے، چې سره د الله كتاب باندې خوشحاليږي.

﴿وَمِنَ الْأَحْزَابِ مَنْ يُنْكِرُ بَعْضَهُ قُلْ إِنَّمَا أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ اللَّهَ وَلَا أُشْرِكَ بِهِ إِلَيْهِ أَدْعُو وَإِلَيْهِ مَآبِ﴾.(2)

"او بعضې د ډلو هغه څوک دي چې انكار كوي د بعضې مسئلو د قرآن كريم نه".
علماء كرام وائي: چې د كومو مسئلو نه انكار كوي، نو هغه مسئله د توحيد ده، چې كله د الله توحيد بيانيږي، نو بعضې خلق داسې دي، چې هغوي باندې د الله توحيد بد لګي.

## د مكې د مشركانو جګړه

د مكې د مشركانو جګړه د نبي ﷺ سره په دې كښې نه وه، چې تهٔ مونږ ته ولې وائې: چې مونځ اُوكړئ؟؛ څكه مونځونه خو هغويٰ كول، د مكې د مشركانو جګړه د نبي ﷺ سره په زكوٰة كښې نهٔ وه، جګړه ئې د حج په مسئله كښې نهٔ وه، پدې مسئلو كښې جګړه نهٔ وه، خيراتونه ئې كول، زكواتونه ئې وركول، جوماتونه ئې جوړول، جګړه ئې صرف پدې خبره كښې وه، چې إله او حاجت روا ئې يَو الله نه منلو. وائي: الله سره نور شريكان شته، چې الله هغوي له اختيارات وركړې دې، صرف پدې خبره باندې جګړه وه، نورې خبرې دې ښې دې، خو دا خبره دې ښه نهٔ ده.

---

(1) [سورة الأنفال: 2].

(2) [سورة الرعد: 36].

ولې چې زمونږ خو ډېر خدايان دي، د سرخوكې دپاره يو إله، تبې دپاره بل إله، زيړې دپاره بل إله، د اولاد دپاره بل إله، هر يو شي دپاره جُدا جُدا إله دے، او ته وائې: چې دوي څۀ نۀ شي كولے؟

د مشركانو حالت

قرآن كريم د مشركانو حالت بيانوي: ﴿وَإِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَحْدَهُ اشْمَأَزَّتْ قُلُوبُ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ وَإِذَا ذُكِرَ الَّذِينَ مِن دُونِهِ إِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُونَ﴾.[1]

"كله چې ياد كړے شي الله يواځې نو تنګ شي زړونه د هغه كسانو چې ايمان نۀ راوړي په آخرت باندې، او كله چې ياد كړے شي هغه كسان چې بغير د الله نه ئې دوي را مدد كوي، ناڅاپه دوي خوشحاله كيږي".

مشركان وائي: د اولياؤ څومره لوي مقام دے، چې شيخ عبد القادر جيلاني ﷫ د يوولسو (11) كالو غرقه بيړۍ را ويستې وه، او دوي دا نه مني، حالانكه دا خلق خبر نۀ دي چې كوم خلق د دُنيا نه تلي دي، هغوي څۀ نشي كولے.

شيخ عبد القادر جيلاني ﷫ به څنګه د يوولسو (11) كالو غرقه بيړۍ را اُوباسي، او د هغې دپاره ئې د ځان نه روايات جوړ كړي دي.

كله وائي: شمس التمريز بابا مُلتان كښې ورله خلقو اُور نۀ وركولو، چې ځان له پرې غوښه پخه كړي، وائي: نمر ته ئې حكم اُوكړو، چې راښكته شه، نو نمر راښكته شو، غوښه ئې ځان له پخه كړه. نو زۀ وايم: چې غوښه په نمر پخيده، نو هغه ورسره نۀ پخيدو، ولې هغه د اُوسپنې وو؟

نو چې كله الله يواځې ياد كړے شي، نو د كافرانو زړونه تنګ شي، او كله چې هغه

---

(1) [سورة الزمر: 45].

کسان یاد کړے شي چې د الله نه ماسیوا دي، نو دوي ډیر خوشحاله وي. د هر څۀ کونکے الله دے، انبیاء علیهم السلام یَو کار نۀ شي کولے، ملائک نۀ شي کولے، پیریان نۀ شي کولے. صرف الله ئې کوي.

**د الله رب العزت نبي ﷺ ته خطاب**

الله رب العزت خپل پیغمبر ته وائي: ﴿وَإِن يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا هُوَ وَإِن يُرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَادَّ لِفَضْلِهِ﴾.(1)

"کچرې اُورسوې تا لره الله څۀ تکلیف، نشته د هغې لرې کونکے مګر صرف یو الله دے، او کۀ اراده اُوکړې تا لره د خیر هیڅ څوک د الله هغه خیر واپس کولے نۀ شي".

کۀ د دُنیا تمام خلق راجمع شي، نو الله چې کومه فیصله کړې ده، هغه نۀ شي بدلولے، داسې عقیده د الله پۀ ذات جوړول غواړي.

﴿وَمِنَ الْأَحْزَابِ مَن يُنكِرُ بَعْضَهُ﴾(2)

بعضې ډلې داسې دي چې قرآن کریم مني، لیکن بعضې خبرې د قرآن کریم نۀ مني، چې هغه توحید دے، دغه وجه ده، چې نبي ﷺ ته به ئې وئیل: قرآن کښې الله فرمائي: ﴿وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ ۙ قَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا ائْتِ بِقُرْآنٍ غَيْرِ هَٰذَا أَوْ بَدِّلْهُ﴾.(3)

"کله چې اوستلے شي پۀ دوي باندې زمونږ آیاتونه واضحه واضحه، نو وائي هغه کسان چې عقیده نۀ ساتي زمونږ د ملاقات: راوړه دي قرآن لره بغیر ددې نه، یا بدل کړه دي لره". دین د چا تابع نۀ دے، دین د الله دے، او څنګه چې الله رالیږلے دے،

---

(1) [سورة یونس: 107].

(2) [سورة الرعد: 36].

(3) [سورة یونس: 15].

چې هغه شان خلقو ته بيان کړے شي.

افسوس دے! په هغه خلقو چې هغوي دين د خلقو تابع کړے، چې فلانکے حاجي صاحب به خفه شي، فلانکے مولوي صاحب به خفه شي. نا بلکه دين چې څنګه الله رالیږلے دے، هغه شان به ئې بيانوي، او که هغه شان دي بيان نهٔ کړو، نو هغې مُلا ته به د اُور واکې واچولے شي، چې هغهٔ ته د حق مسئله معلومه ده، او خلقو ته حق نهٔ وائي، د دُنيا د غرض د وجې نه، د يَو انسان د وجې نه چې دے به خفه شي.

نو نبي ﷺ فرمائي: د قيامت په ورځ به دهٔ ته د اُور واکې واچولے شي، چې ولې دي د حق بيان نهٔ وو کړے؟ تهٔ د حق بيان کوه، الله به ستا حفاظت کوي.

**د الله د طرف نه حفاظت**

الله رب العزت خپل پيغمبر ﷺ ته فرمائي: ﴿يَاأَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ وَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾.[1]

"اے زما پيغمبره! کوم حکم چې ما د آسمان نه نازل کړے دے، خبردار! دا خلقو ته صحيح صحيح بيان کړه، او که تا دا کار اُونکړو، نو تا د الله رسالت اونهٔ رسولو، تا خيانت اُوکړو، او کچرې تهٔ دا وائي: چې دا خو ټول خلق مخالفت کوي، او کهٔ رشتيا وايم نو خلق به مې مړهٔ کړي، خلق به راسره تعلقات ختم کړي" الله فرمائي: ﴿وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾

"الله به بچ کوي تا لره د خلقو نه". حق بيانوه، ستا حفاظت به الله کوي، او دغه وجه وه څو څو کرتې کافرانو د نبي ﷺ د قتل بندوبست کړے دے، ليکن الله خپل پيغمبر بچ کړے دے، په څومره غزواتو کښې نبي ﷺ شريک شوے دے، ليکن

(1) [سورة المائدة: 67].

نبي ﷺ هغې کښې شهيد شوے نۀ دے، په خپل مرګ باندې وفات شوے دے، څومره خلق د نبي ﷺ قتل پسې راغلې دے، کومه فيصله چې د الله د طرف نه ده، هغه څوک نۀ شي بدلولے، خو حق خلقو ته بيان کړه. نو بعضې خلق د الله د توحيد نه انکار کوي.

ستا آواز

ستا آواز به دا وي: ﴿قُلْ إِنَّمَا أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ اللَّهَ وَلَا أُشْرِكَ بِهِ إِلَيْهِ أَدْعُو وَإِلَيْهِ مَآبِ﴾.[1]

"ورته اُووايه! يقينًا ما ته حکم شوے دے چې يواځې د الله عبادت اُوکړم، او خلق هم دې مسئلې ته را اُوبلم، او پدې راليږلے شوے يم، چې د الله سره به هيڅ څوک نۀ شريکوم، ددې الله توحيد ته زۀ خلق رابلم، او دې الله ته زما راګرځيدل دي".

د الله د حکم مثال

يَو سړے امام پسې مونځ کوي، نو د.شريعت حکم دا دے چې تۀ به د خپل امام تابع ئې، کچرته يَو مقتدې داسې وي، چې نيت ئې د امام سره اُوتړلو، او امام له رکوع له نۀ دے تلے، او دے رکوع له د امام نه مخکښې شي، نو ددۀ مونځ نۀ کيږي، امام رکوع له لاړو، او دے ولاړ دے، نو ددۀ مونځ نۀ کيږي، او نَبي ﷺ فرمائي: کچرته يَو مقتدې کښې دا عادت وي، چې دے د امام نه مخکښې ښکته او بره کيږي، نو دا انسان دي دا خپل عادت پريدې، ګني دا يره ده، کيدے شي چې الله ددۀ د سَر نه د خَر سَر جوړ کړي.

نو چې زما او ستا حرکت د جومات د امام نه مخکښې کيږي، نو مونځ نۀ کيږي، نو د امام الانبياء محمد ﷺ د طريقې نه چې زما او ستا طريقه وړاندې کيږي، زما او ستا طريقه د نبي ﷺ د طريقې نه مخالف وي، نو زما او ستا عمل به څنګه قبول شي؟ عمل به هله قبليږي، چې هغه عمل پۀ طريقه د نبي ﷺ باندې وي، کۀ

(1) [سورة الرعد: 36].

مُهر برې د نبي ﷺ د طريقې نهٔ وي لګيدلے، نو مثال ئې د جعلي نوټ دے، او چې چا سره اُونيولے شي، نو هغهٔ ته څومره سزا ميلاوېږي؟ کهٔ ډير ښهٔ عمل اُوکړې خو ياد ساته! چې پهٔ طريقه د نبي ﷺ دې نهٔ دے کړے، نو تهٔ پرې نهٔ خلاصيږې. الله فرمائي: ﴿وَقَدِمْنَا إِلَىٰ مَا عَمِلُوا مِنْ عَمَلٍ فَجَعَلْنَاهُ هَبَاءً مَّنثُورًا﴾.[1]

"ډير اعمال به ئې کړے وي، هغې عمل ته به زهٔ متوجې شم د ګرد وغبار پهٔ شان به ئې وِالوزوم". لږ عمل اُوکړه، خو پهٔ طريقه د نبي ﷺ ئې اُوکړه.

**پهٔ هر څهٔ کښې د نبي ﷺ تابعداري**

قرآن کريم کښې الله فرمائي: ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ﴾.[2]

"پهٔ تحقيق سره شته ستاسو دپاره پهٔ باره د پيغمبر د الله کښې بهترينه نمونه".

هر څهٔ کښې د نبي ﷺ تابعدارې کوه، نبي ﷺ څنګه خوراک کړے دے هغه شان خوراک کوه، لباس ئې څنګه اچولے دے هغه شان لباس اچوه، مونځ ئې څنګه کړے دے هغه شان مونځ کوه، ګيزه مبارکه ئې څنګه وو هغه شان ګيره پريده، دا رنګه د نبي ﷺ د نور اعمال څنګه وو هغه شان خپل ټول اعمال برابر کړه، ديته اتباع د نبي ﷺ وائي. نو مسلمانانو له پکار دي چې عقيده د توحيد جوړه کړې، او عمل پهٔ طريقه د نبي ﷺ باندې اُوکړې، عقيده د توحيد او طريقه د نبي ﷺ به څنګه پيژنو؟ د هغې دپاره علاج قرآن کريم دے، نو زمونږ عقيده به د توحيد شي، او عمل به پهٔ سنت طريقه د نبي ﷺ شي. او کهٔ قرآن کريم ته نهٔ کيښنو، قرآن کريم لاسو کښې نهٔ راخلو، قرآن کريم نهٔ زده کوو، ددې دپاره محنت پکار دے، لکه څنګه

(1) [سورة الفرقان: 23].

(2) [سورة الأحزاب: 21].

چې د دُنيا دپاره محنت کوي، دغسې به د دين دپاره محنت کوي.

قال الشاعر:

نرقع دنيانا بتمزيق ديننا        فلا ديننا يبقى ولا ما نرقع[1]

يَو شاعر وائي: د دين او دُنيا مقابله راغله، نو مونږ وئيل خير دے، د دين کار به بيا اُوکړو، مونږ د دين نه ټوټې جُدا کوو، او دُنيا پرې جوړو، دُنيا پرې پوره کوو.

نۀ دين باقې پاتې شو، او نۀ دُنيا باقې شوه، دين رانه هم لاړو، او دُنيا رانه هم لاړه، د کوم مقصد دپاره چې مونږ پيدا يُو، چې هغه مقصد خپل کړو. الله رب العزت فرمائي: ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ﴾.[2]

"ما نۀ دې پيدا کړې پيريان او انسانان مګر ددې دپاره چې زما عبادت اُوکړي". مونږ او تاسو د دُنيا دپاره پيدا نۀ يُو، دين به د دُنيا نۀ تابع کوو، کله چې د دين او دُنيا مقابله راغله، د دين کار به مخکښې کوو، او د دُنيا کار به ورستو کوو، کۀ د دين کار مو پۀ دُنيا باندې مخکښې کړو، نو مونږ کښې به هم دين راشي، او ټول کلې او مُلک کښې به هم دين راشي.

او کۀ داسې نۀ وي، د دين محنت نۀ کوو، او مونږه ډير کرتې وايُو، چې الله مونږ کښې دين راولې، الله زمونږ پۀ مُلک کښې اسلامې قانون راولې، نو بغير د محنت نه اسلامې قانون نۀ راځي. الله رب العزت فرمائي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ

(1) [روح البيان تحت آية سورة الأعراف: 41].

(2) [سورة الذريات: 56].

نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ﴾.[1]

"اے مؤمنانو! خپل ځانونه او خپل اولاد د جهنم د اُور نه بچ کړئ".

ددې دپاره بله لار نشته بغير د الله د کتاب نه، چې مونږ د الله سره عهد اُوکړو، چې د الله کتاب به زده کوو، او پدې به عمل کوو، او دا به خپله زندګئ کښې راولو. الله دې د عمل کولو توفيق راکړې.

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



(1) [سورة التحريم: 6].

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

أَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ ۝ حَتَّىٰ زُرْتُمُ الْمَقَابِرَ ۝ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ۝ ثُمَّ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ۝ كَلَّا لَوْ تَعْلَمُونَ عِلْمَ الْيَقِينِ ۝ لَتَرَوُنَّ الْجَحِيمَ ...الخ

(سورة التكاثر: 1-6)

# موضوع

# دَ قبر پخول حرام دي

بتاريخ: 2007-05-11

بمقام: جلسۍ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربآني حفظه الله

# د قبر پخول حرام دي

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿أَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ * حَتَّىٰ زُرْتُمُ الْمَقَابِرَ * كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ * ثُمَّ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ * كَلَّا لَوْ تَعْلَمُونَ عِلْمَ الْيَقِينِ * لَتَرَوُنَّ الْجَحِيمَ * ثُمَّ لَتَرَوُنَّهَا عَيْنَ الْيَقِينِ * ثُمَّ لَتُسْأَلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيمِ﴾.[1]

وَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُوْرِ فَزُوْرُوْهَا فَإِنَّهَا تُزَهِّدُ فِي الدُّنْيَا وتذكر الآخِرَةَ».[2] أو كما قال رسول الله ﷺ.

قابل قدر، حاضرينو، عزتمندو، مسلمانانو رونړو! پهٔ تيره جمعه كښې د اولياء كرامو پهٔ قبرونو باندې عُرس كول، پهٔ هغې باندې ميلې متعين كول، د هغې بدعت او د هغې دپاره يَو خاص ورځ متعين كول، پهٔ هغې اجتماعات كول، جلسې او جلوسونه كول د هغې ګناهونو او د هغې پهٔ بدعاتو باندې بيان شوې وو.

(1) [سورة التكاثر: 1-8].

(2) [رواه ابن ماجة، رقم: (1571)].

نن جمعه کښې به "ان شاء الله" ددې مسئلې وضاحت کوو، چې د قبرونو ښخول څنګه دي؟ په هغې باندې چونې او رنګونه راخکل څنګه دي؟ هغې باندې ليکل کول څنګه دي؟ دا رنګه د هغې دپاسه قُبې جوړول، ددې په شريعت کښې اجازت شته او که نشته؟ دا رنګې په قبرونو باندې ډيوې بلول، شمعې بلول، دا رنګې په قبرونو باندې جهنډې اُودرول، غلافونه ورباندې اچول، ددې په شريعت کښې څۀ اجازت شته يا څۀ ګناه ده؟ ددې به "ان شاء الله" وضاحت کوو.

خو اول دا خبره چې دا قبرونو له تلل ددې مقصد څۀ دے؟ دا قبر کچه پريښودل، دا د قبر تعظيم او عزت دے، او که د قبر ښخول دا د قبر تعظيم او عزت دے؟

حقيقت دا دے! علماء کرامو ليکلې دي، احاديثو کښې رسول الله ﷺ د هغې بيان کړے دے، چې د مقبرې او د قبرونو به نهايت تعظيم کوئ؛ ځکه چې دا د مسلمانانو يَو آرام ګاه ده، د هغوي يَو مرقد دے، تردې پورې چې رسول الله ﷺ منع کړې ده، چې د قبر بے عزتې به نۀ کوئ، په قبر به ناسته نۀ کوئ، په مقبره کښې به وارۀ او لوې بول نۀ کوئ، قبر به نۀ ورانوئ. حتی الوسع د قبر عزت به کوئ، د قبر احترام به کوئ، د قبر بے عزتې به نۀ کوئ. کچرته د مقبرې او د قبر عزت دا وو، چې قبر به ښخوئ، نو د الله پيغمبر ﷺ به وئيلې وو؛ ځکه رسول الله ﷺ زمونږ او ستاسو معلّم او اُستاذ دے. په کوم کار کښې چې زمونږ خير وو، د هغې ئې مونږ ته حکم کړے دے، او په کوم کار کښې چې زمونږ او ستاسو نقصان وو، نو د هغې نه مونږ او تاسو رسول الله ﷺ منع کړې يُو.

او رسول الله ﷺ د خپل ځان نه او د خپلې رائې نه ئې هم يَو خبره نۀ ده کړې، بلکه قرآن کريم، رسول الله ﷺ تصديق کوي ﴿وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ﴾.[1]

(1) [سورة النجم: 3].

"دا پیغمبر د خپل ځان نه خبرې نۀ کوې" دا څومره خبرې چې دے تاسو ته کوې، دا د الله د طرف نه دۀ ته وحې کولے شې.
علماء کرام ذکر کوې، قرآن کریم وحې جلې ده، او احادیث وحې خفې ده، فرق صرف دومره دے، یا قرآن کریم وحې متلو ده، او احادیث وحې غیر متلو ده، د قرآن کریم الفاظ هم مُنَزَّل مِن الله دي، احکام هم مُنَزَّل من الله دې، او احادیث حکم د الله د طرف نه نازل دے، لیکن الفاظ د رسول الله دې. خو بهر حال رسول الله ﷺ مونږ او تاسو ته پورا دین رارسولے دے، یو مسئله ئې مونږ ته نۀ ده پرېخودې.
نو کچرته د قبر تعظیم او د قبر عزت لکه څنګه چې زمونږ او ستاسو ذهن کښې دے، چې دا به خرابیږي، او باران به ترې خاوره اُوړې، ددې به هر وخت څوک حفاظت کوې، دا به زما نه غلط شې، یره زۀ ددې عزت کوم؛ څکه زما پلار پۀ ما باندې ډېر زیات مهربان وو، زما مور وه او پۀ ما باندې ډېره مئینه وې، دا یَو قبر خو چې ورله پوخ کړو، خلق به راپسې خبرې کوې، نو کۀ دا د مور پلار سره احسان وي، او د هغوي میت سره احسان وي، نو د الله پیغمبره به وئیلې وو، چې ددې مړې سره احسان کوئ، قبر ورله پخوئ، او کچرې پدې کښې ثواب وے، نو د ثواب کار زۀ او تۀ داسې نۀ پیژنو څنګه چې ئې محمد عربي ﷺ پیژني. پکار دا وه چې مونږ ته نبي ﷺ فرمائیلې وے: چې دا د ثواب کار دے، تاسو ئې اُوکړئ. بلکه علماء کرام ذکر کوې: چې د قبر پخولو باندې اُلټه وخت ضائع کیږي، مال ضائع کیږي، نقصان کیږي، او فائده نۀ میلاویږي.
## د قبر پخول منع شول ولې؟
نو علماء کرام ډېر وجوهات ذکر کوې: (1) یو وجه د قبر د نۀ پخولو دا ده: چې کله دا مقبره کچه پرته ده، دا قبرونه کچه پراتۀ دي، او دغه شان پۀ هغې باندې خاورې

پرتې وي، او يَو ژوندے انسان د مقبرې ملاقات له لاړو، د قبرونو ملاقات او زيارت له لاړشي، قبر باندې تيريږي، مقبره باندې تيريږي، او دے اُوګورې دا زاړۀ زاړۀ قبرونه د ته ښكاره شي، چې دا مرګ پۀ ما باندې هم را روان دے، دا اُوګوره! دا دومره مړې دي، مقبره كښې پراتۀ دې، پۀ منونو منونو خاورې پرې پرتې دې، هغه خلق چې هغوي به دنيا كښې د ځان نه نوک باندې خاورې سندلې، نن د خاورو مينځ كښې پراتۀ دي، او ځان نه شي خلاصولے، دا ورځ به ما باندې هم راځي، هغه ته به هم مرګ يادېږي، هغۀ ته به هم آخرت يادېږي، چې د قبرونو د زيارت مقصد هم دغه وو؛ ځکه نبي ﷺ پۀ ابتداء د اسلام كښې منع كړې وه، حکم ئې فرمائيلے وو، چې تاسو به د مقبرو او د قبرونو زيارت له نۀ ځئ.

افسوس پكار دے! زمونږ خلق زيارت څۀ ته وائي؟ چې يَو قبر پوخ شوے وي، او بيا پۀ هغې باندې جهنډې اُودرولے شوې وي، ګُنبد پرې جوړ کړے شوے وي، نو وائي: دا د فلانكي زيارت دے، خو ديته پۀ عربئ كښې يا پۀ احاديثو كښې زيارت نۀ وائي. دغې قبر پخولو تۀ خو "تجصيص القبر" وائي. دا رنګې دغه قبر باندې ګُنبد جوړولو ته خو "قُبَه" وائي. نو اصل كښې زيارت مقبرې ته تلل او د قبرونو ملاقات ته زيارت وائي. او هر قبر ته چې ځې، نو هغې ته زيارت وائي. يَو قبر پورې خاص كول لكه زمونږ د خلقو دا جهالت دے، چې وائي: نبي ﷺ فرمائي: چې د قبر زيارت كوئ، او دے مونږ منع كوې.

نو نبي ﷺ دغه شان د قبر زيارت نۀ دے ياد كړے لكه تاسو چې كوئ، چې يَو خاص قبر له ځئ، يا يَو خاص مقبرې ته ځئ، نا نا! بلكه د خپل كلي مقبرې ته ورشه، د خپل ګاونډ مقبرې ته ورشه، تا ته به آخرت ياد شي، ددې مقصد دپاره ئې وئيلې وو.

احادیث مبارکه

رسول الله ﷺ فرمائیلي وو: نبي ﷺ فرمائي: «كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُورِ فَزُورُوهَا فَإِنَّهَا تُزَهِّدُ فِي الدُّنْيَا وَتُذَكِّرُ الْآخِرَةَ».(1)

"ما تاسو د قبرونو د زيارتونو نه منع کړي وئ، تاسو ته ما حکم کړے وو، چې د قبرونو زيارت له مه ځئ ملاقات له مه ځئ".

**ددې وجه څۀ ده؟**

نو علماء كرام ذكر كوي، چې دا هغه ابتدائي دُور وو، چې هر چا به قبر ته سجدې کولې، د کعبې نه به خلقو حاجات غوښتل، بوتانو نه به خلقو حاجات غوښتل، د قبرونو نه به ئې حاجات غوښتل، لات، منات او عُزّی نه به خلقو حاجات غوښتل، په عقیدو کښې شرک زيات وو، بدعات او رسومات زيات وو، نو نبي ﷺ حکم کړے وو، چې قبر خوا ته به نۀ ځئ، هسې نۀ چې تاسو قبر خوا ته لاړ شئ، او قبر ته سجده اُونکړئ، هسې نه چې تاسو قبر له لاړ شئ، او امداد ترې اُونغواړئ، قبر والا ته ژړا او فرياد اُونکړئ. لکه نن دُور کښې چې دا بعضې مشرکان کوي، هلته خو دے ددې مقصد دپاره نۀ ځي چې مونږ ته مرګ ياد شي، قبر له ځي او ددې مقصد دپاره ځي چې د چا اولاد نۀ وي، هغه دَربو له غوټې ورکړي، او د هغۀ اولاد پيدا شي. دا د دوي يَو سوچ دے چې دوه دَربه اُوتړه او هغې له غوټې ورکړه، نو بس ستا اولاد به پيدا کيږي. او يَو درګاه ئې د هغې دپاره خاص کړې وي، او څوک وائي: چې فلانکې ځائے ته چې لاړ شې او د هغې قبر کانړي را واخلې، او په خپل بدن ئې راخکې، نو ستا نه به باد لرې شي، او په کوم ځائے چې باد وي، هغه به ختم شي، د فلانکې قبر تيل چې په ځان باندې راخکې نو ستا نه به بيمارې، تکليف او خارښ بالکل ختم شي، او د توردهيرې ميان کلې بابا د

(1) أرواه ابن ماجة، رقم: (1571)].

قبر نه خاوره راوړه، او په خپله دانه باندې ئې واچوه ستا دانه به روغه شي.

دا د مشرکانو عقیدې هغه وخت کښې هم وې، او اُوس هم د مشرکانو دغه عقیدې دي. نو ددې عقیدو نه د بندولو دپاره رسول الله ﷺ منع اُوکړه، چې اے زما صحابو! کورئ د قبرونو زيارت ته مه ځئ، د قبرونو زيارت له پدې نسبت باندې مه ځئ. کله چې اسلام مضبوط شو، د صحابه کرامو عقيدې مضبوطې شوې، نو بيا خو قبر ته تلُو کښې ثواب څکه وو؛ چې آخرت ياديدو، او نبي ﷺ اوفرمائيل: چې ما خو تاسو منع کړې وئ، چې مه ځئ خو اوس ستاسو عقيده مضبوطه شوه نو «فَزُورُوهَا» "ځئ اوس د قبرونو زيارت کوئ" اوس د قبرونو ملاقات له ځئ.

**مقبرې ته د تلُو مقصد**

مقبرې ته د تللو مقصد څۀ دے؟ نو زمونږ او ستاسو شريعت وجه هم ښودلې ده، او مقصد ئې هم ښودلے دے «فَإِنَّهَا تُزَهِّدُ فِي الدُّنْيَا وَتُذَكِّرُ الْآخِرَةَ» د قبر ملاقات او زيارت ددې دپاره کوئ چې ددې سره د دنيا سره محبت کميږي، او آخرت سړي ته ياديږي، نو چې قبر له ځې نو دا مقصد به وي چې ستا دا ذهن داسې جوړ شې، چې ما باندې هم مرګ را روان دے، او دا هر څۀ فناه کيدونکي دې، او کوم مړې چې مقبره کښې دفن دې، د هغوي دپاره دعا اُوغواړه، تمامو مړو دپاره دعا اُوغواړه چې الله دې درباندې دا تکليف آسان کړې، او الله دې درله قبرونه منور کړې، په شرعي طريقې باندې سلام اُوکړه: «السَّلَامُ عَلَيْكُمْ يَا أَهْلَ الْقُبُورِ يَغْفِرُ اللهُ لَنَا وَلَكُمْ أَنْتُمْ سَلَفُنَا وَنَحْنُ بِالْأَثَرِ».[1]

"اے قبرونو والو! په تاسو دې سلام وي، تاسو زمونږ نه مخکښې راغلې يئ، مونږ درپسې را روان يُو". ددې دا مطلب دے.

(1) [رواه الترمذي، رقم: (1053)].

سوال

بعضې جاهلان خلق وائي: چې مړې نۀ اورې، نو دا سلام پرې بيا خلق ولې اچوي چې «السَّلَامُ عَلَيْكُمْ يَا أَهْلَ الْقُبُورِ...إلخ»؟

جواب

دا خلق نۀ پوهيږي، دا جاهلان خلق دي، نۀ پوهيږي، چې سلام پۀ څو معانو باندې مستعمل دے؟ هر ځائے کښې سلام پۀ دغه يَوه معنى نۀ دے، چې سلام "التحيه" دے، بلکه سلام پۀ ډيرو معانو باندې راځي، دلته علماء کرام ذکر کوي: چې دا سلام بمعنى "دعاء" سره دے. «السَّلَامُ عَلَيْكُمْ يَا أَهْلَ الْقُبُورِ...إلخ».

"اے قبرونو والو! پۀ تاسو دې سلام وي، د الله د طرف نه دې پۀ تاسو رحمتونه را وربرېږي، سلامتيا دې وي ستاسو دپاره د عذاب نه". دا د سلام مقصد دے، چې هغوي ته يَو دعا دے، او خپل ځان ته مرګ مخې ته کول دي، چې «أَنْتُمْ سَلَفُنَا وَنَحْنُ بِالْأَثَرِ». "تاسو زمونږ نه مخکښې دې قبر ته راغلې يئ، او مونږ دريسې را روان يُو". «يَغْفِرُ اللهُ لَنَا وَلَكُمْ» "الله دې مونږ او تاسو ته بخښنه اُوکړي". دا د سلام مقصد دے. دا نۀ چې کني هغوي سلام اورې، او کچرې هغوي سلام اَورې نو هغوي خو پۀ مقبره کښې مړې پراتۀ دي، پۀ منُونُو منُونُو خاورې پرې پرتې دي، سلام کونکې چې سلام اچوې نو څنګه سلام اچوې؟ چې د هغه خوا کښې بل کس هم نۀ اَورې، هغۀ خو چغې نۀ وهي، پۀ دغه مقبره کښې مړې خو درکنار د خاورو د لاندې خو درکنار، کۀ يَو ژوندے انسان سملوې، او پدې مقبره باندې خلق تيريږي، او څنګه سلام چې دوي اچوې نو هغۀ ژوندے انسان به ئې هم نۀ اورې، نو سوچ پکار دے، ددې مقصد دا نۀ دے چې دا مړې ستاسو دغه آواز اَورې، بلکه د هغې مقصد دا دے: چې تۀ پۀ مقبره باندې تيريږې نو دۀ ته به دعا اُوکړې، او ځان ته به مرګ مخې ته کړې، او دغه سلام بمعنى

"دعا" دے. او ډيرو علماء کرامو ليکلي دي: چې دا په معنی د "دعا" دے.

بهر حال د قبرونو ملاقات د څۀ دپاره جائز دے؟ چې تاته آخرت يادېږي، نو چې قبر پوخ شوے دے، چې قبر سميټې شوے دے، او يَو سړے مقبرې باندې تيرېږي، نو بيا خو هغه وائي: اُوګوره! څومره مزيدار قبر ئې پوخ کړے دے؟ د هغۀ نه خو مرګ هير شي، هغه خو د قبر په تماشه شي. وائي: اُوګوره! څومره مزيدار قبر ئې جوړ کړے دے، نو دا حکمت فوت شو. ددې وجې نه يو شاعر وائي: کله چې يَو مسلمان اوښيار بنده مقبرې باندې تيرېږي، نو د هغۀ دپاره يَو سوچ راځي، دا قبر هغه ته يَو آواز کوي په زبان حال سره، (يَو زبان قال دے، او يَو زبان حال دے) چغې ورته نۀ وهي، خو د هغه موجوده حالاتو نه يَو آواز اُوچتيږي، يَو سوچ او فکر اُوچتيږي، هغه دا دے:

جَمَعُوا الْكُنُوْزَ لِاَنْفُسِهِمْ فَتَرَكُوْهَا كَمَا هِيَ اِلاَّ قُبُوْرًا دَارِسَةً فِيْهَا عِظَامٌ بَالِيَةٌ

ترجمه: دا نن چې تاته مقبرو کښې ښکارې دا هغه خلق وو، چې ځان دپاره ئې خزانې جمع کړې وې، ځان دپاره ئې مال دولت جمع کړے وو، هغه ټولې خزانې، مال او دولت د هغوي نه دُنيا کښې پاتې شو، خالي لاسونه دلته راغلل.

صرف او صرف زاړۀ قبرونه وو، ميلاؤ شول، پدې قبرونو کښې د هغوي زاړۀ زاړۀ هډوکې پراتۀ دي، بس نور هيڅ نشته.

## د سيدنا عثمان بن عفان ﷺ حالت

او دغه وجه ده، چې سيدنا عثمان بن عفان ﷺ به کله د مقبرې په خوا تيريدو نو «بَكَى حَتَّى يَبُلَّ لِحْيَتَهُ» "دومره به ئې اوژړل چې د هغۀ ګيره مبارکه به ټوله په اوښکو باندې لونده شوه" چا ورته اووئيل: دا ولې؟ ګوره! نبي ﷺ د جنت تذکرې کوې، تۀ دومره نۀ ژاړې، د جهنم تذکرې کوې تۀ دومره نۀ ژاړې لوې لوې نصيحتونه وعظونه

کړي دومره نه ژاړي، او چې کله ته د خاورو پدې ډيرې باندې تيريږې نو دومره ژاړې چې ستا توله ګيره لونده شي، دا ولې؟ هغه ورته وائي: چې ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلې دي، چې رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: «إِنَّ القَبْرَ أَوَّلُ مَنْزِلٍ مِنْ مَنَازِلِ الآخِرَةِ» "قبر د آخرت په منزلونو کښې اولنے منزل دے، اولنۍ پوړۍ ده، اَولنۍ منزل را روان دے".[1]

کوم انسان چې پدې رومبني منزل او رومبني امتحان کښې کامياب شو، هميشه دپاره وروستني امتحاناتو کښې به کامياب وي، او کوم انسان چې پدې رومبني منزل کښې فيل شو، نو ما بعد ددې نه هم سخت ورته روان دي، نو ماسره غم دے چې دا رومبنے مقام به ده خنګه پاس کوم، دا به آسان وي او که دا به ګران وي؟

دا د قبرونو د زيارت مقصد وو، چې تاسو مقبرې ته لاړ شئ، چې تاسو ته مرګ ياد شي، چې تاسو مقبرې ته لاړ شئ، چې مړي ته دعا اُوکړئ، او تاسو ته آخرت درياد شي، او د دُنيا سره محبت ختم شي.

ليکن کله چې قبر پوخ شوے وي، نو دغه زيارت نه دغه مقصد نۀ حاصليږي، بلکه پۀ هغې باندې پۀ مختلفو طريقو سره اشعار ليکلي شوي وي، پۀ هغې باندې تاريخ پيدائش او تاريخ وفات ليکلے وي، او لوې لوې قصې پرې ليکلي شوي وي، بيا د هغې نه عبرت نۀ حاصليږي، قبر ئې خنګه پوخ کړے دے؟ بيا خو دا خبرې وي، چا پرې شالونه اچولي وي، نو د قبر د زيارت چې کوم مقصد دے نو هغه ختميږي.

**(2) دويمه وجه د قبر د نۀ پخولو**

چې پدې کښې تضييع د اموالو ده، مالونو ضائع کيږي، ولې؟ ځکه پدې قبر پخولو باندې مړي ته د ذرې برابر فائده هم نۀ رسي، هان! که مړي وصيت کړے دے، نو نقصان

---

[1] [رواه الترمذي، رقم: (2308)].

ورته رسي، يَو داسې انسان دے چې هغه وفات کيږي، او هغه وائي: چې زما قبر به پخوئ، زما قبر به کچه نهٔ پريدوئ، نو دغه مړي ته به نقصان رسي، چې تا پهٔ خپل ژوند د الله د پيغمبر ﷺ د سنتو خلاف وصيت کولو، چې تا وئيلي وو: چې زما قبر پوخ کړئ.

او کچرې مړي وصيت نهٔ دے کړے، بغير د هغهٔ د وصيت نه وارثان وائي: چې يره دا خلق به خاندې چې د خپل رشته دار قبر ئې پوخ نهٔ کړو، د خپل ميّت قبر ئې پوخ نهٔ کړو، نو د شرم د وجې نه دے د هغهٔ قبر پخول غواړي، نو دا ياد ساتئ! چې دغه مړے خو د ځان نه خبر نهٔ دے، دا چې کوم پخونکي وارثان دي دا گناهگار دي؛ ځکه هغه بندول او منع کول نهٔ شي کولے. مال دې اُولګيدو، مړي ته فائده ونهٔ رسيده، بلکه تا هسې مال ضائع کړو، او نقصان کښې واقع شوې.

**اُوس فائده به کله ميلاويږي؟**

نو فائده به هغه وخت ميلاويږي چې پدې قبر خومره پيسې لګيدلې، دا پيسې تا غريبانانو له ورکړے وے، مسکينانو، يتيمانانو له دې ورکړې وے، عالم له دې وربانديې کتابونه راوړې وے، چې دا کوره او خلقو ته ئې وايه، او دغه شان تا چې پهٔ قبر باندې کومې پيسې لګولې، چې پدې باندې دې جومات له قرآن مجيدونه راوړې وو، يا دې د جومات پهٔ آبادۍ کښې خرچ کړې وے، يا يَو لار کوهې کښې دې لګولې وے، نو صدقه جاريه وه، چې خومره پورې چې ترې خلقو فائده اغسته نو ستا مړي ته به ثواب رسيدو. خو مونږ وايُو: چې زمونږ دې هم ثواب ونهٔ شي، او زمونږ د مړي دې هم ثواب ونهٔ شي، خو چې زمونږ نوم اُوشي، پهٔ ژوند باندې پرې يَو روپۍ نهٔ لګوو، ډاکټر له ئې نهٔ بوځو، بوډۍ مور او بوډا پلار ئې وي خدمت ئې نهٔ کوې، تنګ ئې پرې چې کله به مړهٔ کيږي؟ او چې مړهٔ شي نو پهٔ مړونې بيا د هغهٔ عزت کوې، قبر ورله پخوې، نو دا خو تهٔ د الله د رضا دپاره نهٔ کوې، دا خو تهٔ د نُوم او د رِيا دپاره کوې.

سوچ کوئ عزتمندو! مال ضائع شي، خرج شي، لیکن مړي ته ذرا فائده حاصله نهٔ شوه، ذرا ثوا ب پخونکي ته میلاؤ نهٔ شو، د مړي څهٔ حق ئې اداء نهٔ کړو. بلکه پکار خو دا وه چې د هغهٔ د مونځونو او د روژو حساب ئې لګولے وے، او د هغې فدیه ئې ورکړے وے.

نو بهر حال د دغې وجې نه قبرونه پخول ناجائز دي، پکار دا دي، چې مسلمانان رونړه هغوي د خپلو رشته دارانو قبرونه نهٔ پخوي، اوسه پورې څوک د مسئلې نه خبرو نهٔ وو، قبرونه ئې پاخهٔ کړې، نو هغوي دې د دې خپل عمل نه توبه اوباسي.

ان شاء الله! ورستو به تاسو واورئ د کتابونو د حوالو سره، چې علماء کرام لیکي چې کوم قبر پوخ شوے وي، پهٔ ناپوهئ سره او سړے د مسئلې نه خبر شو، نو واجب دې چې هغه وران کړې، هغه دې واپس اُونړئ، او کچه دې پریدې او چې چا نهٔ دې پاخهٔ کړې او پهٔ زړهٔ کښې دا اراده ده، چې مونږ قبرونه پخوؤ، نو قبرونه مهٔ پخوئ.

**(3) دریم وجه د قبر نهٔ پخولو**

بل حکمت د قبرونو نهٔ پخولو کښې دا دے، چې کله قبر نهٔ شي پخیدلے، نو چې یَو پیړئ تیره شي، او مقبره ډکه شي، او نور ځائے نهٔ میلاویږي، نو علماء کرام ذکر کوې چې مقبره آواره کړئ، او بیا پکښې مړي دفن کوئ، او چې د بل مړي هډوکي پکښې راووتل، نو هغه یَو ګټ کښې کیدوه، او مړے ورسره پهٔ قبر کښې دفن کړه، نو چې تاسو پاخهٔ قبرونه جوړ کړې دې، نو دا خو تر قیام قیامته پورې نهٔ ورانیږي، نو پدې کښې به بل مړے څنګه دفن کوئ؟ نو دا حکمت دے. پکار دا دې چې د نن نه بعد څوک قبر څوخ نهٔ کړې.

او کوم انسان چې نیک عمله وي، نو ددهٔ قبر کچه پریدوه، کهٔ دے ځناورو خوړلے وي، او ددهٔ بدن توتې شوے وي، نو هغهٔ ته چې به الله کوم اجر او خوشحالي

ورکوي هغه به ورته میلاویږي، که په اُور باندې اوسوزولے شي او اِیره اِیره شي، نو هم عالم برزخ کښې به هغهٔ ته خوشحالي میلاویږي، چې نیک عمله انسان وي، یا سمندر کښې ډوب شي، او مهیان ئې وخوري، نو هم به ورته د نیکو اعمالو بدله میلاویږي.

او چې بدعمله انسان وي، او قبر کښې ترې نه ښهٔ مضبوط پالنګونه تاؤ کړي، په قبر کښې ورله ښکلې ګل کاریانې اُوکړې، د دننه نه ئې هم ښهٔ مزیدار جوړ کړي، بهر نه ئې هم ښهٔ مزیدار جوړ کړي، خو یاد ساته! پدې نهٔ خلاصیږي، هغه به په خپل عمل خلاصیږي. سوچ کول غواړې. نبي ﷺ فرمائیلي وو: «إِنَّمَا القَبْرُ رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الجَنَّةِ أَوْ حُفْرَةٌ مِنْ حُفَرِ النَّارِ».[1]

نبي ﷺ فرمائیلي وو: "چې دا د خاورو ډیرے چې دے، دا د جنت د باغیچو نه یَو باغیچه ده، یا د جهنم د کندو نه یَوه کنده ده".

نیک عمله انسان دي قبر ته دننه کړو، قبر د هغهٔ دپاره د جنت باغیچه جوړ شوه، د هغهٔ د نظر لګیدو پورې د هغهٔ دپاره قبر کهولاؤ شي، د جنت کهړکۍ کهولاؤ شي، د جنت تولا یانې ورته لاندې واچولے شي، که ظاهرې د هغهٔ قبر کچه ښکارې لیکن دننه د هغهٔ قبر ډیر منوّر دے، ډیر مزیدار دے، د جنت کهړکۍ ورته کهولاؤ وي.

«أَوْ حُفْرَةٌ مِنْ حُفَرِ النَّارِ» "یا د جنهم د کندو نه یَوه کنده ده". که ظاهرې د هغهٔ په قبر سنګ مرمر اولګې، ښکلې ښکلې کانړې پرې اولګې، ټائیلونه اولګې، ډیر تاوان اُوکړې، رنګونه ورکړې، لیکن په هغهٔ باندې لاندې اُور بلیږي. نو هغهٔ ته څهٔ فائده رسیږي پدې پخولو؟ سوچ کول غواړې. هان! بلکه یَو نقصان دې اُوکړو، هغه دا چې کله د هغهٔ په قبر باندې شنې اُونې بوټې ولاړ وي، نو علماء کرام ذکر کوې دغه شنې

(1) [رواه الترمذي، رقم: (2460)].

اُوني بوټي د الله تسبيح وائي، او دا هغه مړي ته ثواب رسيږي.

**د سيدنا جابر رضي الله عنه روايت**

صحيح مسلم کښې روايت دے، مشکوٰة او ترمذي هم ذکر کړے دے. د سيدنا جابر رضي الله عنه نه روايت دے، صحيح حديث دے: «نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُجَصَّصَ الْقَبْرُ، وَأَنْ يُقْعَدَ عَلَيْهِ، وَأَنْ يُبْنَى عَلَيْهِ».[1]

"نبي ﷺ منع کړې ده چې قبر پوخ کړے شي، او دا چې په قبر باندې ناسته اُوکړے شي، او دا چې په قبر باندې آبادے اُوکړے شي". نو قبر به نهٔ پخيے او نهٔ به چونې ورکوي، او نهٔ به پرې ګنبدونه جوړوي، او نهٔ به په قبر باندې ناسته کوي.

بعضې خلق مقبرو ته لاړ شي، نو په قبر باندې د پاسه کړځي، نو دا د قبر بے عزتي ده. نبي ﷺ ترې منع کړې ده، نو داسې به نهٔ کوئ. دا ګناه ده. بعضې خلق پکښې خرې پريدي، نو هغه د قبرونو دپاسه ګرځي، نو ددې داسې مثال دے، چې د يو ژوندي انسان دپاسه خرې ګرځي. الله دې زمونږ او ستاسو په حال رحم اُوکړي، يو طرف ته خو مونږ دا وايُو: چې مونږ د قبر تعظيم کوو غير شرعي تعظيم چې هغه پخوو، او بل طرف ته زما او ستا مقبره کښې څهٔ حال شروع دے؟ جوارې مقبره کښې کيږي، زناکانې مقبره کښې کيږي، غلاګانې د مقبرو د اُونو نه کيږي، خوشې خاروې په مقبره کښې ګرځي، خاوره د مقبرې د زمکې نه پټيږي، مونږ وايُو: مونږ د قبر تعظيم کوو، دا د قبر تعظيم دے؟ او کهٔ دا د قبر نه غلا ده؟ دا خو مونږ خپل خواهش پسې روان يُو، خپل رسم او رواج پسې روان يُو.

پکار خو دا وه چې د مقبرې په خوا کښې تيريدے چې نهايت په عاجزئ او

---

[1] [رواه مسلم، رقم: (970)].

انکسارئ او د ژړا په حالت کښې تیریدے، چې داسې حال ما باندې هم را روان دے. لیکن نن چې څومره غلط کارونه دي، هغه زمونږ او ستاسو مقبرو کښې کیږي، ددې دپاره یو کُمیټې پکار وي، چې د کلي د مقبرې نه ګیر چاپیره کندتار یا دیوال تاؤ کړي، او د هغې دپاره یو کس اُوساتي، چې د هغې حفاظت کوي، چې د مقبرې اُونې څوک نه اُوړي، دا وقف شے دے، دا د بل چا دپاره حرام دي. بعضې وخت کښې زنانه لا ړې شي، او په قبر باندې خاورې اچوي، رونړوا دا مسئله زده کړئ، ورستو کیدے شي زۀ وضاحت اُوکړم، خو مسائل ډیر شي نو بعضي وخت کښې د سړي د ذهن نه خبره اُوځي.

**د قبر شرعي مقدار**

شرعي قبر یَو لیشت، بس دا شرعي قبر دے. او علماء کرامو تردې پورې لیکلي دي، چې د قبر نه څومره خاوره راوتلې ده، هغه واپس په قبر باندې واچوه، بس نوره سیوائي خاوره په قبرو نو باندې مۀ اچوئ.

نو بعضې نارینه چې هغه د کور د طرف نۀ مجبوره وي، یا زنانه ناپوهه او سادګانې هغوي به لا ړې شي، او مقبرو کښې به خاورې راخلي، او هغه د قبرونو د پاسه اچوي، چې هغه یَو لیشت نه څو څو لیشتهٔ ئې بره کړې. دا منع دي. او بل د مقبرې ټوله زمکه خرابه شي، صبا دپاره هغې ځائے کښې کنده جوړه شوې وي، څوک خپل مړې هغې کښې نۀ دفن کوي، دا څومره نقصان کیږي؟ د وقف زمکې. پدې کښې ثواب نۀ میلاویږي پدې کښې ګناه ده، خو دا خلق نۀ پوهیږي، دومره ده، قبر وران شو، اُوبو یَوړو، خراب شو، نو هغه جوړ کړه خیر دے. خو لیکن جوړ قبر باندې تۀ بیا خاورې دوباره اَړوې، هر کال نوې نوې خاورې پرې دوباره اچوې، مقبره خرابوې، کندې پکښې جوړوې، دا چا وئیلي دي؟ دا صریح خلاف دے د پیغمبر ﷺ د طریقې نه.

نو حدیث کښې راغلي وو، چې نبي ﷺ منع کړې ده د قبر د پخولو نه، او منع ئې

کړې ده، چې پهٔ قبر باندې به آبادے نهٔ کوئ، او پهٔ قبر باندې به ناسته نهٔ کوئ، اُوس کهٔ پدې کښې خير وے او فائدې پکښې وے نو نبي ﷺ به منع نهٔ وه کړې؛ ځکه مونږ پهٔ خپل ځان باندې دومره مهربان او مئين نهٔ يُو، لکه څومره چې پيغمبر ﷺ زمونږ پهٔ ځانونو باندې مئين دے. قرآن کريم کښې الله فرمائي: ﴿النَّبِيُّ أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنفُسِهِمْ﴾.[1]

"جناب محمد رسول الله ﷺ پهٔ مؤمنانو باندې د مؤمنانو د نفسونو نه زيات مهربانه دے". اے مؤمنانو! تاسو خپل ځان باندې دومره مئين نهٔ يئ، تاسو خپل ځان باندې دومره نهٔ خفه کيږئ، لکه څومره چې محمد عربي ﷺ پهٔ تاسو خفه کيږي. ليکن افسوس پکار دے!!! هغه پيغمبر چې هغه نهايت ښځپل اُمت باندې مئين دے، د خپل مور او پلار نه پهٔ خپل اُمت باندې زيات مئين دے، نن د هغه پيغمبر خلاف مونږ ته ادو څهٔ کار نهٔ ښکارې.

## أقوال الفقهاء بمنع تجصيص القبور والأمر بهدمها

### (1) امام نووي رحمه الله ليکلي دي

"وَأَمَّا الْبِنَاءُ عَلَيْهِ فَإِنْ كَانَ فِي مِلْكِ الْبَانِي فَمَكْرُوهٌ وَإِنْ كَانَ فِي مَقْبَرَةٍ مُسَبَّلَةٍ فَحَرَامٌ نَصَّ عَلَيْهِ الشَّافِعِيُّ".[2]

"پهٔ قبر باندې آبادے کول کهٔ دا د باني او جوړونکي پهٔ ملک کښې وي، (او د هغهٔ خپله زمکه وي او خپل ځائے کښې قبر جوړ کړے وي)، نو مکروه دې، شريعت منع کړې ده نهٔ به کوې، او کهٔ يَو عامه مقبره کښې وي او پهٔ هغې کښې دفن مړې او پهٔ هغې کښې دے قبر ښځوې او هغې کښې د قبر دپاسه آبادي کوې نو دا حرام دے.

(1) [سورة الأحزاب: 6].

(2) [شرح المسلم للنووي: 27/7، طبع دار إحياء التراث العربي - بيروت].

امام شافعي رحمه الله پدې باندې تنصيص کړے دے". يعنې امام شافعي رحمه الله دا مسئله په صراحت سره بيان کړې ده، چې دا حرام دې، حرامو ته نزدې دې.عام موقوفه مقبره ده، او تا پکښې ځان له ځائے راتينګ کړے دے قبر دې پوخ کړے دے، او دپاسه دې پرې آبادے کوې.

او بيا فرمائي: "قَالَ الشَّافِعِيُّ فِي الْأُمِّ وَرَأَيْتُ الْأَئِمَّةَ بِمَكَّةَ يَأْمُرُونَ بِهَدْمِ مَا يُبْنَى وَيُؤَيِّدُ الْهَدَمَ قَوْلُهُ وَلَا قَبْرًا مُشْرِفًا إِلَّا سَوَّيْتَهُ".[1]

"امام شافعي رحمه الله په کتاب الأُم کښې فرمائي (دا د امام شافعي رحمه الله مشهور کتاب دے): چې ما د مکې مکرمې امامان او بادشاهان ليدلې وو، چې هغوي به حکم کولو، چې دا قبرونه چې پخ شوې دې او آبادې پرې دپاسه شوې دې، دا واپس اونړوئ، او دا خبره صحيح ده؛ ځکه چې وائي: نبي عليه السلام خپل د ترهٔ زوې ليږلے وو، پدې چې کوم قبر اُوچت دے نو د نورو قبرونو سره ئې برابر کړه".

**(2) امام محمد رحمه الله ليکلي دي**

"وَلَا نَرَى أَنْ يُزَادَ عَلَى مَا خَرَجَ مِنْهُ، وَنَكْرَهُ أَنْ يُجَصَّصَ أَوْ يُطَيَّنَ، ... إلى أن قال...: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ «نَهَى عَنْ تَرْبِيعِ الْقُبُورِ وَتَجْصِيصِهَا» قَالَ مُحَمَّدٌ: وَبِهِ نَأْخُذُ، وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله تعالى".[2]

"دا زمونږ رائے نهٔ ده، دا مونږ جائز نهٔ ګڼړو، چې د قبر نه کومه خاوره راوتې ده، چې د هغې نه زياته خاوره پهٔ قبر باندې ورواچوئ؛ بس چې کومه خاوره راوتې ده، هغه به پهٔ قبر باندې واچوې، دارنګې قبر باندې به نورې ختې متې نهٔ اچوې" تردې پورې چې امام محمد رحمه الله وئيلې دې: "چې نبي عليه السلام منع کړې ده د څلور کټه قبر جوړولو نه".

---

(1) [شرح المسلم للنووي: 27/7، طبع دار إحياء التراث العربي - بيروت].

(2) [كتاب الآثار لمحمد بن الحسن الشيباني 1: 266، طبع دار النوادر].

بعضې خلق کۀ د خاورو نه ئې هم جوړوي، نو هغه داسې طریقې سره جوړ کړې، چې خلور کُته غوندې ئې جوړ کړې.

**قبر سُنّي**

قبر سُنّي، یعني پۀ سنت طریقې سره قبر دا دے چې "وَیُسَنَّمُ الْقَبرُ" یعنې د اُوښ د شا پشان به قبر جوړولے شي، لکه چې مینځ ئې لږ اوچت او دواړه طرفونه خکته وي. مربّع او خلور کُته قبر به نۀ شي جوړولے، او دارنګې قبر به پخولے نشي. امام محمد  فرمائي: "دا زمونږ قول دے، او پدې باندې د امام ابو حنیفه  هم رائے ده". نو مونږ چې د چا پۀ مذهب یُو، هغه هم وائي: چې قبرونه پخول ناروا دي.

**(3) امام حلبي الحنفي  لیکي**

د هغۀ کتاب دے "کبیري" هغې کنبې لیکي: "وَیَکْرَهُ تَجْصِیْصُ الْقُبُوْرِ... وَبه قَالَتِ الْأَئِمَّةُ الثَّلَاثَةُ... إِلی أَنْ قَالَ....: عَنْ أَبِي حَنِیفَةَ: یُکْرَهُ أَنْ یَبْنِيَ عَلَیْهِ بِنَاءً مِنْ بَیْتٍ أَوْ قُبَّة أَوْ نَحْوِ ذَلِكَ، لِمَا مَرَّ مِنَ الْحَدِیْثِ آنِفًا".[1]

**ترجمه وتشریح:** امام حلبي  فرمائي: چې د قبر پخول، دارنګې پۀ قبر باندې خاورې اچول، او ختې پرې اچول، او لیوَخل ئې دا مکروه دې، پدې باندې ائمه ثلاثه قول کړے دے، ... او بیا وائي: امام ابو حنیفه  تردې پورې وئیلې دي، چې پۀ قبر باندې آبادے کول، کوټه جوړول، یا دغه شان قُبّه جوړول، دارنګې نور د هغې پۀ شکل باندې آبادے کول دا مکروه دي، دا به پۀ قبرونو باندې نشي جوړیدے.

**(4) امام قاضي خان الحنفي  لیکي**

دا مشهور عالم دے، دے وائي: "وَلَا یُجَصَّصُ الْقَبْرُ لِمَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ

(1) اکبیري شرح منیة المصلي: 599].

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ نَهٰى عَنْ تَجْصِيْصٍ وَتَقْضِيْضٍ وَعَنِ الْبِنَاءِ فَوْقَ الْقَبْرِ". [1]

ترجمه وتشريح: قبر به نهٔ شي ښکولے؛ ځکه نبي ﷺ منع کړې ده، د قبر د ښکولو نه، او د الله پيغمبر منع کړې ده چې قبر له به د سپينوزرو اُوبهٔ نهٔ ورکوئ، د سروزرو اُوبهٔ به نهٔ ورکوئ، پهٔ قبر به آبادے نهٔ کوئ؛ ځکه دې سره د قبر هغه حکمت ختميږي، بيا خو به خلق د هغې تماشي کوي.

## (5) حافظ ابن الهُمام الحنفي رحمه الله ليکلي دي

"أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ تَرْبِيعِ الْقُبُورِ وَتَجْصِيصِهَا". [2]

ترجمه: چې نبي ﷺ منع کړې ده چې څلور کنجه قبر به نهٔ جوړوئ، او منع ئې کړې ده چې قبر باندې به چونه نهٔ لګوئ، او قبر به نهٔ ښکوئ.

تنبيه: دا د احنافو معتمد عالم دے.

## (6) فتاوی عالمګيري کښې ئې ليکلي دي

(دا هغه فتاوی ده، چې د درې سوه (300) علماؤ پهٔ اتفاق ليکلے شوې ده، د عالمګير بادشاه پهٔ دور کښې) هغه وائي: "وَيُسَنَّمُ الْقَبْرُ قَدْرَ الشِّبْرِ، وَلَا يُرَبَّعُ، وَلَا يُجَصَّصُ، وَيُكْرَهُ أَنْ يُبْنَى عَلَى الْقَبْرِ". [3]

ترجمه: وائي: قبر به د اُوښ کوهان پشان جوړولے شي، او د زمکې نه به د يَو ليشت پهٔ اندازه باندې اوچتولے شي، زيات به نهٔ شي اوچتولے، پهٔ قبر باندې به چونه نهٔ شي اچولے، ښکولے به نهٔ شي، او مکروه دي چې پهٔ قبر باندې دې آبادے اُوکړے شي.

---

(1) [فتاوی قاضي خان: 92/1].

(2) [فتح القدير: 472/4].

(3) [فتاوی عالمګيري: 176/1].

**(7) علامه ابن العابدين الحنفي رحمه الله ليكلي دي**

"وَأَمَّا الْبِنَاءُ عَلَيْهِ فَلَمْ أَرَ مَنْ اخْتَارَ جَوَازَهُ".[1]

**ترجمه:** په قبر باندې آبادے وائي تر اُوسه ورې ما څوک نهٔ دې ليدلې، چې ديته ئې بنهٔ وئيلې وي.

**حکم:** نو په قبر باندې آبادے کول مکروه تحريمي دې.

نو پکار دا دې چې مونږ په قبرونو باندې آبادې نهٔ کوو، او قبرونه نهٔ پخوو.

**(8) قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله ليکلي دي**

(مشهور عالم دے، چا چې تفسير مظهري لکلے دے، المتوفى: 1225هجري) د هغهٔ کتاب دے فارسي کښې "ما لا بُدّ منه" کښې لکي: "آنچه بر قبور اولياء عمارتهائے رفيع بنا مى کنند، وچراغان روشن مى کنند، وازيں قبيل هر چه مى کنند حرام است".[2]

**ترجمه وتشريح:** وائي: کوم چې د اولياء کرامو په قبرونو باندې لوې لوې آبادې کولے شي، او دارنګې د اولياء کرامو په قبرونو باندې ډيوې بلوے شي، رنړا ګانې کولے شي، يا نور چې ددې پشان کوم منکرات کولے شي، نو دا ټول حرام دې. دغه شان په قبر باندې آبادے کول، قُبّې پرې جوړول.

علماء کرام ذکر کوې: او حديث پاک کښې هم راځي، د صحيح مسلم روايت دے: چې سيدنا علي رضي الله عنه يو خپل شاګرد ليږلے وو (سيدنا ابو الهيّاج اسدي رحمه الله) او هغهٔ ته ئې وئيلې وو: «أَلَا أَبْعَثُكَ عَلَى مَا بَعَثَنِي عَلَيْهِ رَسُولُ اللهِ ﷺ؟ أَنْ لَا تَدَعَ تِمْثَالًا إِلَّا طَمَسْتَهُ وَلَا قَبْرًا مُشْرِفًا إِلَّا سَوَّيْتَهُ».[3]

---

(1) [الشامي: 101/1].

(2) [ما لا بُدّ منه: 95].

(3) [رواه مسلم، رقم: (969)].

ترجمه وتشريح: اے ابو الحياج! په داسې يَو ډيوټۍ باندې تا نه مقرر ووم، او په داسې يَو کار تا نۀ ليږم چې رسول الله ﷺ زۀ په هغې باندې ليږلے ووم؟ يعنې دا کار سيدنا علي ﷺ هم د نبي ﷺ په حکم باندې کړے وو، او بيا ئې خپل شاګرد هم پدې کار باندې مقرر کړے وو، او دا خبره ئې ورته کړې وه، چې چرته يَو تصوير مۀ کوره مګر هغه روانوه، چې کوم ځائے کښې درله د جاندار شي تصوير مخې له راځي نو هغۀ ختموه، (نن خو مونږ چې څۀ تصويران مومو، نو هغه راوړو، او کور کښې ئې لګوو، حالانکه دا صريح د رسول الله ﷺ د حديث خلاف دې، چې نبي ﷺ په تصوير جوړونکي لعنت وئيلے دے، او څوک ئې چې کور ته راوړې، نو نبي ﷺ فرمائي: دغه کور ته د رحمت ملائکې نۀ دننه کيږي).

او دويم: «وَلَا قَبْرًا مُشْرِفًا إِلَّا سَوَّيْتَهُ» "او چې کوم ځائے کښې تاته يَو قبر د نورو قبرونو نه اوچت ښکارې هغۀ د نورو قبرونو سره برابر وه".

نن اُوګوره! قبرونه څومره اوچت اوچت دې، يَو ځائے کښې ما يَو قبر ليدلے وو، ډير زيات اُوګد وو، وائي: دا شل ګزے بابا دے، شل ګزه قبر (لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ) دا څومره اِسراف دے، چې بابا به دوه ګزه نۀ وي، او زمکه ئې شل ګزه را بنده کړې ده.

نو بهر حال نبي ﷺ خپل د ترۀ زوې پدې ډيوټۍ باندې ليږلے وو، او هغۀ بيا ابو الحياج اسدي ﷺ ليږلے وو. نو معلومه دا شوه چې کوم قبر خلاف شرع جوړ وي، د هغې وړانول او د نورو قبرونو سره برابرول پکار دي. په بل ځا ئې څۀ له وړانوې نۀ ئې وارث ئې تا جوړ کړے دے، نو يځبله ئې برابر کړه. د «سَوَّيْتَهُ» معنى علماء کرام کوي: "چې د نورو قبرونو سره ئې برابر کړه".

(9) امام ابن حجر مكي الشافعي ﷫ ليكلي دي

"وَتَجِبُ الْمُبَادَرَةُ لِهَدْمِهَا وَهَدْمِ الْقِبَابِ الَّتِي عَلَى الْقُبُورِ". [1]

**ترجمه:** واجب دي، چې داسې قبرونه وران شي، او هغه آبادے چې په هغې باندې شوے وي. دا واجب دې خلقو باندې، مسلمانانو باندې، اسلامي حکومت باندې. ما او تا باندې خو څکه نۀ دې واجب؛ کۀ ما او تا څو نو شر پيدا کيږي، وائي: چې زما د رشته دار د قبر بے عزتي دې کړې ده، قبر ئې وران کړے دے، چې د چا په لاس کښې زور وي، هغوي له دا پکار دې چې دا ختم کړي.

(10) مُلّا علي القاري الحنفي ﷫ ليكلي دي

"وَيَجِبُ الْهَدْمُ وَإِنْ كَانَ مَسْجِدًا". [2]

**ترجمه:** د هغې ورانول واجب دي اگر کۀ جومات ولې نۀ وي.

**مسئله**

علماء کرام مسئله ذکر کوي، چې مقبره کښې به جومات نۀ جوړوئ، او په جومات کښې به مړي نۀ دفن کوئ، کۀ چرې مړې مخکښې دفن وي، او جومات ورستو جوړ شوے وي، نو دا جومات به نړوئ، او کۀ چرې جومات مخکښې جوړ شوے دے، او مړې ورستو دفن وي، او نو دغه مړې به اوباسئ، او د جومات نه به ئې لرې کوئ.

هان! کۀ وَس او طاقت دې نۀ رسيږي، نو ددغه قبرونو نه به ديوال تاؤ کړې چې کوم چا کوم چا دفن کړې دي. لکه پخوا به ډير سادګان داسې وو، چې چا به ځائے وقف کړے وو، يا به امام وو په جومات کښې، نو هغۀ به بل خوا نۀ اوړل، په جومات کښې به ئې دفن کول، ليکن سوچ کول غواړې، چې مقبره وي، نو د جومات نه او د

---

(1) [الزواجر: 163].

(2) [مرقات المفاتيح شرح مشكاة المصابيح: 372/2].

خپلې ځمکې نه په وقف مقبره کښې مړې ښخول زیات ثواب دے، په وقف ځائے کښې چې کوم ثواب میلاویږي نو هغه په خپل ځائے کښې نۀ میلاویږي، او کۀ په جومات کښې دفن کړې نو ثواب نۀ میلاویږي، بلکه ګناه ده. خو کۀ اُوس وقف مقبره نۀ میلاویږي، نشته دے، یا ډکه ده، نو بیا خیر دے کۀ خپل ځائے کښې مړې ښخوئ، خو په جومات کښې به ئې بیا هم نۀ ښخوئ.

تنبیه: یو ځائے کښې جومات کښې قبرونه جوړ دي، او شر پیدا کیږي، نو علماء کرام ذکر کوي، د هغې قبرونو نه به دیوال تاؤ کړئ، او د جومات دا احاطې نه به ئې جدا کړئ، خو کۀ یو قبر باندې چا جومات جوړ کړے دے، نو دا جومات به ورانوئ.

**(11) علامه آلوسي الحنفي ؒ لیکلي دي**

"ثُمَّ إِجْمَاعًا فَإِنَّ أَعْظَمَ الْمُحَرَّمَاتِ وَأَسْبَابَ الشِّرْكِ الصَّلَاةُ عِنْدَهَا وَاتِّخَاذُهَا مَسَاجِدًا أَوْ بِنَاؤُهَا عَلَيْهَا، وَتَجِبُ الْمُبَادَرَةُ لِهَدْمِهَا وَهَدْمِ الْقِبَابِ الَّتِيْ عَلَى الْقُبُوْرِ إِذْ هِيَ أَضَرُّ مِنْ مَسْجِدِ الضِّرَارِ؛ لِأَنَّهَا أُسِّسَتْ عَلٰى مَعْصِيَةِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".[1]

ترجمه وتشریح: بیا د تمامو علماؤ په اتفاق سره د تمام علماؤ په اجماع سره، په تمامو محرماتو کښې لوې حرام دا دي چې د قبر په خوا کښې جومات جوړ شي، او په هغې جومات کښې هغې جومات کښې هغې قبر ته خلق سجدې لکوي. بیا وائي: دا رنګې جومات جوړول یا په هغې باندې نُور آبادے کول واجب دي چې تلوار باندې سرے لاړ شي، او هغۀ وران کړې، هغۀ قُبّې چې د قبرونو دپاسه آبادے شوے دے، د هغې ورانول هم پکار دي، هغۀ جومات چې په قبر باندې جوړ وي، د هغې ورانول هم پکار دي.بیا وائي: ځکه دغه جومات چې په قبر باندې آباد شوے دے، دغه جومات

(1) [تفسیر روح المعاني: 15/96-97].

د مسجد ضرار نه زيات نقصاني دے، مسجد ضرار هغه جومات وو چې منافقانو د نبي ﷺ په خلاف کنبې جوړ کړے وو، او دا ئې ووئيل وو: "چې مونږ به پدې د نبي ﷺ خلاف مشورې کوو". په ظاهر خو به خلق وائي چې دے مونځ کوي خو مونږ به د نبي ﷺ خلاف مشورې کوو، او خلق به ترې نۀ بدظنه کوو.

نو نبي ﷺ چې خبر شو، الله ورته اوفرمائيل: ﴿لَا تَقُمْ فِيهِ أَبَدًا﴾.[1]

"زما پيغمبره په دې جومات کنبې هميشه دپاره مۀ اُودريږه". هغه جومات چې د هغې بنياد په تقوىٰ باندې کيخودلے شوے دے، په هغې کنبې به اُودريږې (مسجد تقوىٰ).

نبي ﷺ چې خبر شو، (اُوکده واقعه ده)، نو صحابه کرام ئې اُوليږل او ورته ئې اووئيل: "چې هغه جومات اُوسوزوئ"، جوړ شوے جومات ووم خو چې ځکه نيت خراب وو، د نبي ﷺ مقابله کنبې جوړ شوے وو، نو مسجد ضرار وو.صحابه کرامو هغه اُوسوزولوم او وُران ئې کړو، ټوټې ټوټې ئې کړو، نو چې څنګه هغه مسجد ضرار وُرانَول واجب وو، دغه شان دا هم مسجد ضرار دے؛ ځکه هغه هم د نبي ﷺ مقابله کنبې وو، او دا هم د دين اسلام مقابله کنبې جوړيږي، د مشرکانو دپاره يَو بندرګاه جوړيږي، د هغوي دپاره يَو مورچه جوړيږي، نو داسې جومات چې په قبر باندې يا د قبر دپاره جوړيږي د هغې وُروانَول واجب دي.

او بيا ئې ليکلي دي، (امام آلوسي ډيرې اُوچتې اُوچتې خبرې کړې دي، خو افسوس دا دے چې زمونږ وَس کنبې نشته، لږ شان زُور غواړي) "وَتَجِبُ إِزَالَةُ كُلِّ قِنْدِيلٍ أَوْ سِرَاجٍ عَلَىٰ قَبْرٍ وَلَا يَصِحُّ وَقْفُهُ وَلَا نَذْرُهُ".[2]

"واجب دې چې کومې شمعې کومې ډيوې خلقو راوړې دي، ددغې ممتو دغې

---

[1] [سورة التوبة: 108].

[2] [تفسير روح المعاني: 16/96-97].

شمعو وقف کول جائز نهٔ دي، دا رنګې د هغې نذر او منخته کول صحیح نهٔ دي".

## (12) علامه ابن القيم الحنبلي ؒ ليکلي دي

د امام احمد بن حنبل ؒ مقلّد دے، هغه ذکر کوي: "لَا يَحِلُّ إِبْقَاؤُهَا فِي الْإِسْلَامِ، وَيَجِبُ هَدْمُهَا"[1].

"پهٔ اسلام کښې ددې باقي پرېښودل حلال نهٔ دي، بلکه ددې وَرانول واجب دي".

بعض جاهلان خلق امام ابن تيميه ؒ او ابن القيم ؒ پسې ردې بدې وائي، او پهٔ هغوي باندې اِلزامات لګوي، چې دا مُجسّمه وو.

دا ياد وُساتئ!!! دا ډېر زيات بهترين علماء تېر شوي دي. د مُلّا علي القاري ؒ کتاب دے ("مرقات" چې دا د مشکاة المصابيح شرح ده)، د هغه بل کتاب دے (جمعُ الوسائل) هغې کښې ليکي: "أَنَّهُمَا كَانَا مِنْ أَكَابِرِ أَهْلِ السُّنَّةِ وَالْجَمَاعَةِ، وَمِنْ أَوْلِيَاءِ هَذِهِ الْأُمَّةِ"[2].

ترجمه: "علامه ابن تيميه او علامه ابن القيم ؒ دواړه د اکابرينو د اهل السنة والجماعة نهٔ دي، او د دې اُمت د هغې لويو اولياؤ نه دي". نو هغوي وائي: چې دا شے ناجائز دے.

نو د بيان مقصد دا وو چې د قبر ښخول منع دي. او کومو خلقو چې ښخ کړې دي، پکار دا دي چې هغوي دي د خپلو رشته دارانو قبرونه واپس اُونړوي، واپس دي کچه کړي، او چې چا نهٔ دي پاخهٔ کړي، او زړهٔ کښې ئې د ښخولو اراده وي، توبه دي اُوباسي او قبر دي نهٔ ښخوي، او هغه پيسې دي جومات کښې ورکړي، يا دي يَو فقير او غريب له ورکړي، هغه مړي ته به ئې ثواب رسيږي.

دا رنګې پهٔ قبرونو باندې څادرې اچول، ګل دارې څادرې پرې اچول، شالونه پرې

---

(1) [زاد المعاد: 28/3].

(2) [جمع الوسائل: 208/1].

غوړول، جهنډې درباندې اُودرول، دا ټول کارونه بدعات دې. هيڅ ثواب پرې مرې ته نهٔ رسيږي، هسې مال ضائع کول دي، او ځان په ګناه کښې راوستل دي، پکار دا دې چې څنګه حکم مونږ ته پيغمبر ﷺ کړے دے، په هغې باندې مونږه عمل اُوکړو، دغسې مقبرې پاتې کړو. ان شاء الله دا به زمونږ دپاره ډيره د خير وي. الله رب العزت دي د صحيح عمل کولو توفيق را نصيب کړي، او الله دي زمونږ او ستاسو عقيده د قرآن او د سنت جوړه کړي، او الله دي زمونږ او ستاسو خواهشات د خپل دين تابع کړي، پکار دا ده چې په هرحال کښې مونږ د الله او د الله د پيغمبر ﷺ تابع شو.

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



بسم الله الرحمن الرحيم

فَإِذَا دَخَلْتُم بُيُوتًا فَسَلِّمُوا عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ تَحِيَّةً مِّنْ عِندِ اللَّهِ مُبَارَكَةً طَيِّبَةً

(سورة النور: 61)

# موضوع

# سلام اچول سنت دي

بتاريخ: 2008-10-17

بمقام: جلسۍ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# سلام اچول سنت دي

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْه وَنَعُوْذُ بالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسنا وَمِنْ سيِّآت أَعْمَالنَا، وَنَعُوْذُ بالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسنا وَمِنْ سيِّآت أَعْمَالنَا، وَنَعُوْذُ بالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسنا وَمِنْ سيِّآت أَعْمَالنَا، مَنْ يَّهْده اللهُ فَلَا مُضلَّ لَهُ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَه، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهُ وَلَا آخرَ لَهُ لَا ضِدَّ لَهُ وَلَا نِدَّ لَهُ وَلَا مُمِدَّ لَهُ وَلَا بَشِيْرَ لَهُ وَلَا نَذِيْرَ لَهُ وَلَا وَزِيْرَ لَهُ وَلَا مُشِيْرَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْه وَعَلٰى آله وَأَصْحَابه وَسَلَّمَ عَبْدَهُ وَرَسُوْلَهُ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ الله الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا وَتُسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهَا ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ﴾.[1]

وقال تعالى: ﴿فَإِذَا دَخَلْتُمْ بُيُوتًا فَسَلِّمُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ تَحِيَّةً مِنْ عِنْدِ اللَّهِ مُبَارَكَةً طَيِّبَةً﴾.[2]

﴿وَإِذَا حُيِّيتُمْ بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ حَسِيبًا﴾.[3]

وَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «لَا تَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّى تُؤْمِنُوا، وَلَا تُؤْمِنُوا حَتَّى تَحَابُّوا، أَوَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى شَيْءٍ إِذَا فَعَلْتُمُوهُ تَحَابَبْتُمْ؟ أَفْشُوا السَّلَامَ بَيْنَكُمْ».[4] (أو كما قال رسول الله ﷺ).

حاضرينو عزت مندو! مسلمانانو رونړو، ما چې کوم آیاتونه مبارکه تلاوت کړل، او حدیث د نبي ﷺ مې ذکر کړو، په دې کښې مسلمانانو ته الله رب العزت او

---

(1) [سورة النور: 27].

(2) [سورة النور: 61].

(3) [سورة النساء: 86].

(4) [رواه مسلم، رقم: (54)، واللفظ له، وأبو داود، رقم: (5193)، وابن ماجة، رقم: (68، و3692)].

دارنګه حدیث کښې رسول الله ﷺ د سلام د اچولو ترغیب ورکوي، دا د اسلام نخه ده او د مسلمان شعار دے، د یَو مسلمان ؤرور پهٔ بل مسلمان باندې حق دے، چې یَو مسلمان د بل مسلمان سره مخامخ شي، نو یَو بل باندې به اسلام اچوي، د اسلام نه مخکښې د دورِ جاهلیت او دغه شان د یهودو او نصارٰو هم خپلې طریقې وي یَو بل سره به چې میلاؤ شول.

کله نه چې اسلام راغے، نو د اسلام تحیّه، پیشکشي او ډالۍ د مسلمانانو یَو بل ته "اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَکَاتُهٗ" دے.

د یهودو به هم سلام وو، یهودو به یَو بل باندې سلام اچولو "عِشْ أَلْفَ نُوْرُوْزٍ" "زر کاله ژوندے اوسیږه"، دا به د هغوي سلام وو.

د اسلام نه مخکښې به هم عربو یَو بل باندې سلامونه اچول سحر کښې به ئې وئیل "أَنْعِمْ صَبَاحًا" "صباء دې ښهٔ شه"، او د ماسپخین نه پس به چې میلاؤ شول د غرمې نه وُرستو، نو ووئیل به ئې: "أَنْعِمْ مَسَاءً" "مازیګرے دې ښهٔ شه"، نو هم د هغوي داسې جملې وې چې د ملاقات پهٔ وخت به ئې یَو بل ته ووئیلې.

اسلام چې راغے او مونږ ته ئې پهٔ اسلامې طریقې سره دا اُوخودل چې تاسو یَو بل سره میلاویږئ نو "اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَکَاتُهٗ" وایئ.

د عربو یَو بل ته تحیّه، پیشکشي دا هم وه چې "حَیَّاكَ اللهُ" "الله دې ژوندے ساته"، دا هم ښهٔ خبره وه، خو چونکه بعض ژوند داسې وي چې پهٔ هغې باندې انسان تنګ او پریشانه وي، دا خؤ ټهیک ده چې الله دې ژوندے ساته، خو څهٔ پته لګي هغه ژوند باندې تنګ وي، او داسې ډیر خلق دي، چې هغوي پهٔ خپل مرګ باندې ددې ژوند نهٔ خوشحاله وي، هغوي وائي: چې مونږ مړهٔ وے، نو دا به ښهٔ وے، کله ئې پهٔ زړهٔ باندې داسې آرمان راشي، چې هغه نهٔ پوره کیږي، نو بیا هغه د مرګ سوال کوي.

لکه امام آلوسي رحمه الله په "روح المعاني" کښې ذکر کړي دي، او دغه شان نورو علماؤ هم ذکر کړي دي، هغه يَو سړے په لار باندې روان وو، غوښې ته ئې زړهٔ اُوشو، انتهائي غريب او فقير وو، د غوښې اغستو وَس او طاقت ئې نهٔ وو، چې ځان له ئې غوښه اغستې وه، نو اشعار ئې ووئيل، نو يَو شعر پکښې دا هم وو:

أَلاَ مَوْتٌ يُبَاعُ فَأَشْتَرِيهِ ... فَهَذَا العَيْشُ مَا لاَ خَيْرَ فِيهِ

ترجمه: مرګ نشته چې خرڅيږي او ځان له ئې په پيسو باندې واخلم، او مړهٔ شم، ځو دا داسې ژوند دے چې هيڅ خير پکښې نشته.

أَلاَ مَوْتٌ لَذِيذُ الطُّعْمِ يَأْتِيْ ... يُخَلِّصُنِيْ مِنَ الْمَوْتِ الْكَرِيْهِ

ترجمه: داسې يَو خوږ غوندې مرګ نشته، چې په ما باندې راشي او مړهٔ شم، چې ددې بے کاره ژوند نه خلاص شم.

دا څهٔ ژوند دے چې ټول د اَرمانونو د تکليفونو مصيبتونو دے. نو ډير کرتې انسان په خپل ژوند باندې پريشانه وي، نو د اسلام پيشکشي ډيره ښکلې ده، چې "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ"، سلام د الله نوم دے، دعا ده، "سلامتيا دې وي، خير دې وي، برکتونه دې وي په تاسو باندې د الله"، نو دا د مسلمانانو اسلامي طريقه ده، اسلامي شعار دے.

**د سلام فضيلت**

يَو حديث پاک کښې راځي چې عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه فرمائي: چې يَو سړے راغے، او د نبي عليه السلام نه ئې تپوس کولو، نبي عليه السلام ته وائي: «أَيُّ الإِسْلاَمِ خَيْرٌ؟» "د الله پيغمبره په اسلام کښې کومه يَوه طريقه بهتره ده؟" کوم يَو کار ډير غوره دے؛ څکه اسلام کښې خو ډير اعمال دي، ډير افعال دي، يَو پدې کښې غوره کار کوم يَو دے؟ نو نبي عليه السلام ورته اوفرمائيل: «تُطْعِمُ الطَّعَامَ، وَتَقْرَأُ السَّلاَمَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَمْ

تَعْرِفْ» "د اسلام په کارونو کښې د ټولو نه بهترین کار غوره کار یو دا دے: چې خلقو له ډوډۍ ورکوه، خلقو له طعام ورکوه، دا د مسلمان نخه ده، او د یو بل سره همدردې ده".[1]

نبي ﷺ فرمائي: «مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ».[2]

"د چا چې په الله او په ورځ د آخرت باندې ایمان وي، نو د خپل میلمه عزت دې کوي، اکرام دې کوي".

نو معنی څه ده چې طعام ورکوئ؟ بعض خلق داسې وي چې پیسې به ورکوي خو وائي: ډوډۍ ته نه وي تیار، وائي: خیر دے پیسې رانه واخله، هوټل کښې پرې اُوخوره، خو زه نه شم درکولے، ډوډۍ ورکولو سره محبت سیوا کیږي، پیسو سره محبت نه سیوا کیږي.

نو معنی په اسلام کښې بهترین عمل دا دے، چې طعام ورکوه، ډوډۍ ورکوه، دا مطلب نه دے چې چرګان او ګډان حلال کړه، څه چې دې وَس کیږي نو د وَس مطابق خلقو باندې خُوَروه.

دویم: «وَتَقْرَأُ السَّلَامَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ»، او دویم غوره عمل دا دے "چې سلام وایه په هغه چا چې ته ئې پیژنې، او په هغه چا هم وایه چې ته ئې نه پیژنې، که پیژنې هغه ته هم سلام کوه، او که نه ئې پیژنې هغه ته هم سلام کوه"، دا نه ده چې یو سړي سره دې ګپ شپ دے په هغه باندې سلام اچوه، او چې یو سړے نه پیژنې نو پریده، دا خو زه نه پیژنم، دا څوک دے؟ هر څوک چې مخې له درځې، نو په هغه باندې به سلام اچوې.

او سلام به هم داسې کوئ چې "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ"، "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ" هم جائز دے، خو "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ" بیا ډیر غوره دے، قرآن

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (12، و28، و6236)، ومسلم، رقم: (39)، وأبو داود، رقم: (5194)].

(2) [رواه البخاري، رقم: (6135، و6138)، ومسلم، رقم: (48)، والترمذي، رقم: (2500)، وأبو داود، رقم: (5154)].

كريم كښې الله پاک فرمائي: ﴿وَإِذَا حُيِّيتُم بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا﴾[1] کښې ډېر توجيهات دي، خو عام مفسرين توجيه کوي او معنیٰ کوي: "کله چې تا ته يو سړي سلام اُوکړو چې "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ" نو ته ورته اُووايه جواب ورله ورکړه "وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ" يو تکے پرې سيوا کړه، او که هغهٔ درته اُووائي چې "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ" نو ته ورته اُووايه: "وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ"".

او علماء کرام ذکر کوي چې د "وَبَرَكَاتُهُ" نهٔ مخکښې مهٔ ځه، اګر چې بعضې رواياتو کښې ورسره "وَمَغْفِرَتُه" شته خو ضعيف روايت دے. نو بهترين جواب ورکړئ. اکثر چې مونږ او تاسو يو بل سره ميلاؤ شو، نو اول خو سلام نهٔ کوو، بلکه "خير راغلے وے" وايُو، "خير راغلے وے" څهٔ شے ئې؟ د الله بنده "خير راغلے" خو دي اُووې خو د سلام ثواب خو ميلاؤ نهٔ شو کنهٔ.

**تنبيه**

دا خبره کوري ياد اُوساتئ! او ذهن کښې کيدوئ، چې د ډيرو خلقو دا عادت دے، چې ته پهٔ هغهٔ باندې سلام اُوکړې، او وائې: "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ" نو هغه به درته "خير راغلې پهٔ خير" وائي، دا د هغهٔ جواب وي، کله به وائي: "خير راغلئ جي"، بس.

علماء کرام ذکر کوي چې سلام اچول سنت دي، او د سلام جواب ورکول واجب دي، او د سلام جواب "پهٔ خير راغلے" نهٔ دے، د سلام جواب "وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ" دے، واجب دے اُوبائيلل هسې "خير راغلے" دي اُوې ثواب ميلاؤ نهٔ شو. او چې ډير دي زړهٔ صبر نهٔ کوې، نو "وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ" اُووايه، او ددې نه ورستو "خير راغلے" اُووايه، خو اول به "وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ" وائي.

[1] [سورة النساء: 86].

او الله دي رحم اُوکړي! دي زميندارو ته چې اُووائي: چې چرته تلے وي؟ نو وائي: فلانکي ته خَچارې له تلے ووم. دا نهٔ وائي چې فلانکي له سلام له تلے ووم. دا خچارے خو د هندوانو طريقه وه، نو دا زميندار چې د يَو بل پهٔ خوا تيريږي نو وائي: فلانکيه! خَچارې، نو هغه ورته د هغه ځائے نهٔ آواز اُوکړي "خير راغلې بخير راغلې"، نو کچرې داسې ئې وئيلې وے چې فلانکيه! "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ" او هغهٔ ورته وئيلې وے چې "وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ" نو څومره خوند به ئې کړے وو. سنت طريقه به هم ژوندئ شوې وه، او ثواب به ثواب شوے وو. دا طريقې د خپلو ځانونو نهٔ ختمې کړئ.

نو چې کله يَو سړے پيشکشې درکړي نو د هغې بهتر جواب ورکړه، ﴿أَوْ رُدُّوهَا﴾ کهٔ داسې بهتر جواب نهٔ شې ورکولے نو کم ازکم د هغې پشان خو واپس کړه. او چې هغه درته اُووائي: "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ" نو تهٔ ورته اُووايه: "وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ"، او چې ستا خُلهٔ دومره ناراسته ده چې تهٔ ورته اُووائي: "وَعَلَيْكُمْ"، نو دا خو دي د هغهٔ د هغې نه هم کم راوستو، او چې هغه درته اُووائي: "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ"، او تهٔ ورته وائي: "وَعَلَيْكُمُ السَّامُ" هغهٔ درته دُعا اُوکړه، او تا ورته خِيرې اُوکړې، ولې داسې کوې؟ "سَام" خو مرګ ته وائي، ﴿فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا﴾ دغه مطلب دے چې بهترين جواب ورکړئ، خائسته جواب ورکړئ. نو سلام دا سنت طريقه ده، چې مسلمانان د يَو بل سره ميلاويږي چې يَو بل باندې سلام اچوي. ددې وجې نه ګوره يَو حديث پاک کښې راځي، د برَّا بن عازب ﷺ نه روايت دے، وائي: «أَمَرَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعٍ: بِعِيَادَةِ المَرِيضِ، وَاتِّبَاعِ الجَنَائِزِ، وَتَشْمِيتِ العَاطِسِ، وَنَصْرِ الضَّعِيفِ، وَعَوْنِ

المَظْلُومِ، وَإِفْشَاءِ السَّلَامِ، وَإِبْرَارِ المُقْسِمِ».[1]

**ترجمه وتشريح:** د الله پيغمبر ﷺ مونږ ته حکم کړے وو په اُووۀ (7) خبرو باندې، (1) يو «بِعِيَادَةِ المَرِيضِ» چې يَو سړے بيمار شي، مريض شو نو د هغۀ تپوس له ځئ، بيمار پرسئ له ځئ.

**آداب او طريقه د عيادت د مريض**

د مريض د تپوس طريقه به دا وي، چې مريض له لاړې، خواکښې ورسره کينه، بيمار ته وايه، ځنکه ئې؟ سنت طريقه دا ده: چې ورسره کيناسې نو لاس پرې کيدوه، او اُووايه: «لاَ بَأْسَ، طَهُورٌ إِنْ شَاءَ اللهُ».[2]

"پرواه نشته دا بيمارې تا لره د ګناهونو نه پاکونکې ده، دې سره به ستا ګناهونه کم شي".

بيا د مريض دپاره دُعا اُوغواړه، دا به نۀ کوئ چې مريض خوا ته لاړ شئ، او تۀ ورته وائې: چې تۀ خو ختم ئې، او سَم تَپ شوې، او سَم زِيړ شوې، هغه هسې هم ختم وو، او نور به هم خراب شي د غمونو نه، تۀ به ورته وائې: ان شاء الله اُوس ښۀ شوے ئې، الله به دې ښۀ کړې، او الله به صحت درکړي، ستا نه ضعيف خلق بيماران شوې دي، او ستا نه ناکاره مرضونو باندې بيماران شوې دي، او الله جوړ کړي دي، تا به هم الله جوړ کړي، داسې د هغۀ لره طمع پيدا کړئ، «فَنَفِّسُوا لَهُ فِي أَجَلِهِ».[3] د هغۀ په نيته کښې هغۀ له لږ غوندې کولاؤ والے راولئ، چې سړيه! الله به درته صحت درکړي، الله به درنه ډير د دين کار واخلي، ددې دپاره چې هغه سړے لږ غوندې خوشحاله

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (6235)].

(2) [رواه البخاري، رقم: (3616، و5656، و5662)].

(3) [رواه الترمذي، رقم: (2087)].

شي. ګني ستا په تپوس باندې نهٔ د هغهٔ مرض کمېږي، او نهٔ ترې نه هغه مرض لرې کېږي، او نهٔ هغه ښهٔ کېږي، الله به هغه په خپل وخت باندې ښهٔ کوي، او چې الله ورته څهٔ مقرر کړې وي، هغه به ورته رسيږي، خو چونکه د هغهٔ به لږ غوندې طبعيت خوشحاله شي.

او بيا چې مريض سره کيناستې، نو د خپل مزاج خبرې مهٔ کوه، د مريض د مزاج خبرې کوه. بعضې خلق داسې وي چې مريض د هغهٔ په راتلو باندې سُتومانه وي، چې دے به اُوس ددې ځائے نهٔ څهٔ وخت بَهر کيږي، هغهٔ ته تکليف وي، او د اُوږدِ ګپ او قيصې شروع کړې وي. او بعضې خلق چې لاړ شې نو سړي کره به کور مريض پروت وي، او دے به ورته هم ميلمه شي، يا به چاياني څکې، يا به ډوډۍ ګانې خُورې، نو د چائے او د ډوډۍ په وخت کښې چا له تپوس له مهٔ ځه. او بل دا چې مريض خو اکثر په کور کښې وي، نو دومره مهٔ حصاريږه، بس مختصر الفاظو کښې تپوس اُوکړه، او بيا را وُځه، دا سنت طريقه ده.

او نبي ﷺ فرمائي: ”څوک چې سحر د مريض تپوس له لاړ شي نو تر ماښامه پورې ورله اَويا زره (70000) فرشتې د مغفرت دُعاګانې غواړي، او چې ماښام لاړ شي نو تر سحره پورې ورله اَويا زره (70000) فرشې د مغفرت دُعاګانې غواړي“.[1] نو د مريض تپوس ډير ثواب دے خو چې په صحيح طريقه باندې وي.

نو يَو «بِعِيَادَةِ المَرِيضِ» مونږ ته نبي ﷺ حکم کړے وو چې تاسو د مريض بيمار پرسۍ له ځئ.

(2) دويم «واتِّبَاعِ الجَنَائِزِ» ”جنازې پسې تلل مونږ ته نبي ﷺ د دې حکم کړے وو“.

---

(1) [رواه الترمذي، رقم: (2922)].

مونږ خو وايو: دا فلانکے زمونږ د محلې دے، مونږ ئې پيژنو نو جنازې له ځو، او فلانکے زمونږ د محلې نۀ دے، مونږ ئې نۀ پيژنو، نو مونږ ئې جنازې له نه ځو، دا پۀ تعارف باندې نۀ ده، بلکه دا يَو شفاعت دے د چا دپاره چې دې اُوکړو نو فرشتې به ئې ستا دپاره کوې، د هر چا جنازې له ځه، چې وَس دې کيږي، او جنازه هم فرض ده، خو دا فرض کفايه ده، چې د محلې نه يَو تن لاړ شي، نو د تولو غاړه خلاصيږي، خو کۀ تول لاړ شي نو ډيره بهتره ده. نو جنازې پسې تلل مونږ ته نبي ﷺ د دې حکم کړے وو.

(3) دريم «وَتَشْمِيتِ العَاطِسِ» "يو پرنجې والا له اَنترُشکې والا ته جواب ورکول". کله چې يَو سړے اَنترُوشے اُوکړي، نو هغۀ له جواب ورکول. خو څنګه جواب به ورکوې؟ نو کله چې يَو سړے اَنترُوشے اُوکړي، نو هغه به وائي: چې "اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ".[1]

نو څوک ئې چې واوري هغه به ورته وائي: "يَرْحَمُكَ اللهُ".[2]

"الله دې پۀ تا باندې رحم اُوکړي"، نو هغۀ به واپس تا ته جواب درکوي "يَهْدِيكُمُ اللهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ".[3]

"الله دې تاسو ته هدايت اُوکړي، او الله دې ستاسو حالت ښۀ کړي". خو مونږ پدې باندې څۀ پوهيږو مونږ خو چې اَنترُوشے اُوکړو، نو پته نۀ لګي چې د خُلې نه څۀ څۀ اُوځي؟

او چې اَنتروشے دې اُوکړو، نو "اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ" اُووايه، کۀ هغه ځائے کښې څوک موجود وي، هغه به تاته وائي: "يَرْحَمُکَ اللهُ"، او کۀ څوک موجود نۀ وي، نو فرشتې به درته اُووائي: چې "يَرْحَمُکَ اللهُ"، هغوي به تاته داسې جواب درکوي.

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (6224)].

(2) [رواه البخاري، رقم: (6224)].

(3) [رواه البخاري، رقم: (6224)، والترمذي، رقم: (2739، و2741)، وأبو داود، رقم: (5033، و5038)].

نو نبي ﷺ مونږ ته فرمائيلي دي: چې تا سو به اَنترُوشې والا ته جواب ورکوئ، پۀ "يَرْحَمُکَ اللهُ" سره.

(4) څلورم «وَنَصْرِ الضَّعِيفِ» "د کمزورې امداد. کوئ، د ضعيف امداد کوئ". بوډا دے، کمزورے دے، نو د هغۀ مدد کوئ، دا نه چې کمزورې سره زياتے کوه، د هغۀ پورې توقې او مَسخرې کوه، کندې او نالو ته ئې غُورځوه، نۀ داسې به نۀ کوئ، د کمزورې امداد کوه.

(5) پنځم «وَعَوْنِ الْمَظْلُومِ» مونږ ته نبي ﷺ حکم کړے وو، چې پۀ يَو سړي باندې ظلم کيږي، نو هغۀ سره به امداد کوئ، د مظلوم امداد کوئ، د ظالم سره مۀ ملګري کيږئ، د مظلوم سره ملګرې شئ، د مظلوم مرسته او مدد اُوکړئ.

نن پدې مُلک کښې مصيبت دا دے چې د ظالم ملګرې هر څوک دې، او د مظلوم مدد او مرستې والا څوک نشته، او کۀ څوک د مظلوم ملګرې کيږي بيا د هغۀ هم خير نۀ وي.

نو نبي ﷺ فرمائي: «وَعَوْنِ الْمَظْلُومِ» "چې د مظلوم امداد اُوکړئ"، هغه کۀ هر څوک دې، خو چې ظلم ورسره کيږي، نو د هغۀ مدد او مرسته اُوکړه.

(6) شپږم «وَإِفْشَاءِ السَّلَامِ» بل ئې راته دا حکم کړے وو چې: "سلام عام کړئ"، سلام پۀ خلقو کښې خور کړئ، يَو بل باندې سلامونه اچوئ، "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ" يَو بل کښې دا خبرې عام کړئ.

(7) اُووم «وَإِبْرَارِ الْمُقْسِمِ» "قسم کونکے پۀ خپل قسم کښې برې کول". ددې څۀ مطلب دے؟

يَو سړي قسم اُوخوړو، نو هغه پۀ قسم کښې پاک کړه، قسم کښې برې کړه، مۀ ئې حانث کوه، مثلاً: يَو سړے درته وائي: چې زما دې قسم وي، دا کار به تۀ کوې، قسم ئې اُوخوړو، او هغه

کار جائز دے، نو تهٔ هغه کار اُوکړه، چې هغه د حانث کیدو نه پاک او بري شي.

لکه ستا يَو دوست او ملګرے راغے، او هغه وائي: چې زهٔ ځم، او تهٔ ورته وائي: چې نهٔ به ځې، قسم دے چې د غرمې ډوډئ به درباندې خُورم، نو هله به ځې، نو اُوس کهٔ د هغه ډیره تلوار ده، خو پکار دي چې هغه تا پهٔ قسم کښې رانهٔ ولې، هغه پاتې شي، او تهٔ قسم کښې حانث نهٔ شې.

اُوس کهٔ هغه لاړ شي، نو تهٔ به یا درې ورځې روژې نیسې او کهٔ مالدار ئې، نو لس مسکینان به مړوې؛ ځکه پهٔ تا هغه ډوډئ اُونهٔ خوړه، او تهٔ قسم کښې راغلې. نو ددې وجې نه هغه پهٔ قسم کښې برې کول دا د مسلمان کار دے.

هاں! پهٔ ناجائز شي دي قسم کړے وي. قسم دي کړے وي چې ( T.V) تې وي به راسره ګورې، او کهٔ اودې نهٔ کتو نو قسم پهٔ خدائے چې هر څهٔ به مې درسره پاتې وي. خو د ګناه کار به ورسره نهٔ کوې.

او چې صحیح کار وي، جائز کار وي، یا د ثواب کار وي، نو بیا قسم کونکے پهٔ خپل قسم کښې برې کړه.

دا اُوهٔ (7) خبرې برّا بن عازب ﷺ وائي: چې مونږ ته نبي ﷺ حکم کړے وو، نویَو پکښې "سلام" وو.

**د سیدنا ابو هریره ﷺ روایت**

يَو بل حدیث کښې راځي، سیدنا ابو هریره ﷺ فرمائي: چې نبي ﷺ فرمائیلي دي: «لَا تَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّى تُؤْمِنُوا، وَلَا تُؤْمِنُوا حَتَّى تَحَابُّوا، أَوَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى شَيْءٍ إِذَا فَعَلْتُمُوهُ تَحَابَبْتُمْ؟ أَفْشُوا السَّلَامَ بَيْنَكُمْ». [1]

---

(1) [رواه مسلم، رقم: (54)، واللفظ له، وأبو داود، رقم: (5193)، وابن ماجة، رقم: (68، و3692)].

ترجمه وتشريح: ابو هريره ﷺ فرمائي: چې نبي كريم ﷺ اوفرمائيل: چې تاسو تر هغې وخته پورې جنت ته نۀ شئ داخليدلے تر څو چې تاسو ايمان نۀ وي راوړے، نو چې ايمان مو نۀ وي راوړے تر هغه وخته پورې جنت ته نۀ شئ تللے، «وَلَا تُؤْمِنُوا حَتَّى تَحَابُّوا» او تاسو مؤمنان نۀ شئ كيدلے تر څو پورې چې تاسو يَو بل سره محبت نۀ وي كړے. او كچرې يَو بل سره بُغض كوئ، حسد كوئ، يَو بل سره كينه كوئ، يو بل سره ضد او عناد كوئ، دا د مسلمان صفت نۀ دے. د مسلمان صفت دا دے: ﴿مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ﴾.[1]

"محمد رسول الله ﷺ د الله پيغمبر دے، او هغه كسان چې د هغۀ سره ملگرې دي، صحابه كرام رضي الله عنهم دي، د هغوي صفت دا دے، د هغوي نښه دا ده: ﴿أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ﴾ سختې كونكې دي پۀ كافرانو باندې، او رحم كونكې دي پۀ خپل مينځ كښې" پۀ يَو بل باندې نهايت مهربان دي، كافرانو باندې نهايت سختې كونكې دي، دا د مؤمنانو صفت دے. او دغه وجه ده چې دا سبب دے د ايمان، او بيا سبب دے د دننه كيدو د جنت، «وَلَا تُؤْمِنُوا حَتَّى تَحَابُّوا» "تاسو تر هغه وخته پورې كامل ايمان والا نۀ شئ كيدلے تر څو چې تاسو د يَو بل سره مينه او محبت نۀ وي شروع كړے".

نبي كريم ﷺ فرمائي: آيا تاسو ته داسې يَو كار نۀ ښايم، يَو داسې خبره درته نۀ ښايم، كله چې تاسو پۀ هغې باندې عمل شروع كړئ، نو ستاسو مينځ كښې به مينه او محبت راشي.

معلومه شوه، چې مينه ددي د راتلو هم څۀ اسباب شته، او د مينې د ختميدو هم

---

(1) [سورة الفتح: 29].

څه اسباب شته. ډير خلق داسې شته چې هغوي وائي: يره جي! مونږ له څه وظيفه راکړئ چې زمونږ په مينځ کښې مينه او محبت پيدا شي، ترونه دي، ترېوران دي، يو بل سره نالکې ده، خفګان دے، په کور کښې يو بل سره ورانه دي، داسې يو وظيفه مونږ ته اُوښايئ چې دا وراني او خفګان ختم شي.

د ټولو نه بهترين علاج دغه محبت او د مينې دپاره څه شے دے؟ نو سلام عام کول دي. نبي ﷺ فرمائي: «أَوَلاَ أَدُلُّكُمْ عَلَى شَيْءٍ إِذَا فَعَلْتُمُوهُ تَحَابَبْتُمْ؟ أَفْشُوا السَّلاَمَ بَيْنَكُمْ».[1]

آيا تاسو ته داسې يو کار نه ښايم چې کله تاسو هغه اُوکړئ نو ستاسو مينځ کښې به مينه او محبت پيدا شي، هغه دا دے: چې سلام په خپل مينځ کښې عام کړئ، سلام خور کړئ، يو بل باندې سلامونه اچوئ، نو ستاسو به يو بل سره مينه او محبت سيوا کيږي، او که يو بل سره سلام کلام نه کوئ، نو ستاسو يو بل سره مينه نه شي راتللے.

د محبت دپاره لوئ شے سلام کلام دے، او د وراني دپاره هم دا دے. خلق وائي: دې فلانکې سره ولې خبرې نه کوې، وائي: دے په لاره ځي هډو سلام نه اچوي. نو که چرې دے سلام کوي نو هغه به ورسره هم مينه کوي. د محبت د زياتيدو دپاره د محبت د راتلو دپاره بهترين شے هغه سلام عام کول دي. «أَفْشُوا السَّلاَمَ بَيْنَكُمْ» "سلام په خپل مينځ کښې عام کړئ".

**د سيدنا عبد الله بن سلام ﷺ روايت**

يو روايت کښې راځي، سيدنا عبد الله بن سلام ﷺ ذکر کوي، وائي: زه چې وړومبے وړومبے نبي ﷺ ته راغلم، نو نبي ﷺ تقرير کولو، صحابه کرامو ته فرمائي: «يَا

(1) [رواه مسلم، رقم: (54)، واللفظ له، وأبو داود، رقم: (5193)، وابن ماجة، رقم: (68، و3692)].

أَيُّهَا النَّاسُ، أَفْشُوا السَّلاَمَ، وَأَطْعِمُوا الطَّعَامَ، وَصَلُّوا وَالنَّاسُ نِيَامٌ تَدْخُلُونَ الجَنَّةَ بِسَلاَمٍ».[1]

**ترجمه وتشریح:** اے خلقو! خپل مينځ کښې سلام عام کړئ، سلام اچوئ، ډوډئ ورکوئ يَو بل ته، طعامونه ورکوئ، خپلو خپلوانو سره خپلولي پالئ، يَو بل سره مينه او محبت کوئ ... «وَصَلُّوا وَالنَّاسُ نِيَامٌ» "او مونځ کوئ چې خلق اُوده وي، کله چې شپه ده خلق اُوده دي، پيشمنې کښې پاسيږئ، الله ته اُودريږئ، او مونځ کوئ"، «تَدْخُلُونَ الجَنَّةَ بِسَلاَمٍ» "کله چې پدې کارونو مو عمل شروع کړو، نو جنت ته به داخل شئ پۀ سلامتيا سره".

څلور کارونه دې اُوکړل، نو جنت ته به دننه شئ: (1) يَو سلام عام کړئ، (2) دويم خلقو له ډوډئ ورکوئ، کۀ مالدار وي کۀ غريب وي خواته دي راشي، نو ډوډئ ورله ورکړه، (3) يَو بل سره خپلولي پالئ، غم ښادې کوئ، لين دَين کوئ، (4) څلورم د شپې نوافل کوئ، تهجد کوئ. جنت ته به پۀ اَمن او سلامتيا باندې دننه شئ. نو الله تعالی به جنتيان جنت ته پۀ سلامتيا سره دننه کوي؛ ځکه دا د جنتيانو يَو بل ته تحفه ده ﴿وَتَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَامٌ﴾.[2]

"د جنتيانو پيشکشې او ډالئ به پدې جنت کښې يَو بل ته سلام سلام وي".

يَو معنی خو دا ده. علماء کرام ذکر کوي: د الله د طرف نه به دوي ته پيشکشې او ډالئ هغه سلام وي. الله تعالی به پرې سلامونه راليږي. يا فرشتې به پدې جنتيانو سلامونه وائي، يا دا معنی هم ده: چې خپله به يَو بل باندې سلامونه اچوي.

نو دا ئې ولې اُووئيل؟ نو اصل کښې مفسرين ذکر کوي: چې قاعده او قانون دا دے: چې يَو دوست د بل دوست خواله ځي، نو ځان سره لاس کښې څۀ شے واخلي،

(1) [رواه الترمذي، رقم: (2485)].

(2) [سورة يونس: 10، إبراهيم: 23].

چې دا به هغهٔ له یوسم، او کوشش کوې چې د خپل وطن نه د خپل ملک نه هغه شے خپل دوست له د ځان سره یوسې چې د هغهٔ کلې کښې هغه نهٔ میلاویږي، لکه د سوات، دیر، باجوړ خلق چې راځي، نو ځان سره اکوړ راوړې؛ ځکه دلته د هغې اُونې نشته، او دلته نهٔ چې کوم خلق هلته ځې نو د ځان سره پلې یوسې، بل شے یوسې، نو هلته ددې پلو نه گران گران څیزونه شته خو دا پلې هلته نهٔ میلاویږي. نو جنتیان به هم دغه شان د یو بل ملاقات له ځې، نو د ځان سره به څهٔ اُوړې، نو داسې خو څهٔ شے نشته چې د یو جنتې سره دې وي او د بل سره دې نهٔ وي، او کهٔ داسې کوې چې دے ورته څهٔ شے اُوړې، او هغه د هغهٔ سره شته نو ددې څهٔ مطلب دے؟ دا خو هسې هم د هغهٔ سره شته.

مثلًا: دوه ملگرې دې، د هغوي دواړو د خټکو باغونه دي، یا د هندوانو باغونو دې، یا مثلًا بل څهٔ دې، او د یو بل ملاقات له ځې، او دے ځان سره خټکې واخلې، نو هلته خو د هغهٔ خپل باغ ډک دے، نو تهٔ د دلته نه څهٔ شې له خټکې اُوړې، یا هغهٔ ئې تاله راوړې، نو ستا خپل باغ ډک دے، نو هغه ئې تا له څهٔ له راوړې؟

نو جنتیان چې د یو بل سره ځې، او د بل شې ډالئ اُوړي نو هغه خو پهٔ جنت کښې د هر یو سره شته، داسې به نهٔ وي چې د یو جنتې پهٔ زړهٔ کښې به څهٔ اَرمان باتې وي، داسې به نهٔ وي چې د یو سره به یو نعمت میلاویږي، او د بل سره به خلاص شوے وي، نهٔ به میلاویږې. نو یو جنتې چې د بل خواته ځې، نو وائي: څهٔ یوسم؟ نو وائي: راځئ چې یو بل له تُحفه او ډالئ یوسو، نو تُحفه د څهٔ شې ده؟ تُحفه دا ده "السَّلَامُ عَلَیْکُمْ" بس دا لُویه تحفه او ډالئ ده، چې همیشه دې پهٔ تا باندې سلامتیا وي، او همیشه دې تهٔ پهٔ اَمن باندې ئې. نو دا د جنتیانو یو بل ته تُحفه او ډالئ ده، او دا د مسلمانانو تُحفه او ډالئ ده یو بل ته پهٔ دُنیا کښې «أَفْشُوا السَّلَامَ بَیْنَکُمْ» سلام عام کړئ.

### د طفیل بن اُبيّ بن کعب ﷺ روایت

طفیل بن اُبيّ بن کعب ﷺ وائي: چې زۀ به عبد الله بن عمر ﷺ خواته راتلمه، کله چې به د هغۀ خواته راغلم، نو هغۀ به زۀ سحر وختي ځان سره بازار ته بوتلم، نو وائي: کله چې به زۀ د هغۀ سره بازار ته لاړم، نو «لَمْ يَمُرَّ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ عَلَى سَقَّاطٍ وَلاَ عَلَى صَاحِبِ بَيْعَةٍ وَلاَ مِسْكِينٍ وَلاَ أَحَدٍ إِلاَّ سَلَّمَ عَلَيْهِ».[1]

"نو چې چا سره به میلاویدو نو هغۀ ته به ئې سلام کولو".

پۀ لاره چې ځي او څوک هم مخې له درځي، مالدار وي، کۀ غریب وي، بوډا وي، او کۀ ځوان وي، ټولو ته وایه: "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ" څومره نیکۍ به دي کټلې وي، چې د کلي بل سر ته رسیږې، او هغه به درته وائي: "وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ" نو څومره دُعاګانې تاته پۀ لږ وخت کښې جمع شوې، نو چې "خیر راغلے" وائي، نو "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ" وایه. نو دغه عبد الله بن عمر ﷺ به سحر بازار ته لاړو تر مازیکره پورې به بازار کښې ګرځیدو، څوک چې به ورسره میلاویدو نو هغۀ ته به وئیل: "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ" دغه طفیل ﷺ وائي: یَو ورځ راغلم د عبد الله بن عمر ﷺ خواته نو وائي: ما ته وائي: چې راځه چې ځو بازار ته، نو وائي: ما ترې یَو ورځ تپوس اُوکړو، چې کله زۀ ستا خواته راشم، ځان سره مې ملګرے کړې، او بازار ته مې بوځې، حالانکه بازار ته تلل خو ښه خبره نۀ ده، جائز دې خو تقوٰی خو دا ده: چې سړے د بازار د تلو نه ځان اُوساتي؛ ځکه «وَأَبْغَضُ الْبِلَادِ إِلَى اللهِ أَسْوَاقُهَا».[2]

"پۀ تمامو ښارونو او زمکو کښې ناخوښه زمکه الله ته دبازارونو زمکه ده"؛ ځکه ګناهونه پکښې زیات کیږي، فحاشي، عُریاني او دهوکې پکښې زیاتې

(1) [رواه البيهقي في "شعب الإيمان"، رقم: (8411)].

(2) [رواه مسلم، رقم: (671)].

کیږي، دروغ پکښې ډیر وي. نو وائي: ما ورته اووئیل: چې ته په ما باندې څه کوې، چې ما بازار ته بوځې او خپله هم بازار ته روزانه روان ئې، او څه اَخلې هم نه؟ خو بس نیغ روان ئې، او "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ" وائې، نور خو ته څه کار بازار کښې نه کوې.

نو وائي: ما ته ئې اووئیل: چې «يَا أَبَا بَطْنٍ» دا طفیل چې وو دده لږه غوندې خیټه لویه وه وائي: «يَا أَبَا بَطْنٍ» مونږ چې بازار ته سحر وختې ځو، نو «مِنْ أَجْلِ السَّلَامِ» "مونږ د سلام دپاره ځو"، چې بازار کښې خلق ډیر دے، نو «نُسَلِّمُ عَلَى مَنْ لَقِينَاهُ» "چا سره چې مونږ میلاویږو نو په هغوي مونږ سلام اچوو ددې دپاره ځو".[1]

دا یَو قسم تَحیه او دُعا ده، نو مونږ ددې دپاره ځو، چې خلقو باندې سلامونه واچوو، مونږ خو هسې بازار کښې نه ګرځو. نو سلام اچول دا د مسلمان شِعار دے، او دا د مسلمان نښه ده.

## آداب د سلام او د هغې د کولو طریقه

سلام به څنګه اچوو، طریقه ئې څنګه ده؟ اکثر خلق چې سلام اچوي، نو هغه ترینه خیرې جوړ کړې، هغه وائي: "السَّامُ عَلَيْكُمْ"، نبي ﷺ ته یهود راغلل، او قصدًا عمدًا ئې دا اُووئیل: "السَّامُ عَلَيْك" نو نبي ﷺ ورته اووئیل: "وَعَلَيْكُمْ"، سیده عائشې صدیقې رضي الله عنها چې واوریدل، نو بس په کنځلو باندې شوه، او په خیرو باندې شوه، یهودو ته، نبي ﷺ ورته وائي: عائشې چپ شه، کنځلې او ردې بدې مه وایه، نو عائشه رضي الله عنها نبي ﷺ ته فرمائي: د الله پیغمبره تا د یهودو دا سلام وانوریدو؟ دوي خو تا ته خیرې اُوکړې؛ ځکه "سام" مرض ته وئیلے کیږي، او دا رنګې مرګ ته هم وئیلے کیږي، "السَّامُ عَلَيْك" معنی دا ده: "الله دې په تا باندې مرګ راولې"، یعنې

(1) [رواه البیهقي في "شعب الإیمان"، رقم: (8411)].

الله دي مړۀ کړه. نو نبي ﷺ ته فرمائي: دا خو تا ته خِيرې کوې؟ نو نبي ﷺ ورته اُوفرمائيل: د دوي هغه خيرې دي واوريدې او زما هغه جواب دي وانوريدو، نو وائي: څنګه؟ نو وائي: چې کله هغوي ما ته اُووئيل: چې "السَّامُ عَلَيْكَ"، نو ما ورته اُووئيل: "وَعَلَيْكُمْ"، بس خبره ختمه شوه، ما د هغې جواب ورکړو، او تا ته پته نشته عائشې، چې هغوي زما دپاره کومې خيرې کوې نو الله ئې نۀ قبلوې، او زما خيرې الله قبلوې، نو هغوي چې ما ته اووئيل: چې الله دي مړۀ کړه، نو هغه نۀ قبليږي، او چې ما اووئيل: چې الله مو مړۀ کړه، نو هغه به خامخا قبليږي.[1]

نو بعضې خلق چې هغوي ميلاويږي، نو وائي: "السَّامُ عَلَيْک" کله چې وائي: "السَّامُ عَلَيْک" تلوار ډيره مۀ کوه "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ" وايه.

اول صرف سلام دغه دے، چې "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ" بيا بهتر سلام دا دے: "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ"، او چې چا باندې دي سلام واچولو، هغۀ له پکار دي چې جواب درکړې، "وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ" بعضې خلق وائي: "وَالَيْكُمُ السَّلَامُ" نو د "وَالَيْكُمُ السَّلَامُ" خو څۀ معنی پاتې نۀ شوه. دا دے: "وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ" نو دوي ترينه "عين" ختم کړې، او وائي: "وَالَيْكُمُ السَّلَامُ".

او "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ" دے، نو بعضې خلق وائي: "السَّلَامَا لَيْكُمْ" "عين" ترينه ختم کړې، هسې ځان سترے کوې.

"السَّلَامُ عَلَيْكُمْ" نو پۀ جواب کښې "وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ" او بهتره دا ده: چې څوک سلام اچوې چې "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ" اُووائي، او جواب ورکونکے اُووائي: "وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ" يَو تکے د هغې نه سيوا اُووائي، کنې کم از کم د هغې جواب خو دي ورکړې.

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (6030، و6401)].

**د عمران بن حصين ﷺ روايت**

عمران بن حصين ﷺ وائي: يَو سړے د نبي ﷺ خواته راغلو، او نبي ﷺ ته وائي: "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ"، نبي ﷺ اُوفرمائيل: «وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ»، هغه سړے كيناستو، نبي ﷺ اُوفرمائيل: «عَشْرٌ»، دۀ لس (10) نيكئ اُوكټلې؛ ځكه صرف "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ" ئې اُووئيل، بل سړے راغلے، هغۀ اووئيل: "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ" نبي ﷺ هغۀ ته هم د سلام جواب ورکړو، هغه سړے هم كيناسو، نبي ﷺ اُوفرمائيل: «عِشْرُوْنَ»، دۀ شَل (20) نيكئ اُوكټلې؛ ځكه دۀ ورسره "وَرَحْمَةُ اللهِ" سيوا كړو، بل سړے راغلے، هغۀ اُووئيل: "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ" پوره سلام ئې اُووئيلو، هغه هم كيناستو، نبي ﷺ د سلام جواب ورکړو، بيا ئې اُوفرمائيل: «ثَلَاثُوْنَ»، دۀ دِيرش (30) نيكئ اُوكټلې؛ ځكه دۀ درې واړه الفاظ اووئيل، "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ".[1]

داسې سلام چې دے اُووئيلو نو دِيرش (30) نيكئ درته ميلاؤ شوې. نو چې خومره يَو سړے د نيكو خواهش كوې نو مكمل سلام دې كوې.

**د سيده عائشې ﷺ روايت**

يَو حديث كښې راځي، سيده عائشه ﷺ فرمائي: چې نبي كريم ﷺ ماته اُوفرمائيل: چې اے عائشې رضي الله عنه! «هَذَا جِبْرِيلُ يَقْرَأُ عَلَيْكِ السَّلَامَ» "عائشې! جبرئيل ﷺ راغلے دے، دا دې ولاړ دے او پۀ تا باندې سلام وائي"، جبرئيل ﷺ فرمائي: چې زما سلام عائشې ﷺ ته اُووايه، سيده عائشه ﷺ فرمائي: «وَعَلَيْهِ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ» "پۀ

(1) [رواه الترمذي، رقم: (2689)، وأبو داود، رقم: (5195)].

جبرئیل ﷺ دي سلام وي، د الله رحمتونه دي وي، او د الله برکتونه دي وي". [1]

او دا وو عظمت د سیده عائشې ﷺ چې جبرئیل ﷺ هغې ته سلام کړے وو، او دا رنګې د نبي ﷺ هغه بې بې أمّ المؤمنین سیده خدیجة الکبری ﷺ د نبي ﷺ اوله بې بې وه، نبي ﷺ به غارِ حرا کښې ناست وو، او د الله پاک عبادت به ئې کولو، سیده خدیجې ﷺ به نبي ﷺ ته غار ته ډوډئ راوړه، یَو ځل سیده خدیجه ﷺ راروانه وه، نبي ﷺ له ئې ډوډئ راوړه، جبرئیل امین ﷺ راغلے، او نبي ﷺ ته وائي: چې خدیجه ﷺ راروانه ده، ستا خو اله راځي، زما سلام پهٔ هغې اُورایه، «وَبَشِّرْهَا بِبَيْتٍ فِي الجَنَّةِ» "او هغې ته زیرے ورکړه چې الله به هغې له پهٔ جنت کښې بنګله ورکوي". [2]

جبریل ﷺ سیده خدیجې ﷺ باندې هم سلام وئیلو؛ ځکه دا دوه بِیبیَانې د نبي ﷺ پهٔ بِیبیَانو کښې لُوې مقام والا وي. سیده خدیجة الکبری ﷺ او سیده عائشه ﷺ نبي خو به ظاهرًا فرق نهٔ کولو، نبي ﷺ خو به ظاهرًا ټولو ته یَو شان کتل، خو د زړهٔ محبت خو جُدا شے دے، نو د نبي ﷺ د زړهٔ محبت هم د دې دوارو سره زیات وو.

اَوله بې بې خو د سختئ او د تکلیف بې بې وه، ړومبئ بې بې وه سیده خدیجة الکبری ﷺ د هغې پهٔ ژوند نبي ﷺ بلې بي بي سره نکاح نهٔ وه کړې.

او دویمه بې بې سیده عائشه ﷺ وه چې د هغې تصویر جبرئیل ﷺ د ریښمو پهٔ کپړه کښې بند کړے وو، او نبي ﷺ ته ئې راوړے وو، چې دا به ستا بې بې وي، او الله به ئې تاته پهٔ نکاح باندې درکوي.

نو بهر حال سلام چې څوک کوي، نو د هغې پوره جواب ورکول او سلام هم پوره وئیل پکار دي.

---

(1) [رواه البخاري ، رقم: (3217، و6249)، ومسلم، رقم: (2447)].

(2) [رواه البخاري، رقم: (3820)، ومسلم: رقم: (2432)].

نو د سلام آداب دا دي: سیدنا ابو هریره ﷺ فرمائي: چې نبي ﷺ وئيلي دي: «يُسَلِّمُ الرَّاكِبُ عَلَى الْمَاشِي» "کوم سړے چې په سورلۍ باندې سُور دے، نو سورلۍ والا" به پیدل تلونکي باندې سلام اچوي"، مثلًا: یَو سړے په سائیکل یا موټر سائیکل هر شي باندې چې روان دے نو دے به پیدل تلونکي باندې سلام اچوي، «وَالْمَاشِي عَلَى الْقَاعِدِ» "کوم سړے چې روان دے هغه به په ناست سړي باندې سلام اچوي".[1]

او علامه آلوسي خپل تفسیر روح المعاني کښې وائي: چې کوم سړے ملاست یا ناست وي، نو راتلونکے به په دوي باندې سلام اچوي، یا دغه شان یَو ډله راروانه ده، په هغې کښې لږ کسان دي، بله ډله کښې زیات کسان دي، نو دا لږ کسان به په هغه ډیرو کسانو سلام ځکښې اچوي، دا اَدب دے. او که داسې نه وي او ډیرو کسانو په لږو کسانو باندې سلام واچولو نو ثواب به ورته ورکولے شي.

بل دا چې نبي ﷺ فرمائیلي دي: یَو روایت کښې راځي چې گشر له پکار دي چې په مَشر باندې سلام واچوي، او کچرې داسې اُوشول چې دا کشر سلام نه اَچوي نو دا مَشر له پکار دي چې سلام پرې واچوي.[2]

"بَابُ السَّلَامِ عَلَى الصِّبْيَانِ" محدثین باب قائموي، نبي ﷺ په ماشومانو باندې هم سلامونه اچولي دي، ماشوم ته به هم سلام کوئ.

عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ: «إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِاللَّهِ مَنْ بَدَأَهُمْ بِالسَّلَامِ».[3]

سیدنا ابو اُمامه ﷺ ذکر کوي چې نبي ﷺ فرمائي: چې الله ته ډیر محبوب سړے هغه دے چې هغه په سلام کښې ځکښې شو په بل مسلمان باندې.

---

(1) [رواه البخاري، رقم: (6232، و6233)، ومسلم، رقم: (2160)، والترمذي، رقم: (2703)].

(2) [رواه البخاري، رقم: (6231، و6234)، والترمذي، رقم: (2704)، وأبو داود، رقم: (5198)].

(3) [رواه أبو داود، رقم: (5197)].

يَو حديث كښې راځي چې «الْبَادِئُ بِالسَّلَامِ بَرِيءٌ مِنَ الْكِبْرِ».[1]

"كوم سړے چې ابتداء او شروع كول يعنې مخكښې والے كوي په سلام كښې نو هغه د تكبر نۀ بيزاره دے"، كو شش كوئ چې په سلام كښې په يَو بل باندې مخكښې شئ. اُوس خو خلق وائي: كۀ هغه سلام اُوكړو خو زۀ به جواب ورکړم، او كۀ سلام ئې اُونۀ كړو، پس پريدوه ئې. يَو بل سره خوا كښې تير شي. پدې باندې د سړي مرتبه كميږي نه، بلكه پدې باندې د سړي مقام او مرتبه اوچتيږي، چې سړے يَو بل ته سلام كوي، نو كوشش دي اُوكړي چې يَو بل باندې په سلام اچولو كښې مقدم شي.

حديث كښې راځي، چې نبي ﷺ باندې په سلام اچولو كښې څوك نۀ دي مخكښې شوي؛ ځكه چې څوك به هم نبي ﷺ ته مخې له راغلے د لرې نه به نبي ﷺ هغۀ ته مُسكے شو، او سلام به ئې ورباندې واچولو، نو چې څوك درله مخې له راځي، نو كوشش كوه چې په تا مخكښې نۀ شي تۀ پرې سلام واچوه.

يَو روايت كښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: چې كله په تاسو كښې يَو سړے د خپل مسلمان وُرور سره ميلاؤ شي نو «فَيُسَلِّمُ عَلَيْهِ» "نو سلام پرې واچوه"، «فَإِنْ حَالَتْ بَيْنَهُمَا شَجَرَةٌ» په لاره روان وي او "مخې له اُونۀ راغله" دا يَو كس د اُونې په يَو طرف لاړو او دا بل كس د اُونې په بل طرف لاړو، مينځ كښې د اُونې پرده راغله، معمولي غوندې جُدائي راغله، خو چې بيا ميلاؤ شي بيا دي سلام واچوي.[2]

نو سلام له دومره اهتمام وركړئ، چې مينځ كښې اُونۀ يا ديوال راشي او بيا يَو بل سره ميلاؤ شئ، بيا سلام اُوكړئ.

---

(1) [رواه البيهقي في "شعب الإيمان"، رقم: (8407)].

(2) [رواه أبو داود، رقم: (5200)].

## د صحابي نبي ﷺ ته لږ وخت درې کرتې سلام کول او د هغوي جواب ورکول

يَو حديث کښې راځي، نبي ﷺ جومات کښې ناست وو، يَو صحابي راغے، او نيت ئې اوتړلو، مونځ ئې اُوکړو، خو ډير په تلوار ئې اُوکړو، د رکوع او سجدې وغيره خيال ئې اُونۀ ساتلو، د قراءت خيال ئې اُونۀ ساتلو، نو د نبي ﷺ خواته راغے، او وائي: "السَّلَامُ عَلَيْكَ"، نبي ﷺ ورته اُوفرمائيل: «وَعَلَيْكَ السَّلَامُ، ارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ» نبي ﷺ جواب ورکړو، او ورته وائي: "ورشه مونځ اُوکړه، ستا مونځ نۀ دے شوے"، نو هغه صحابي بيا راغے، او مونځ ئې اُوکړو، نو بيا د نبي ﷺ خواته راغے، نبي ﷺ جومات کښې ناست دے، بيا ورغلو، وائي: "السَّلَامُ عَلَيْكَ"، نبي ﷺ ورته اُوفرمائيل: «وَعَلَيْكَ السَّلَامُ، ارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ»، په دريم ځل باندې بيا مونځ اُوکړو، بيا راغے، سلام ئې اُوکړو، بيا ورته نبي ﷺ وائي: "ورشه مونځ اوکړه ستا مونځ نۀ دے شوے". درې ځلې هغه صحابي راځي، او نبي ﷺ ئې واپس کوي، چې مونځ اُوکړه ستا مونځ نۀ دے شوے.[1]

اوس اهمه خبره دا ده، چې د نبي ﷺ مسجد به څومره وو؟ خو په يو ځائے کښې به نبي ﷺ ناست وو، او بل ځائے کښې به هغه صحابي ولاړ وو، او ددې ځائے نه ځي، او بل ځائے ته کيږي، او سلام اچوي، او نبي ﷺ «وَعَلَيْكَ السَّلَامُ» وائي.

ددې وجې نه سنت طريقه دا ده، چې يَو سړے خپل کور ته هم ځي، چې هغه سلام کوي، مونږ خو پدې باندې شرميږو.

ماشومان چې د سکول نه راشي، نو هغوي سلام اچوي، خو هغوي هم صرف دغه زده کړي دې چې سکول نه راشي او کور ته دننه شي نو سلام به کوي، او چې تو له ورځ بهر کيږي، او دننه کيږي، نو سلام نشته، دا خو څۀ لازمي نۀ ده، چې صرف

(1) [رواه البخاري، رقم: (6251)].

د سکول نه راشي، نو سلام به کوې، او چې د پټې نه راشي نو سلام به نۀ کوې، پۀ هر حال کښې سلام پکار دے.

ددې وجې نه سیدنا أنس ﷺ فرمائي: چې نبي ﷺ فرمائیلي وو: «يَا بُنَيَّ إِذَا دَخَلْتَ عَلَى أَهْلِكَ فَسَلِّمْ يَكُونُ بَرَكَةً عَلَيْكَ وَعَلَى أَهْلِ بَيْتِكَ».(1)

"تۀ چې کله کور ته دننه شې نو کور والو باندې سلام واچوه، د الله برکت به وي پۀ تا باندې او ستا پۀ کور والو باندې". پۀ خپلې بي بي باندې به هم سلام اچوې. بعضې خبرې داسې وي چې هغه مونږ پۀ ځان باندې د پښتو د وجې نه بندې کړې دې، ددین کارونه مو پۀ ځان باندې بند کړي وي، سلام چې دے دا پۀ خپله بي بي باندې هم اچولے شې. د دُنیا خبرې ورسره کولے شې، او د دین خبرې ورسره نۀ شې کولے؟ چې کور ته دننه شې نو پۀ خپلې بي بي سلام واچوه "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ".

او بل دا چې پۀ یَو کس باندې هم سلام اچوې، نو "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ" د جمع صیغه وایه، (1) د اَدب د وجې نه، (2) او دویم دا چې فرشتې وي د دغه انسان سره نو هغه هم پکښې راغلې "عَلَيْكُمْ" د جمع صیغه ده. پۀ خپلې بي بي سلام اچوه، پۀ خپلو خویندو سلام اچوه، پۀ خپلو خپلوانو چې کومې محرم زنانه دې چې تا سره ئې نکاح نۀ کیږي، پۀ هغوي باندې هم سلام اچوه.

تَر دې پورې، چې حدیث کښې راځي، چې بوډۍ ګانې زنانه اګر کۀ پردۍ دې، خو هغه زنانه چې د ډیر بوډۍ والې د وجې نه ستر او پرده نۀ کوې، پۀ هغوي هم سلام اچولے شې، خو چې بوډۍ ګانې وي، ځوانو جینکو باندې به سلام نۀ اچوې، پردو ښځو باندې به سلام نۀ اچوې، چې ځوانې وي، خو چې بوډۍ وي، نو پۀ هغوي باندې

(1) [رواه الترمذي، رقم: (2698)].

سلام اچولے شي. باقي پاتې خپلې زنانه چې ستا محرمې زنانه دي، ستا ورسره نکاح نهٔ کیږي، نو سلام پرې اچولے شې، پاتې خپله بي بي ده، نو په هغې باندې خو په طريقِ أولىٰ سلام اَچولے شې، په خپلو بچو او خپلې بي بي باندې سلام اچوه.

بچو له دا اَدب ورکړه، زُوې له دا اَدب ورکړه، چې بهر ځې، او بيا راځې، نو سلام کوه، سلام سره ډير خير او برکت کور کښې راځي.

**سلام به په چا باندې اچوې؟**

بل دا چې سلام به په چا باندې اَچوې، او په چا به سلام نهٔ اَچوې؟ دا اَدب هم زده کول غواړي.

نو امام آلوسي رحمه الله په تفسير روح المعاني کښې دا په اشعارو کښې ذکر کړې دي، چې سلام به په چا باندې اَچوې، او په چا باندې به نهٔ اَچوې؟ نو امام آلوسي رحمه الله فرمائي:

سَلَامُكَ مَكْرُوْهٌ عَلىٰ مَنْ سَتَسْمَعُ ... وَمِنْ بَعْدِ مَا أُبْدِى يُسَنُّ وَيُشْرَعُ

ترجمه: وائي: ستا سلام مکروه دے په هغه چا چې اُوس به ئې ته واورې، او ددې نه سیوا په نورو خلقو باندې سلام سنت او جائز دے، سلام اچوه.

مُصَلٍّ وَتَالٍ ذَاكِرٍ وَمُحَدِّثٍ ... خَطِيْبٍ وَمَنْ يُصْغِيْ إِلَيْهِمْ وَيَسْمَعُ

ترجمه وتشريح: مونځ کزار باندې به سلام نهٔ اچوې، يَو سړے مانځهٔ باندې ولاړ دے، سلام پرې مهٔ اچوه؛ ځکه هغهٔ خو مونځ کوې د الله په عبادت کښې مشغول دے، يَو سړے د قرآن کريم تلاوت کوي، نو هغهٔ باندې سلام مهٔ اچوه، يَو سړے د الله پاک ذکر کوي، نو هغهٔ باندې سلام مهٔ اچوه، يَو سړے دے حديث خلقو ته لُولي نو په هغهٔ باندې سلام مهٔ اچوه، درس کوي تدريس کوي نو په هغهٔ باندې سلام مهٔ اچوه.

بعض جاهلان جماعت ته راددنه شي بيان به شروع وي، او دے به وائي: "اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ" دا د سلامونو وخت نهٔ دے، بيان ته غوږ کيد. نو چې سلام سنت دے، سلام

به نۀ اچوي، نو لاس خو به پۀ طريقِ أولیٰ نۀ ميلاويږي. نو بعضې خلق د بيان پۀ شروع کښې پاسي، نو يَو بل سره غاړه ميلاووي، ميلمه به راشي، نو د هغۀ سره به لاسونه ميلاووي، دا درته چا وئيلي دي؟ کۀ عالم هم راشي نو لاس به نۀ ميلاوویٔ، بيان شروع دے بيان ته به متوجې کيږي، دے به د بيان نه پاسي او عالم ته به متوجې شي، عالم راغے لار ورته پريده، دننه به پۀ خپله راځي، تۀ به هغه وخت کښې لاسونه نۀ ميلاووې، بيان ته به متوجې کيږي، تۀ د الله کتاب آورې، ددي نه به بل خوا توجه نۀ اَړوې. نو يَو سړے مونځ کوي، تلاوت کوي، ذکر کوي، حديث لولي، نو سلام به پرې نۀ اچوې، او چې هغۀ ته ئې غوږ کيښودے وي، هغۀ باندې به هم سلام نۀ اچوې.

مُكَرِّرِ فِقْهٍ جَالِسٍ لِقَضَائِهِ ... وَمَنْ بَحَثُوا فِي الْفِقْهِ دَعْهُمْ لِيَنْفَعُوا

**ترجمه وتشريح:** سړے دے فقه ځان له يادوي، د فقهې کتاب زده کوي، سبق وائي، دا رنګې يَو سړے قاضي صاحب دے چې هغۀ د خپلې فيصلې دپاره ناست دے خلقو له فيصلې کوي، پۀ يَو لُويه فيصله کښې اَنختے دے فيصله کوي، پۀ هغۀ باندې سلامونه مۀ اچوه. کوم کسان د فقهې کتاب لُولي، بحث کوي، د فقهې مسائل چيړي هغوي باندې سلامونه مۀ اچوه، هغوي پريدوه چې يَو بل ته څۀ فائده اُورسوي، او چې تۀ سلام اُوکړې، نو د هغوي د ذهن نه به هغه تُوله خبره بهر شي.

مُؤَذِّنٍ أَيْضًا أَوْ مُقِيمٍ مُدَرِّسٍ ... كَذَا الْأَجْنَبِيَّاتُ الْفَتِيَّاتُ امْنَعْ

**ترجمه وتشريح:** وائي: يَو سړے چې اَذان کوي، اَذان شروع دے نو د اَذان پۀ وخت کښې پرې سلام مۀ اَچوه، يَو سړے اِقامت کوي نو هغۀ باندې دغه وخت کښې سلام مۀ اَچوه. يَو سړے درس او تدريس کوي نو پۀ هغه باندې دغه وخت کښې سلام مۀ اچوه، دا نۀ چې هر وخت کښې پرې سلام مۀ اچوه، بلکه د درس پۀ وخت کښې پرې سلام مۀ اَچوه. دارنګې پردۍ جينکۍ ځوانانې پۀ هغوي باندې سلام مۀ اَچوه، پردو زنانو

باندې سلامونه مهٔ اَچوه.

وَلُعَّابُ شِطْرَنْجٍ وَشِبْهُ بِخُلُقِهِمْ ... وَمَنْ هُوَ مَعَ أَهْلٍ لَهُ يَتَمَتَّعُ

**ترجمه وتشريح:** کوم خلق چې لکيا دې، او جوارې کوې، او شطرنج باندې لوبې کوې، او څوک چې دغه شان نُور په غټو گناهونو کښې اَخته دې، فاسقان فاجران دې، نو په هغوي باندې سلام مهٔ اَچوه. زجرًا د زُورنې د وجې نه په هغوي باندې سلام مهٔ اَچوه. او کوم سړے چې خپلې بي بې سره خپلې محرمې زنانه سره خبرې کوې، ښځه او سړے خبرې کوې نو په هغوي سلام مهٔ اچوه.

وَدَعْ كَافِرًا أَيْضًا وَمَكْشُوفَ عَوْرَةٍ ... وَمَنْ هُوَ فِي حَالِ التَّغَوُّطِ أَشْنَعُ

**ترجمه وتشريح:** وائي: پريدوه کافر لره، کافر باندې به سلام نهٔ اَچوې، نو دے خو چې د هندوانو او سيکهانو خواته لاړ شې، نو هغوي ته هم وائي: "السَّلَامُ عَلَيْكُم" هندوان او سيکهان خو کافران دې، په هندوانو او سيکهانو به سلامونه نهٔ اَچوې، بس غلے دوکان ته دننه شه دوائي ترې راواخله. علاج ترې کول جائز دې، علاج ترې کولے شې، خو سلام به پرې نهٔ اَچوې.

يَو سړي خپل عورت ښکاره کړے دے، سلام به پرې نهٔ اَچوې. څهٔ معنى؟ وړو بولو ته ناست دے، يا اِستنجا کوې، يا لامبې. په داسې خلقو به سلام نهٔ اَچوې؛ ځکه د هغهٔ عورت ښکاره دے، نو داسې خلقو خواته مهٔ ځه، سلام پرې مهٔ اَچوه.

يَو سړے لُويُو بولو ته ناست دے، په هغهٔ خو سلام ډيره بده خبره ده، ډير ناروا دې. بعضې خلق وي چې هغوي کله واړهٔ بول اُوکړې، نو په لار به راروان وي، او خبرې به هم کوې، نو چې سلام پرې منع دے، نو خبرې هم منع دې، نو چې آودس ماتے دي اُوکړو، نو اَړخ ته اُوديږه، صحيح طريقې سره آودس اُوچ کړه، او بيا راروان شه.

وَدَعْ آكِلاً إلاَّ إِذَا كُنْتَ جَائِعًا ... وَتَعْلَمُ مِنْهُ أَنَّهُ لَيْسَ يَمْنَعُ

ترجمه وتشريح: يَو چې ډوډۍ خوري په هغهٔ باندې سلام مهٔ اَچوه. هاں! کهٔ ته اُوږے ئې، نو بيا پرې سلام واچوه، خو پدې شرط چې تاته پته وي، چې دے خلقو له ډوډۍ ورکوي، شُوم او بخيل نهٔ دے.

اُوس کهٔ يَو سړے داسې دے چې تهٔ پرې سلام هم واچوې، او هغه وائي: "وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ"، او د ډوډۍ سَت ئې درته ونکړو، نو سلام پرې مهٔ اچوه، هله به پرې سلام اَچوې، چې تهٔ اُوږے ئې، او ستا زړهٔ غواړي، چې زهٔ سلام اُوکړم، نو دے به ماته د ډوډۍ سَت اُوکړي، نو سلام پرې واچوه، چې د ډوډۍ سَت درته اُوکړي، نو ورشه ورسره کينه، او کهٔ اُوږے نهٔ ئې، نو پهٔ ډوډۍ خوړونکي سلام مهٔ اَچوه.

كَذَلِكَ أُسْتَاذٌ مُغَنٍّ مُطَيِّرٌ ... فَهَذَا خِتَامٌ وَالزِّيَادَةُ تَنْفَعُ

ترجمه: دغه رنګې اُستاذ د رباب، او تنک تکور غږونکے او کونترې او مرزان لُوبونکے، دا اختتام دے او زيات فائده ورکوی.[1]

دا څو ځايونه دي، چې پدې کښې سلام اچول منع دي، جومات ته راځي نو جومات کښې سلام اچولے شي، خو پدې طريقه او پدې شرط باندې چې سلام به غلے غوندې اچوې، چې ستا خوا کښې څوک وي، چې هغه ئې واوري، مونځ کونکي پهٔ مونځ کښې کهوډ نهٔ شي، تلاوت کونکے پهٔ تلاوت کښې کهوډ نهٔ شي.

دا رنګې يَو سړے چې جومات ته راغے، او اَودس کوي نو علماء کرامو ذکر کړي دي، فتاوی رحيميه ذکر کړي دي: چې اَودس کونکے، چار اَندام کونکے هغهٔ باندې هم سلام اَچول مناسب نهٔ دي؛ ځکه هغه هم يَو قسم عبادت کښې مُبتلا دے، نو چې هغهٔ باندې سلام اچول مناسب نهٔ دي نو بيا خبرې کول خو پهٔ طريقِ اُولیٰ نهٔ

(1) [روح المعاني: 99/3، طبع دار الكتب العلمية - بيروت].

دې مناسب. نو داسې حالاتو کښې د دُنيا خبرې کول هم ګناه ده.

الله رب العزت دې مونږ او تاسو له د عمل کولو توفيق راکړې، او الله رب العزت دې دا سنت طريقه زمونږ او ستاسو په عمل کښې راولې؛ ځکه دا خو مونږ منو چې سنت طريقه ده، خو ډير خلق اول سلام نهٔ اَچوې، او کهٔ سلام اَچوې نو سلام ئې غلط وي. او بعضې خلق کهٔ تهٔ پهٔ هغوي سلام واچوې، نو هم تاله د سلام جواب نهٔ درکوې، بلکه هغه به وائي: "پخير راغلې"، نو چې څوک درته سلام کوې "السَّلَامُ عَلَيْكُمْ"، نو تهٔ ورته "وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ" وايهٔ، "پخير راغلې" کهٔ ورستو وائي نو بيا ورستو ئې وايه؛ ځکه د سلام جواب "خير راغلے" نهٔ دے، بلکه "وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ" دے. الله دې د صحيح عمل کولو توفيق را نصيب کړې.

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَالْعَصْرِ ۝ إِنَّ الْإِنسَانَ لَفِي خُسْرٍ ۝ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ

(سورة العصر: 1-3)

# موضوع

# دَ کامیابئ لار

**بتاریخ: 2006-03-31**

**بمقام: جلسئ**

**خطیب**

**فصیح اللسان لذیذ البیان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله**

# د کامیابۍ لار

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سِيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سِيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سِيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدَهٗ وَرَسُوْلَهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿وَالْعَصْرِ * إِنَّ الْإِنْسَانَ لَفِي خُسْرٍ * إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ﴾.[1]

وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «نِعْمَتَانِ مَغْبُوْنٌ فِيهِمَا كَثِيْرٌ مِنَ النَّاسِ: الصِّحَّةُ وَالفَرَاغُ».[2] (أو كما قال رسول الله ﷺ).

عزتمندو، مسلمانانو رونړو! ما ستاسو مخکښې د قرآن کریم نه یَو سورت اُولوستو، سورت العصر، او د احادیثو د رسول الله ﷺ نه ما یَو حدیث عرض کړو. سورت عصر کښې الله رب العزت دا ذکر کوې، چې انسان په تاوان کښې دے، انسان تاواني دے، بیا د انسان د تاوان نه د بچ کیدو دپاره الله څلور اصول ذکر کوې، کچرې انسان په دې څلورو اُصولو باندې عمل اُوکړو، نو دا انسان د تاوان نه بچ دے. الله رب العزت فرمائي: ﴿وَالْعَصْرِ * إِنَّ الْإِنْسَانَ لَفِي خُسْرٍ﴾ "شاهد دے مازیګر، یا زمانه

---

(1) [سورة العصر: 1-3].

(2) [رواه البخاري، رقم: (6412)، والترمذي، رقم: (2304)].

شاهد ده، چې انسان په تاوان کښې دے" د تاوان نه څوک بچ دے؟ ﴿إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ﴾ "مګر هغه خلق د تاوان نه بچ دي، چې هغوي ايمان راوړے او عمل صالح ئې کړے دے، يَو بل ته د حق بيان کوي، او يَو بل ته د صبر بيان کوي"، نو دا خلق د تاوان نه بچ دي. اصل کښې حقيقت دا دے، چې د انسان ګټه او تاوان هغه ديني لحاظ باندې دے. د دين ګټه او نقصان مراد دے، يعني دُنياوي او ظاهري لحاظ سره چې سړے سوچ اُوکړي، نو انسان خو تاوان نۀ دے کړے، خو کۀ د دين پۀ اعتبار سره سوچ اُوکړي، نو انسان تاوان کښې دے، ولې کله چې انسان پيدا کيدو، او دې دُنيا ته راتلو نو بربنډ راغلے وو، کله چې د دُنيا نه ځي نو ځان سره ئې کفن يَوړو، نو دۀ خو تاوان نۀ دے کړے، کله چې انسان دُنيا ته راتلو نو ماشوم راغلے وو، کله چې د دُنيا نه ځي نو لوې سړے تري جوړ شوے دے، کله چې دُنيا ته راتلو نو ګنده راغلے وو، او کله چې د دُنيا نه ځي نو پاک ځي، چې د دُنيا نه ځي نو کفن ئې ځان سره يَوړو، خوشبو ئې ځان سره يَوړه، لوې سړے د دُنيا نه لاړو، نو تاوان ئې د کوم ځائے نه اُوکړو، دۀ خو ګټه اُوکړه؟ خو دا ګټه نۀ ده، اصل ګټه د آخرت ده، انسان چې پيدا شو، دے بالکل د ګناه نه پاک وو، دۀ سره يَو ګناه هم نۀ وه، اُوس دا سړے بوډا والي ته چې رسيدلے دے، او مړۀ کيږي، نو د ځان سره ئې د ګناهونو پنډونه يَوړل، دا د انسان تاوان دے، او کۀ د تاوان نه بچ کيږي؟ نو دا کوم څلور اُصول چې قرآن کريم ذکر کړي دي، پدې به بچ کيږي، پۀ بل شي باندې د تاوان نه نۀ شي بچ کيدے.

علماء کرام د دې آيت معاني کوي، الله رب العزت فرمائي: ﴿وَالْعَصْرِ * إِنَّ الْإِنسَانَ لَفِي خُسْرٍ﴾ "شاهد ده زمانه چې يقينًا انسان پۀ تاوان کښې دے". دا څومره زمانه چې د انسانانو تيره شوه، څومره انسانان چې دُنيا نه لاړل، دا څومره زمانه چې اُوشوه، دا ټوله

زمانه ددې خبرې ګواه ده، چې يقينًا انسان په تاوان کښې دے، انسانان خو دُنيا ته ډير زيات راغلې دي، مالدار مالدار خلق دُنيا ته راغلې دي، ليکن هغوي ته په مال باندې فائده نهٔ ده ميلاؤ شوے. مال باندې سړے د الله د عذاب نه نهٔ شي بچ کيدلے.

**د قارون واقعه**

قارون د دُنيا په اعتبار دومره لوئ سرمايه دار وو، چې قرآن کريم کښې الله د هغهٔ تذکره کوې: ﴿وَآتَيْنَاهُ مِنَ الْكُنُوزِ مَا إِنَّ مَفَاتِحَهُ لَتَنُوءُ بِالْعُصْبَةِ أُولِي الْقُوَّةِ﴾.[1]

الله وائي: "ما قارون له دومره مال ورکړے وو چې د هغهٔ د مال خزانې به د يَو ځائے نه بل ځائے ته په اُوړلو باندې درنې وي، ليکن هغې مال د الله د عذاب نه بچ نهٔ کړو". الله رب العزت فرمائي: ﴿فَخَسَفْنَا بِهِ وَبِدَارِهِ الْأَرْضَ﴾.[2]

"ما قارون او د هغهٔ کور په زمکه باندې اُومنډلو"، او د هغهٔ هغه مال مې هم په زمکه کښې اُومنډلو، ډير مالدار انسان وو، ليکن الله وائي: سره د هغې مال نه مې دُنيا کښې تباه او برباد کړو، ژوندے مې زمکې کښې ښخ کړو، او هغې مال او دولت د الله د عذاب نهٔ بچ نهٔ کړو. دا خبره ياد ساتئ! چې دُنيا کښې خپل مال باندې دهوکه نهٔ شئ، مال او دولت سړے د الله د عذاب نه نهٔ شي خلاصولے، تاريخ پدې باندې ګواه دے.

(2) دويمه معنی: ﴿وَالْعَصْرِ * إِنَّ الْإِنْسَانَ لَفِي خُسْرٍ﴾ "زمانه ګواه ده، چې انسان په تاوان کښې دے". سړے په بادشاهت باندې د الله د عذاب نه نهٔ شي بچ کيدے، او کهٔ په بادشاهت باندې سړے خلاصيدے شوے، نو پکار دے چې هغوي بچ شوې وے.

---

(1) [سورة القصص: 76].

(2) [سورة القصص: 81].

**د فرعون واقعه**

فرعون دومره لوئے بادشاه وو، چې هغهٔ د خدايئ دعوٰی کړې وه، او فرعون وئيلې وو، چې ﴿أَنَا رَبُّكُمُ الْأَعْلَىٰ﴾.[1]

"زهٔ ستاسو هغه اُوچت رب يم، زما نه اُوچت رب ستاسو بل نشته"، ليکن فرعون سره ددې چې د خدايئ دعوٰی ئې هم کړې وه، او د ټول مصر خلق د هغهٔ منونکې وو، خو الله فرعون او د هغهٔ قوم ټول پهٔ درياب کښې تباه کړل، پهٔ خپله بادشاهئ باندې خلاص نهٔ شو.

**د نمرود واقعه**

نمرود بادشاه چې هغهٔ هم د خدايئ دعوٰی کړې وه، د ابراهيم عليه السلام سره ئې مقابله راغله ابراهيم عليه السلام ورته وائي: ﴿رَبِّيَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ قَالَ أَنَا أُحْيِي وَأُمِيتُ﴾.[2]

ابراهيم عليه السلام اووئيل: "زما رب هغه ذات دے چې هغه ژوندې کول او مړهٔ کول کوې"، نمرود اووئيل: دا کار خو زهٔ هم کولے شم. دومره سرکش وو، ليکن هغه نمرود بادشاه د يو ماشي د وجې نه تباه او برباد شو، پهٔ بادشاهت دهوکه نهٔ شې.

**پهٔ نسب سرے نهٔ خلاصيږي**

کهٔ تهٔ وائې: چې زما پلار او زما نيکهٔ ښهٔ سړي تير شوې دې، او د هغوي پهٔ وجه به زهٔ د الله د عذاب نهٔ خلاص شم، نو د هغوي پهٔ وجه د الله د عذاب نه نهٔ شې خلاصيدے.

**د نوح عليه السلام د زوې واقعه**

نوح عليه السلام پيغمبر دے، زوې کافر دے، نوح عليه السلام خپل زوې د الله د عذاب نه نهٔ شې خلاصولے، نوح عليه السلام بچ کيږي، او د هغهٔ زوې د هغهٔ مخکښې تباه کيږي، او

(1) [سورة النازعات: 24].

(2) [سورة البقرة: 258].

نوح عليه السلام ئې بچ کولے نۀ شې، دغه نوح عليه السلام دے الله ورته وائي: کشتۍ کښې سُور شه، خو خپله ښځه به کشتۍ کښې نۀ سُورے، ښځه ئې پاتې شوه، او تباه شوه.

**د لوط عليه السلام د بي بي واقعه**

لوط عليه السلام پيغمبر دے، هغۀ ته الله د عذاب نه نجات ورکړو، او ښځه ئې کافره وه، هغه الله د عذاب نه نۀ بچ کوې، قرآن کريم کښې الله دَ هغې ذکر کوې: ﴿ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا لِّلَّذِينَ كَفَرُوا امْرَأَتَ نُوحٍ وَامْرَأَتَ لُوطٍ﴾.(1)

الله مثال ذکر کوې د دوۀ کافرانو زنانو چې هغه دواړه زنانه د پيغمبرانو پۀ نکاح کښې وي، خاوندان ئې پيغمبران دې، الله ته ډير محبوب دې؛ ځکه پيغمبر الله هغه سړے جوړوې چې هغه الله ته ډير محبوب وي، ليکن خپله ښځه د الله د عذاب نۀ شې خلاصولے، او پۀ قوميت باندې سړے د الله د عذاب نه نۀ شې خلاصدلے. چې يَو سړے وائي: زۀ سيّد يم، نو بچ به شم، نا بلکه هر سړے به خپل عمل باندې بچ کيږي.

رسول الله ﷺ فرمائي: زۀ د تمام اولاد د آدم عليه السلام سردار يم. ليکن د نبي عليه السلام سره خپل ترۀ ځومره محنتونه کړې وو، ځومره تکليفونو نه ئې بچ کړے وو، ليکن د نبي عليه السلام هغه ترۀ د نبي عليه السلام پۀ وجه نۀ شې بچ کيدلے.

د نبي عليه السلام بل ترۀ ابو لهب چې قرآن کريم کښې الله فرمائي: ﴿تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ﴾.(2)

"هلاک دي شي دواړه لاسونه د ابو لهب او هلاک شو"، د نبي عليه السلام ترۀ دے، خو د نبي عليه السلام پۀ وجه نۀ شې بچ کيدلے، انسان به خپل عمل باندې خلاصيږي.

---

(1) [سورة التحريم: 10].

(2) [سورة اللهب: 1].

### د عاديانو او ثموديانو حالت

پهٔ قوت او طاقت سرے د الله د عذاب نه نهٔ شي خلاصيدے، او کهٔ خلاصيدے شوے، نو عاديان او ثموديان به خلاص شوي وے، دومره د قوت والا خلق وو، چې هغوي به يَوه اُونه اُونيوله نو هغه به ئې د جړو سره را اوباسله، دومره د قوت والا وو، ليکن هغوي هم الله تباه کړل.

"نو دا ټوله زمانه گواه ده، چې انسان پهٔ تاوان کښې دے". د دې تاوان نه به هله بچ کيږي چې پهٔ الله باندې ايمان راوړي، او د ايمان نه ورستو بيا نيک عمل اُوکړي، بيا د حق بيان اُوکړي، او بيا يَو بل ته د صبر وصيت کوې هله به د تاوان نه بچ کيږي.

(3) دريمه معنی: ﴿وَالْعَصْرِ * إِنَّ الْإِنسَانَ لَفِي خُسْرٍ﴾ "شاهد دے عمر د انسان پهٔ انسان باندې، چې انسان پهٔ تاوان کښې دے". د انسان دا عمر ددې خبرې شهادت کوې چې انسان پهٔ تاوان کښې دے، ولې؟ ځکه چې الله به د انسان نه پهٔ ورځ د قيامت تپوس کوې چې انسانه ما تا له عمر درکړے وو، نو تا دا عمر پهٔ څهٔ کښې تير کړے وو؟ نو چې کله الله د انسان نه تپوس کوې نو انسان به څهٔ جواب ورکوي؟

### د قيامت پهٔ ورځ د پنځو خبرو باره کښې تپوس

رسول الله ﷺ فرمائي: «لاَ تَزُولُ قَدَمَا عَبْدٍ يَوْمَ القِيَامَةِ حَتَّى يُسْأَلَ عَنْ خَمْسٍ...» "د قيامت پهٔ ورځ به هميشه دپاره انسان پهٔ خپل ځائے ثابت قدم ولاړ وي چې تر څو پورې د پنځو (5) خبرو تپوس ترې شوے نهٔ دے".

(1) يَو تپوس: «وَعَنْ شَبَابِهِ فِيمَ أَبْلاَهُ؟» "د ځوانئ باره کښې به الله تپوس کوې چې تا دا خپله ځوانې پهٔ څهٔ کښې تيره کړې وه؟"، ستا پهٔ بدن داسې يَو وخت راغلے وو، ستا لاس روغ وو، ستا خپې روغې وو، ستا غوږونه روغ وو، تا صرف د دُنيا کار کړے وو، او کهٔ د دين دې هم څهٔ کار کړے وو، نو ددې نه دا معلومه شوه چې هر

ځوان په تاوان کښې دے، چې هغهٔ کښې دغه څلور شرطونه نهٔ وي.

نبي ﷺ فرمائي: اُوهٔ (7) کسان به الله د عرش د سورې لاندې اُودروي، يَو پکښې هغه کس دے «وَشَابٌّ نَشَأَ فِي عِبَادَةِ اللهِ».[1]

"هغه ځوان به الله دعرش د سُورې لاندې اُودروې کوم ځوان چې خپله ځوانې د الله پهٔ عبادت کښې تيره کړې وه". داسې ځوان به د قيامت پهٔ ورځ د عرش د سُورې د لاندې ولاړ وي. دا څومره د سعادت خبره ده.

(2) دويم تپوس: «عَنْ عُمُرِهِ فِيمَا أَفْنَاهُ؟» "خپل عمر دي پهٔ څهٔ کښې تير کړے وو؟" پنځوس او شپيتهٔ کاله عمر مې درکړے وو، تا پدې خپل عمر کښې زما د رضا څومره کارونه کړې وو؟ دا تپوس به الله کوې.

نبي فرمائي: "د هغه انسان عذر د قيامت پهٔ ورځ نهٔ قبليږي چې د هغهٔ عمر الله شپيتو کالو ته اُورسوې، او دهٔ خپل رب نهٔ دے رضا کړے، الله به ورته وائي: ستا عذر قبول نهٔ دے". نو انسان پهٔ تاوان کښې دے، د انسان عمر پهٔ انسان باندې ګواه دے، چې انسان پهٔ تاوان کښې دے.

(3) «وَعَنْ مَالِهِ مِنْ أَيْنَ اكْتَسَبَه» "د مال باره کښې به الله تپوس کوې چې دا مال دې کوم ځائے کښې ګټلے وو؟" حلال دے ګټلے وو، کهٔ حرام دې ګټلے وو، دا دې جائز طريقې باندې ګټلے وو، او کهٔ ناجائز طريقې باندې دې ګټلے وو، غلا دې کړې وو، او کهٔ ډاکه دې کړې وه، او کهٔ حلاله مزدورې دې کړې وه؟ اوس خو مونږ صرف پهٔ جمع کولو باندې پوهيږو، دا پته به قيامت کښې لګي.

(4) څلورم تپوس: «وَفِيمَ أَنْفَقَهُ» "تاله چې ما کوم مال درکړے وو هغه مال دې

(1) [رواه البخاري، رقم: (1423، و6806)].

کوم ځائے کښې لکولے وو". دا مال دي زما په رضا کښې لکولے وو، او که زما خلاف کښې دي لکولے وو. دا تپوس به الله کوي.

افسوس پکار دے! نن که د دُنیا معامله وي، مونږ او تاسو د هغې دپاره قرض راخلو، د هغې دپاره مونږ سره وخت شته، لیکن د الله او د الله د پیغمبر د خبرې دپاره مونږ سره نۀ وخت شته او نۀ راسره پیسې شته. د دې تپوس به الله کوي. که چا دا اووئیل: چې یَو میله لګي او هغې کښې تجارت کیږي بیا د هر کس سره پیسې ډیرې دي، او د هغې دپاره خلق قرض پیسې راخلي، د دُنیا دپاره د ځکښې نه پیسې جمع کوو، او د دین کار چې راشي د هغې دپاره مونږ سره بیا یَو روپۍ نۀ وي. دا یاد اُوساتۍ! کومې پیسې چې تا دُنیا باندې اولګولې هغه خو تولې لاړې، او کومې پیسې چې تا د الله په دین باندې اُولګوې دا ستا دپاره لوی اَجر دے.

د یَو عالم باره کښې شکایت

د یَو عالم باره کښې عبد الله بن مبارک رحمه الله ته چا شکایت اُوکړو، چې دے هر وخت پیسې لګوي، هر وخت خیراتونه کوي، دۀ ته لږ نصیحت اوکړه، چې دا پیسې دومره زیاتې نۀ لګوي. عبد الله بن مبارک رحمه الله هغه عالم را اُوغوښتو، او تپوس ئې ترې اُوکړو، وائي: تۀ رشتیا داسې کوې، نصیحت ئې ورته کولو، هغه عالم ورته وائي: ستا نه تپوس کوم، کچرته یَو سړے وي، او یَو کلي کښې اوسیږي، او ځان له بل کلي کښې کور واخلي، او دا سړے هغه بل کلي ته په کډه باندې ځي، نو دے به ځان سره نوې کور ته هغه تول سامان اُوړي، او که به زوړ کور کښې به څۀ سامان پریدي؟ عبد الله بن مبارک رحمه الله ورته وائي: ځان سره به تول سامان اُوړي، نو هغه عالم ورته وائي: دا کور زۀ پریدم، او آخرت کښې ځان له کور جوړوم، نو زۀ څنګه دلته ځان له سامان پریدم؟ ماته خو هغه کور د سامان نه ډکول پکار دي، ماله خو هغه کور آبادول

ښکار دي، دا کور خو زه هسې هم پرېدم، زما خو د آخرت کور مقصد دے، نو مسلمانان چې مرګ مني، نو د دُنيا کور که وران شي، وران دي شي خو هغه کور جوړول غواړي چې هغه د آخرت کور دے، چې هغه د هميشه دپاره کور دے.

د يو عالم مقوله

«صَدِيْقُ الْاِنْسَانِ مَنْ يَسْعُ فِيْ عِمَارَةِ آخِرَتِه وَإِنْ كَانَ فِيْهِ ضَرَرٌ لِدُنْيَا» "د انسان دوست هغه دے چې هغه د انسان د آخرت د آبادولو سوچ کوي، اګر که دُنيا کښې ورته ضرر ميلاوېږي"، اګر که دُنيا کښې پرې مال لګي، اګر که دُنيا کښې پرې دے خرابېږي، خو دا نقصان نهٔ دے، دا ددهٔ فائده ده، او دا ددهٔ دوست دے، چې آخرت ورته جوړوي، او د انسان دشمن هغه سړے دے، چې هغه ورته د دُنيا د آبادولو کوشش کوي، او آخرت ورته تباه کوي، دا د انسان دشمن دے.

خو افسوس دا دے! چې مونږ خپل ځان نهٔ دے پېژندلے، دُنيا خو هسې هم پاتې ده، آخرت آبادول غواړي، ددې مال باره کښې به الله زمونږ نه تپوس کوي، چې زما په دين دې څومره مال لګولے دے؟

(5) پنځم تپوس: «وَعَنْ عِلْمِهِ مَاذَا عَمِلَ فِيْهِ».[1]

"چې تا کوم علم کړے وو په هغې دې څومره عمل کړے وو؟" تا مسئله او بيان واوريدو، نو په څومره خبرو دې عمل کړے وو، دا تپوس به الله زمونږ نه کوي، چې د يَو مسئلې پته درته نهٔ وه، نو خير دے، خو چې کله تا مسئله واوريده، د الله او د الله د پيغمبر خبره دې واوريده، نو بيا تا په هغې کښې په څومره خبرو عمل کړے وو؟ دا پنځهٔ تپوسونه به د انسان نه قيامت کښې کېږي. نو د انسان دا عمر په انسان ګواه دے، چې انسان په تاوان کښې دے؛ ځکه ددهٔ دوکاندارې د الله د حکم

(1) [رواه الدارمي في "سننه"، رقم: (578)، والبيهقي في "شعب الإيمان"، رقم: (1648)].

خلاف، ددهٔ زمینداري د الله د حکم خلاف، ددهٔ شکل د نبي ﷺ د طریقې نه خلاف، ددهٔ تول لین دَین د الله د حکم نه خلاف، ددهٔ غم او ښادې د الله د حکم نه خلاف. نو دے به پهٔ قیامت کښې د الله دربار کښې څهٔ جواب ورکړي؟

(4) څلورمه معنی: ﴿وَالْعَصْرِ * إِنَّ الْإِنْسَانَ لَفِي خُسْرٍ﴾ "د مازیګر دا قیمتې وخت پهٔ انسان باندې ګواه دے، چې انسان پهٔ تاوان کښې دے". چې دا دومره قیمتې وخت دے او مونږ د هغې څهٔ خیال نهٔ ساتو، د مازیګر دا قیمتي وخت به مونږ باندې ګواهي کوي، چې انسان پهٔ تاوان کښې دے.

**د تاوان نه د بچ کیدو لار**

اُوس ددې تاوان نه به مونږ څنګه بچ کیږو؟ ددې تاوان نه د بچ کیدو علاج مونږ ته قرآن کریم ښائي. د دُنیا د تاوان نه د بچ کیدو کوشش مونږ کوو، لیکن د آخرت تاوان مونږ ته ښکارې او بیا هم د هغې تاوان نه ځان نهٔ بچ کوو، پکار دا دې چې د آخرت د تاوان نه مونږ ځان بچ کړو، د تاوان نه د بچ کیدو طریقه مونږ ته قرآن ښودلې ده: ﴿إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ ددې تاوان نه هغه خلق بچ دي، چې "هغوي ایمان راوړے دے"، مؤمنان د تاوان نه بچ دي، "داسې مؤمنان د تاوان نه بچ دي چې هغوي نیک اعمال کوي"، عمل کوي خو پهٔ طریقه د نبي ﷺ باندې.

**ایمان څهٔ ته وائي؟**

رسول الله ﷺ فرمائي: «لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى يَكُونَ هَوَاهُ تَبَعًا لِمَا جِئْتُ بِهِ».[1]

"تر هغه وخته پورې د انسان ایمان نهٔ شي کامل کیدلے چې تر څو پورې د هغهٔ تمام خواهشات د هغه دین نهٔ وي تابع شوے، کوم دین چې ما راوړے دے". اګر چې

(1) [رواه البغوي في "شرح السنة"، رقم: (104)].

دا سړے په خُلې باندې دعوٰی کوي، چې زهٔ مؤمن یم، قرآن کریم کښې الله فرمائي:
﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا آمِنُوا بِاللَّهِ...إلخ﴾.[1]

"اے مؤمنانو! چې تاسو په خُلې باندې د ایمان چغې وهئ چې مونږه مؤمنان یُو، د زړهٔ نه په الله باندې ایمان راوړئ".

رسول الله ﷺ سره صحابه کرام رضي الله عنهم جهاد له تلې وو، نبي ﷺ نه یَو صحابي تپوس کوې ورته وائي: اے د الله پیغمبره! کچرې نن زهٔ پدې میدانِ جهاد کښې شهید شوم، نو «أَيْنَ أَنَا يَا رَسُولَ الله إِنْ قُتِلْتُ؟» "نو زهٔ به چرته یم؟"، نبي ﷺ ورته اوفرمائیل: کچرې تهٔ په میدان جهاد کښې شهید شوې، نو تهٔ به ډارک جنت ته ځې، هغه صحابي پاسیدو، لاس کښې ئې کجورې وې، کجورې ئې د لاس نه اُغورزولې، چې زهٔ دا کجورې خورم، او بیا جهاد له ځم، نو پدې خو دیر وخت لګي، توره ئې راوغسته، او میدانِ جهاد له لاړو، تردې پورې چې هغه صحابي میدانِ جهاد کښې شهید شو، او د دُنیا نه لاړو.[2]

ایمانِ کامل دیته وائي، چې کله د انفاق مسئله راغلې ده، رسول الله ﷺ په مِنبر ناست دے، او وائي: اے زما صحابو! د جهاد دپاره چنده راجمع کړئ، نبي ﷺ د جهاد دپاره ترغیب ورکوې، هر یَو کس د خپل وَس مطابق چنده ورکوې، سیدنا عثمان بن عفان ﷺ مالداره صحابي دے، هغه پاسیدو، وائي: اے د الله پیغمبره! دوه سوه اُوښان سَره د ساز وسامان ما د الله د رضا دپاره مجاهدینو له وقف کړل، بیا نبي ﷺ اعلان کوې، او ترغیب ورکوې، بیا ورته سیدنا عثمان بن عفان ﷺ وائي: دوه سوه اُوښان نور هم زما د طرف نه د الله لاره کښې قبول کړه، نبي ﷺ په مِنبر ناست وو، نبي ﷺ چې

---

(1) [سورة النساء: 136].

(2) [رواه مسلم، رقم: (1899)].

د سیدنا عثمان ﷺ دا کار اُولیدو، نو د رسول الله ﷺ دا مخ وُروور رُوښانه کیدو، او ډیر زیات خوشحاله شو. نبي ﷺ فرمائي: «مَا ضَرَّ عُثْمَانَ مَا عَمِلَ بَعْدَ الْيَوْمِ مَرَّتَيْنِ».[1]

"سیدنا عثمان ﷺ ته به هیڅ ضرو میلاؤ نهٔ شي کهٔ د نن نه بعد نور عمل نهٔ کوي"، دا عمل د سیدنا عثمان ﷺ دپاره ډیر دے. ایمان کامل خو دا وو، چې د نبي ﷺ پهٔ یَوه خبره صحابه کرام پاسیدل، دا د د ایمانِ کامل نخښه ده.

کله چې صحابه کرام د جهاد نه واپس شول، د صحابه کرامو بدنونه مبارک زخمیان دي، د چا یَو ځائے مات دے، او د چا بل ځائے مات دے، او د چا ټول بدن زخمي دے، نبي ﷺ خپله توره او نیزه کوزوله جبریل امین ﷺ راغے، وائي: ما له نیزه نهٔ ده لرې کړې، او تا خپله زغره او نیزه لرې کړه، شاباش! بیا د کافرانو مقابلې ته اُوځئ، نبي ﷺ اعلان کوي، چې اے صحابه کرامو! پاسئ او د کافرانو مقابلې ته لاړ شئ، او هغه صحابه کرام به ما سره جهاد له ځي چې کوم صحابه کرام ما سره پهٔ جنګ اُحد کښې وو، هغه صحابه چې جهاد له نهٔ شو تللے دومره زخمیان وو، چې هغوي پهٔ یَو بل باندې لاس اَچولي دې، او ځینې ځان پسې راښکي، هغوي پهٔ کور کښې نهٔ پاتې کیږي. دا د ایمان کامل نښه ده. الله وائي: "هغه انسان د تاوان نه بچ دے چې ایمان ئې راوړو او نیک اعمال ئې اُوکړل".

یَو خو زمونږ ستاسو ایمان دے چې رسول الله ﷺ فرمائیلي وو: «يُوشِكُ أَنْ يَأْتِيَ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَا يَبْقَى مِنَ الْإِسْلَامِ إِلَّا اسْمُهُ وَلَا يَبْقَى مِنَ الْقُرْآنِ إِلَّا رَسْمُهُ».[2]

"پهٔ خلقو به داسې دُور او داسې زمانه راشي چې خلقو کښې به صرف د اسلام نوم پاتې شي".

---

(1) [رواه الترمذي، رقم: (3701)].

(2) [رواه البيهقي في "شعب الإيمان"، رقم: (1763)].

هر سړے به دعوی کوي چې زۀ مسلمان یم، لیکن دے کامل مسلمان چرې هم نۀ شي جوړیدے، دا خو د منافقانو هغه ایمان وو، چې ظاهري شکل ئې د مسلمان جوړ کړے وو، او حقیقت کښې منافقت کولو، ظاهرې شکل ئې د مسلمان جوړ کړے دے، او باطن کښې دے بالکل د اسلام نه پاک دے، دا هغه مصنوعي اسلام دے، صرف د اسلام نوم باقي دے او د قرآن به صرف رسم باقي پاتي شي، هر سړے به تلاوت کوي او عمل به نۀ کوي.

**د سیدنا ابو الدرداء ﷛ حالت**

سیدنا ابو الدرداء ﷛ جومات ته لاړو، او مونځ ئې اُوکړو، او واپس کور ته راغلوَ، ابو الدرداء ﷛ غُصه دے، بي بي ترې تپوس کوي، ولې څۀ وجه ده چې تۀ دومره غُصه ئې؟ هغه ورته وائي: هغه طریقې چې د نبي ﷺ زمانه کښې وې، هغه ټولو خلقو پرېښودي دي. صرف هغې وخت کښې به خلقو مونځ پۀ جمع باندې کولو، او نن هم پۀ جمع باندې مونځ کوي، هغې وخت کښې خلقو داسې کول، نو کۀ اُوس وخت کښې الله یَو صحابي ژوندے کړو، او دا ماحول ئې اُوکتو، نن خو هغه مونځ هم خلق داسې کوي چې شکل ئې د مونځ نۀ دے.

نو ددي تاوان نه به څنګه بچ کیږو، چې مونږ کامل ایمان راوړو، کامل ایمان څۀ دے؟ چې کومه د الله او د الله د پیغمبر خبره ده، چې هغه اُومنو، کۀ د دین او دُنیا مقابله راغله، نو مونږ به دین غوره کوو، او دُنیا به پریدو.

**د دُنیا باره کښې د نبي ﷺ فرمان مبارک**

رسول الله ﷺ فرمائي: «الدُّنْيَا سِجْنُ الْمُؤْمِنِ، وَجَنَّةُ الْكَافِرِ».[1]

"دُنیا د مؤمن دپاره جیل دے، او د کافر دپاره جنت دے".

مسلمان به دُنیا کښې داسې ژوند تیروي، لکه څنګه ژوند چې یَو سړے جیل

---

(1) [رواه مسلم، رقم: (2956)].

کښې تېروي، دے به بالکل د الله خلاف نهٔ کوي، دے به تمام اعمال د آخرت دپاره کوي. او نبي ﷺ فرمائي: دُنیا د کافر دپاره جنت دے، دا دُنیا د کافر د مزو ځائے دے، دا د مسلمان د مزو ځائے نهٔ دے، مسلمان به دُنیا کښې د آخرت د آبادولو کوشش کوي.

حدیث کښې راځي، سیدنا عمر فاروق رضی الله عنه یو ورځ راغے، او رسول الله ﷺ پهٔ یو پوزې باندې ملاست وو، هغه پوزے د مېزرې نه جوړ شوے وو، او نبي ﷺ پهٔ هغې باندې ملاست وو، او د نبي ﷺ سَر مبارک ته یو بالخت پرُوت وو، د هغې بالخت اوچاړ د څرمنې نه وو، او دننه پهٔ هغې بالخت کښې د کجورو پتې بندې شوې وې، نبي ﷺ پهٔ هغې باندې سَر مبارک کیخودے وو، او پهٔ هغې پوزې باندې پهٔ زمکه باندې ملاست وو، چې کله عمر رضی الله عنه د هغهٔ حال ته اُوکتل، نو عمر رضی الله عنه پهٔ ژړا باندې شو، او ورته وائي: د الله پیغمبره! دغه د قیصر خلقو ته اُوګوره او کسرٰی ته اُوګوره دا څومره کافران دي، او د الله دوشمنان دي، لیکن الله ورله دومره مال ورکړے دے، چې هغوي پهٔ اُوچتو اُوچتو تختونو باندې ناست دي، او تهٔ د الله محبوب پیغمبر ئې او تهٔ پهٔ پوزکو باندې ملاست ئې، چې ستا بدن کښې نښې جوړې کړې دي، نبي ﷺ ورته وائي: اے عمره! دا مزې خو د کافرانو دپاره دُنیا کښې دي، او د مسلمانانو دپاره به دا مزې پهٔ آخرت کښې او جنت کښې میلاویږي.

بل حدیث کښې راځي، د نبي ﷺ سره سیدنا عبد الله بن مسعود رضی الله عنه راغے، او ورته وائي: اے د الله پیغمبره! د الله نه سوال اُوکړه، چې الله تاله داسې مال درکړي، لکه څنګه مال ئې چې روم والو له ورکړے دے، قیصر او کسرٰی ته ئې ورکړے دے، داسې مال د الله نه اُوغواړه، تهٔ خو د الله پیغمبر ئې، او دغه کافران دي، نبي ﷺ ورته یو عجیبه خبره کوي، نبي ﷺ ورته وائي: «مَا أَنَا فِي الدُّنْيَا إِلاَّ كَرَاكِبٍ اسْتَظَلَّ تَحْتَ

شَجَرَةٍ ثُمَّ رَاحَ وَتَرَكَهَا».[1]

"واه ابن مسعوده! زما او د دُنیا خو داسې مثال دے لکه یَو مسافر چې لار باندې روان دے، او د هغې مسافر گرمې اُوشوه، سترے شو، راغے د یَو وُنې لاندې کیناستو او لږ غونډې آرام کوې" دے ځان له د سورې د لاندې بنکلې نۀ جوړوې، دے ځان له د سُور د لاندې بسترې او قالینونه نۀ غوړوې، صرف لږ ساعت دپاره د سُورې لاندې ناسته کوې، او بیا خپل سفر باندې روانیږي، ابن مسعوده! زۀ خو چې دُنیا ته راغلے یم زۀ د آخرت پۀ سفر باندې روان یم، زما او د دُنیا خو دومره تعلق دے، لکه یَو مسافر چې د سُورې لاندې ناست دے، صرف خپل گزران دُنیا کښې تیروم، زما مقصد آخرت دے چې ماله به الله راکوې. دا د نبي ﷺ حال دے.

سیده عائشه صدیقه ﵂ فرمائي: چې نبي ﷺ د دُنیا نه لاړو او د نبي ﷺ کور کښې چرته هغوي درې ورځې پۀ مړه باندې ډوډۍ نۀ ده خوړلې.[2]

درې درې ورځې به د نبي ﷺ پۀ کور کښې اُور نۀ بلیدو، د خوراک به څۀ نۀ وو، او چې ډوډۍ به ئې خوړه نو ترکارې به نۀ وه، صرف سَرکه به وه، او چې سَرکه به میلاؤ شوه، نو نبي ﷺ به وئیل: سَرکه ډیره ښکلې تَرکارې ده، نبي ﷺ به د هغې سره ډوډۍ خوړه. لیکن مقام ئې څومره اوچت دے، د صحابه کرامو مقام څومره اوچت دے، دا تاوان نه سرے پۀ مال نۀ بچ کیږي، د تاوان نه سړے پۀ ایمان بچ کیږي. نو الله فرمائي: ﴿إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ "مگر هغه کسان د تاوان نه بچ دي چې هغوي ایمان راوړے دے، او هغوي نیک اعمال کوې".

---

(1) [رواه الترمذي، رقم: (2377)].

(2) [رواه مسلم، رقم: (2976)، والترمذي، رقم: (2358)].

**عمل صالح څهٔ ته وائي؟**

عمل صالح هغې ته وائي: چې هغه پهٔ طريقه د نبي ﷺ باندې وي، نو هغه نيک عمل دے، او کهٔ د هغهٔ پهٔ طريقه باندې نهٔ وي نو هغه نيک عمل نهٔ دے، کهٔ هر څومره ښهٔ عمل دے.

**د قاضي بيضاوي رحمه الله قول**

قاضي بيضاوي رحمه الله وائي: "الصَّالِحَةُ مِنَ الْأَعْمَالِ مَا سَوَّغَهُ الشَّرْعُ وَحَسَّنَه".[1]

"نيک عمل هغه دے چې هغه نبي ﷺ کړے وي، چې پهٔ شريعت د نبي ﷺ کښې شته"، نو هغه نيک عمل دے، او کهٔ نبي ﷺ يَو کار نهٔ دے کړے، نو هغه نيک عمل نهٔ دے.

(3) دريم شرط: ﴿وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ﴾ "هغه خلق د تاوان نه بچ دي چې هغوي يَو بل ته د حق بيان کوي"، يَو بل ته پهٔ حق باندې حکم کوي، حق څهٔ ته وائي؟ مفسرين ذکر کوي: "د الله پهٔ تابعدارئ باندې او د الله د پيغمبر پهٔ تابعدارئ باندې يَو بل ته حکم کوي" دا خلق د تاوان نه بچ دي. خپله هم ښهٔ کار کوي، او نُور خلق هم ښهٔ کارونو ته رابلي، دا خلق ﴿وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ﴾ داخل دي.

(4) څلورم شرط: ﴿وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ﴾ "يَو بل ته پهٔ صبر باندې وصيت کوي"، تکليف ورته د الله پهٔ لاره کښې راځي، مشکلات راځي، دوي يَو بل ته د الله پهٔ دين باندې د صبر کولو وصيت کوي، يَو بل ته د صبر تلقين کوي، چې کلک شه، ددې بدلې به راله الله آخرت کښې راکوي. دا خلق د تاوان نه بچ دي. دا يَو ډير جامع سورت دے.

---

(1) [تفسير البيضاوي تحت آية سورة البقرة: 25].

### د امام شافعي رحمه الله قول

امام شافعي رحمه الله فرمائي: کچرې پدې سورت کښې يَو سړے سوچ اُوکړې، نو کهٔ دا تول قرآن کريم نهٔ وے نازل شوے، او دا يَو سورت عصر نازل وو، نو دا هم د خلقو دپاره کافي وو، کهٔ يَو ذي عقل انسان پهٔ دې کښې سوچ اُوکړي.

کوم حديث چې ما وئيلے وو، نبي ﷺ فرمائي: «نِعْمَتَانِ مَغْبُونٌ فِيهِمَا كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ: الصِّحَّةُ وَالفَرَاغُ».[1]

"دوه نعمتونه داسې دې چې زيات خلق پهٔ هغې کښې پهٔ تاوان کښې دې"، دوه نعمتونه الله پهٔ خلقو باندې کړې دې، او خلق د هغې شکريه نهٔ آداء کوې.

(1) يَو «الصِّحَّةُ»: يَو صحت دے، روغ بدن دے، چې الله ورله ورغ بدن ورکړے دے، او دے پدې روغ بدن د الله شکريه نهٔ اداء کوې، د الله د رضا کارونه نهٔ کوې، نو ددې نعمت باره کښې به ترې الله تپوس کوې.

(2) دويم «وَالفَرَاغُ»: دويم فارغ وخت دے، چې فارغه وخت ورله الله ورکړے دے، موقع ورله الله ورکړې‌ده، او دے پکښې د الله حکمونه نهٔ منې، دا سړے پدې فراغت کښې تاوانې دے.

بعض خلقو ته فراغت ميلاؤ شې، نو هغه پهٔ ګناهونو کښې مبتلا شې، او د الله د رضا کارونه پکښې نهٔ کوې. ډير بيماران د صحت پهٔ آرمان دې، چې الله مونږ له صحت راکړه، نو مونږ به ستا د دين خدمت اُوکړو، او تاله الله روغ بدن درکړے دے، او تهٔ د الله حکم نهٔ منې، مونږ له پکار دې، چې د خپلو اعمالو اصلاح اُوکړو، او مونږ د هغې ځائے دپاره محنت اُوکړو، چې هغه هميشه دپاره ځائے دے، چې هغه د

(1) [رواه البخاري، رقم: (6412)، والترمذي، رقم: (2304)].

آخرت محنت دے، چې د آخرت محنت او کوشش اُوکړو، زمونږ آخرت به ښکلې جوړيږي. زمونږ آخرت به هله جوړيږي چې مونږ د هغې خلقو سره ناسته پاسته اُوکړو، کوم خلق چې مونږ ته د آخرت لار سَموي، د علماء کرامو سره کينو د نيکانو خلقو سره کينو، نو مونږ ته به آخرت ياديږي، او که دا کار نۀ کوو، بلکه د بدعمله خلقو سره کينو نو ورځ پۀ ورځ به ګناهونو کښې مبتلا کيږو.

## د ښۀ او بد ملګرې مثال

رسول الله ﷺ فرمائي: د نيک عمله او بد عمله انسان مثال داسې دے، لکه عطر فروش او د لوهار، اُوس که ستا ملګرتيا د عطر فروش سره ده تۀ د عطر فروش دوکان کښې ناست ئې، يا به هغه تاله عطيه درکړې، ستا ملګرے دے، نو يَو شيشه به د عطرو ډکه کړي او تاله به ئې درکړې، نو ستا نه به خوشبوئ ځي، يا به ترې څان له پۀ پيسو باندې واخلې، او که پۀ پيسو دې هم وانۀ غستله نو هغه خوشبوئ خو چرته تلې نۀ دې هغه به درباندې خامخا راځي، چې د عطرو پۀ دوکان کښې ناست ئې.

او کله چې ستا ملګرتيا د يَو لوهار سره ده، او تۀ د هغۀ سره دوکان کښې ناست ئې، نو يا خو به ستا کپړې اُوسوزي، يا به ستا کپړې تُورې شي، او که دغه نۀ وي نو هغه بدبوئې خو چرته تلې نۀ ده، د اِيرو هغه ګرد وغبار خو چرته تلے نۀ دے.

نو نبي ﷺ فرمائي: د نيک عمله انسان نه به تاته فائده ميلاويږي، يا به تاته څۀ علم اُوښائي، او که دغه نۀ وي نو پۀ هغۀ چې کوم رحمتونه راوريږي، پۀ هغې کښې ورسره تۀ شريک ئې، او بدعمله ملګرې سره چې کرځې نو هغه به تا پۀ ګناهونو کښې مبتلا کړي، او که داسې وُنۀ شي، نو پۀ هغۀ چې کوم قهر او غضب نازليږي، نو پۀ تا به هم دغه قهر او غضب نازليږي.

### د لقمان حکیم ﷺ خپل بچي ته نصیحت

«يَا بُنَيَّ! إِذَا رَأَيْتَ قَوْمًا يَذْكُرُوْنَ اللهَ تَعَالَى فَاجْلِسْ مَعَهُمْ» "کله چې ته داسې خلق اُووینې چې هغوي د الله تذکرې کوې، د الله او د الله د پیغمبر خبره کوې راشه دغې خلقو سره کینه" کچرې ته عالم ئې نو «يَنْفَعُكَ عِلْمُكَ» "تاله به ستا علم فائده درکړې"، جاهل ئې نو هغوي نه به څۀ واورې نو تا نه به عالم جوړ شې، او بچیه! کۀ نۀ عالم جوړ شوې، او نۀ تا د هغوي نه څۀ یاد کړل، نو پۀ هغوي چې کوم رحمتونه راوريږي، پۀ هغې کښې ورسره تۀ شریک ئې. او بیا ورته وائي: خبردار! د ناکاره خلقو سره مۀ کینه؛ ځکه تۀ عالم سړے ئې او ستا ناسته د ناکاروه خلقو سره ده، نو تاله ستا دا علم هیڅ فائده نۀ درکوې، او کچرې تۀ جاهل ئې، او د ناپوهه خلقو سره ناسته پاسته کوې، نو ستا دا جهل او ناپوهې به نوره هم سیوا شې، او کۀ چرې هیڅ هم ونۀ شې نو پۀ هغوي چې کوم قهر او غضب نازلیږي تۀ ورسره هم پۀ دغه قهر او غضب کښې شریک ئې.[1]

الله دې د عمل کولو توفیق راکړې.

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)



(1) [روح البیان تحت آیة سورة البقرة: 152].

بسم الله الرحمن الرحيم

وَمَنْ أَعْرَضَ عَن ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَىٰ

(سورة طه: 124)

# موضوع

# دَ قرآن کريم نه دَ مخ اړولو سزا

بمقام: جلبئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# د قرآن کريم نه د مخ اړولو سزا

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ به وَنَتَوكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِه اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آله وَأَصْحَابه وَسَلَّمَ عَبْدَهٗ وَرَسُوْلَهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنْكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَى * قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِي أَعْمَى وَقَدْ كُنْتُ بَصِيرًا * قَالَ كَذَلِكَ أَتَتْكَ آيَاتُنَا فَنَسِيتَهَا وَكَذَلِكَ الْيَوْمَ تُنْسَى﴾.[1]

وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ اللهَ يَرْفَعُ بِهٰذَا الْكِتَابِ أَقْوَامًا، وَيَضَعُ بِهِ آخَرِينَ».[2] (أو كما قال رسول الله ﷺ).

زما عزتمندو، مسلمانانو رونړو! ما ستاسو مخکښې د قرآن کريم نه د سورت طه درې آياتونه مبارکه أولوستل، او د احاديثو د رسول الله ﷺ نه ما ستاسو مخکښې يَو حديث مبارک عرض کړو.

عزتمندو! حقيقت دا دے، چې قرآن کريم داسې يَو انقلابي کتاب دے، چې انسان کښې انقلاب بغير د قرآن کريم نه پهٔ بل څهٔ باندې نهٔ راځي، الله رب العزت

(1) [سورة طٰه: 124-126].

(2) [رواه مسلم، رقم: (817)].

په مَا كَان ومَا يَكُون باندې عالم دے، چې كله الله انسانان پيدا كول، د انسانانو د پيدا كولو نه مخكښې الله د انسانانو په حال عالم وو، نو كۀ دديې انسانانو اصلاح د آسماني كتابونو نه بغير په بل څۀ باندې كيدے شوه، نو الله به آسماني كتابونه نۀ راليږل. او بيا آخر كښې الله داسې يَو كتاب راوليږلو، چې مخكښې كتابونه صرف د هغې اُمت سره خاص وو، او د هغې پيغمبر سره خاص وو، چې هغه پيغمبران د دُنيا نه تلې دې، نو د هغۀ هغه شريعت هم ختم شوے دے، بيا نوے شريعت شروع شوے دے، او قرآن كريم الله داسې كتاب راوليږلو چې د جناب محمد رسول الله ﷺ د راتلو نه وروستو تر قيامته پورې د تمامو مسلمانانو د هدايت دپاره كافي كتاب دے، مخكښې كتابونه خاصو قومونو ته ليږلے شوې وو، مخكښې انبياء عليهم السلام خاصو قومونو ته ليږلے شوې وو، د جناب محمد رسول الله ﷺ خصوصيت او د قرآن كريم خصوصيت دا دے چې دا د تمامو مخلوقاتو دپاره دے.

**د نبي ﷺ فرمان مبارك**

رسول الله ﷺ فرمائي: «بُعِثْتُ إِلَى الأَسْوَدِ وَالأَحْمَرِ».[1]

"زۀ ليږلے شوے يم د تُور رنګ والا ته، او سُر رنګ والا ته"، زۀ عربو والو ته هم ليږلے شوے يم، او عجمو دپاره هم ليږلے شوے يم.

كله رب العزت فرمائي: ﴿وَمَآ أَرْسَلْنَٰكَ إِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ﴾.[2]

"نۀ دے ليږلے مونږ تا لره مګر د ټولو خلقو دپاره". نو قرآن كريم يَو داسې انقلابي كتاب دے، چې بغير د قرآن نه په بل څۀ انقلاب نۀ راځي، كومه علاقه او كوم كلي كښې چې د الله د كتاب درس او تدريس كيږي، ضرور به الله هغه كلي

(1) [رواه محمد بن علي الترمذي في "نوادر الأصول": 3/ 128].

(2) [سورة سباء: 28].

کښې انقلاب راولي، او چې کوم کلي او علاقه کښې د الله د کتاب درس او تدریس نه وي، نو هغه کلي کښې انقلاب نۀ شي راتللے. قرآن کریم داسې انقلابي کتاب دے.

**د نبي ﷺ د قرآن کریم لوستل**

چې کله جناب رسول الله ﷺ وادي نخله مقام کښې مونځ کوو، او قرآن کریم لولي، نو پیریان راغلي دي، نو هغوي د رسول الله ﷺ نه قرآن اوریدلے دے، نو د یَو څو مِنټو اَوریدلو نه بعد پۀ هغې پیریانو کښې داسې انقلاب راغلے دے، چې هغه پیریان خپل قوم ته دعوت چلوي، قرآن کریم داسې انقلاب کتاب دے، چې پیریانو نه هم د انقلاب والا ښکاري، قرآن کریم کښې الله د پیریانو تذکره کوي: ﴿قُلْ أُوحِيَ إِلَيَّ أَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ فَقَالُوا إِنَّا سَمِعْنَا قُرْآنًا عَجَبًا﴾.[1]

"اے زما پیغمبره! تۀ دي خپل اُمت ته اُووایه چې ما ته وحې کړے شوې ده، چې شان دا دے څۀ کسانو د پیریانو نه هغوي قرآن کریم واوریدو"، کله چې هغوي قرآن کریم واوریدو نو هغې پیریانو کښې څنګه انقلاب راځي، او هغې پیریانو اووئیل: "چې مونږه یَو نا آشنا کتاب واوریدو"، ﴿يَهْدِي إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهِ وَلَن نُّشْرِكَ بِرَبِّنَا أَحَدًا﴾.[2]

"داسې کتاب چې لار ښائي اصلاح طرف ته نو مونږ پرې ایمان راوړو، او هیچرې نۀ شریکوو مونږ د خپل رب سره هیچا لره". د قرآن د وئیلو مقصد دا دے، چې ددي پۀ بیان سره به خلقو له د الله توحید رسوے، کوم ځائے کښې چې انقلاب نۀ راځي، نو وجه دا وي، چې هغه خپله هم توحید نۀ پیژني، او خلقو ته هم توحید نۀ ښائي، چې توحید څۀ ته وائي؟ خپله هم سنت او بدعت نۀ پیژني، او خلق ترې هم نۀ خبرَوي، نو څنګه چې د قرآن حق دے، او دغسې قرآن نۀ وائي نو انقلاب نۀ راځي.

---

[1] [سورة الجن: 1].

[2] [سورة الجن: 2].

هیڅوک پیریانو چې قرآن اوریدلے دے، نو هغوي وائي: مونږ به د خپل رب سره هیڅوک نهٔ شریک کوو، اولنے آواز د توحید کوي. نو د قرآن کریم پهٔ بیان چې کوم انقلاب راځي، دغسې انقلاب پهٔ بل کتاب نهٔ راځي، پهٔ قرآن کریم چې څنګه هدایت حاصلیږي دغسې هدایت پهٔ بل کتاب نهٔ حاصلیږي، قرآن کریم کښې الله فرمائي: ﴿ذَٰلِكَ الْكِتَابُ لَا رَيْبَ فِيهِ هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ﴾.[1]

"دا کتاب چې دے هیڅ شک نشته پدې کښې هدایت دے، د متقیانو دپاره".

کله الله رب العزت فرمائي: ﴿هُدًى لِّلنَّاسِ﴾.[2]

"دا د تمامو خلقو دپاره د هدایت کتاب دے". کله الله رب العزت فرمائي: ﴿وَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ﴾.[3]

"د هدایت او د رحمت کتاب دے د مؤمنانو دپاره"، نو بغیر د قرآن کریم نه هدایت نهٔ شي راتللے بغیر د قرآن کریم نه انقلاب نهٔ شي راتللے.

## قرآن کریم پریښودل

چې کله دي قرآن کریم پریښودو، او بل کتاب پسې روان شوې، نو ګمراه به شې. رسول الله ﷺ فرمائي: «وَمَنْ ابْتَغَى الهُدَى فِي غَيْرِهِ أَضَلَّهُ اللهُ».[4]

"چا چې د قرآن کریم نه علاوه بل کتاب کښې هدایت طلب کړو، نو الله به ئې ګمراه کړي". د هدایت کتاب قرآن کریم دے، نن چې پهٔ ډیرو علاقو کښې انقلاب راغلے دے، دا انقلاب د قرآن کریم د بیان پهٔ وجه باندې راغلے دے.

---

(1) [سورة البقرة: 2].

(2) [سورة البقرة: 185].

(3) [سورة يونس: 57].

(4) [رواه الترمذي، رقم: (2906)].

**د سیدنا عمر فاروق ﷛ واقعه**

هغه عمر فاروق ﷛ چې د اسلام نه مخکښې د مسلمانانو په دوشمنۍ کښې مشهور سړے وو، لکه څنګه چې اسلام کښې مشهور دے. توره ئې راغستې ده، رااروان دے څوک ترې تپوس کوې: چرته ځې؟ هغه ورته وائي: محمد ﷺ قتلوم، وائي: ولې ئې قتلوې، څۀ وجه ده؟ وائي: هغه د نبوت دعوٰی کوې، او زمونږ خدايانو پسې (لات، منات او عُزّی) پسې خبرې کوې، چې هغوي څۀ نۀ شې کولے، لار کښې يَو صحابي مخې له ورغلو، او ورته وائي: چې تۀ هغه نۀ شې وژلے، تۀ به د هغۀ د خاندان نه څنګه خلاص شې؟ پۀ هغۀ باندي دا خبره نا آشنا اولګيده، غُصه ورته ورغله، وائي: زما پۀ خيال تۀ هم مسلمان شوے ئې؟ نو هغۀ ورته اووئيل: آؤ، هغۀ سره ئې جنګ کولو، يَو بل باندې ګوزارونه کوې، نو هغۀ ورته اووئيل: تۀ ورشه د خپل کور حال اُوګوره، چې ستاسو کور کښې ستا اَوخے او ستا خور مسلمانان شوې دې، پدې سيدنا عمر ﷛ نور هم غُصه شو، رااروان شو، او چې کله رانزدې شوې، او هغه اَوخے او خور ئې ناست دې، او سيدنا خباب ﷛ ورته د قرآن يَو پانړه ښائې، سيدنا عمر ﷛ د قرآن هغه آواز واوريدو، آواز ئې چې اُوکړو، نو هغه خو غُصه ناک انسان وو، سيدنا خباب ﷛ خو دننه زر کوټه کښې پټ شو، او هغه خور او اَوخے دواړه چې وو، نو دروازه ئې کولاؤ کړه، چې سيدنا عمر ﷛ دننه راغے، هغه خور ئې هم اُووهله، هغه اَوخے ئې هم اُووهلو، او ورته وائي: چې تاسو خپل دين پريښودے دے، دواړۀ ئې اُووهل، حتّی چې خپلې خور باندې وينې راماتې شوې، او بيا ورته وائي: چې تاسو ماله هغه پانړه راکړئ، چې تاسو اُوس کوم سبق وئيلو، هغې خور ورته اُووئيل: چې دا دغسې نۀ شم درکولے، تردې چې تۀ اول غُسل اُوکړې، سيدنا عمر ﷛ ئې ديته تيار کړو، چې هغۀ مخکښې غُسل اُوکړې، نو غُسل ئې اُوکړو، نو چې راغے نو د قرآن کريم هغه نُسخه

ئې راوغسته، (په ليكلو باندې پوهيدو) نو شروع ئې اُوكړه، ﴿طٰهٰ ۞ مَآ أَنزَلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْآنَ لِتَشْقَىٰ ۞ إِلَّا تَذْكِرَةً لِّمَن يَخْشَىٰ﴾.[1]

(ددې لږ غوندې لوستلو سره د سيدنا عمر ﷺ په زړه كښې نرم والے راغے، يا خو هغه سيدنا عمر وو چې نهايت سخت طبيعته وو، او د خپلې خور او آوخې د وهلو پسې راغلے دے، رسول الله ﷺ پسې توره كرځوله، چې هغه قتل كړې، يا چې كله ئې قرآن كريم آوريدلے دے، نو زړه كښې انقلاب راغلے دے). او سيدنا عمر فاروق ﷺ وائي: ما رسول الله ﷺ ته اُورسوئ، چې زه په هغه باندې ايمان راوړم، سيدنا خباب بن اَرت ﷺ راغے، او ورته وائي: چې عمره زيرے واخله، چې ستا دپاره نبي ﷺ دُعا غوښتې وه. (او نبي ﷺ دُعا دا كړې وه چې هغې وخت كښې مسلمانان نهايت تكليف كښې وو، مسلمانان كمزورې وو، نبي ﷺ دُعا كوې: «اللّٰهُمَّ أَيِّدِ الْإِسْلَامَ بِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ أَوْ بِأَبِي جَهْلِ بْنِ هِشَامٍ».[2]

"يا الله! اسلام له مضبوط والے ورکړې، يا خو زما تره (ابو جهل ابن هشام) مسلمان كړه، يا عمر فاروق ﷺ مسلمان كړه، كوم يَو چې پدې دواړو كښې تاته خوښ وي، نو هغه ته ايمان نصيب كړه).[3] مقصد دا دے چې انقلاب د قرآن كريم سره راځي، د قرآن كريم نه علاوه داسې بل كتاب نشته چې هغې سره انقلاب راشي.

## د صحابه كرامو حالت

هغه صحابه كرام رضي الله عنهم چې د يَو بل دوشمنان وو، د يَو بل سره ئې په

(1) [سورة طه: 1-3].

(2) [رواه الحاكم فى "المستدرك"، رقم: (4486)].

(3) [تفسير القرطبي: 164/11، طبع دار الكتب المصرية - القاهرة].

کلونو دوښمنې تيره شوې وه، د اسلام نه مخکښې په دورِ جاهليت کښې، ليکن کله چې هغوي د قرآن کريم آواز واوريدو، او په ايمان باندې مشرّف شول، نو هغوي د يَو بل رونړه کرځې، قرآن کريم اعلان کوي: ﴿وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنتُمْ أَعْدَاءً فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُم بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا وَكُنتُمْ عَلَىٰ شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَأَنقَذَكُم مِّنْهَا كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ﴾.[1] •

**ترجمه:** "منګولې اُولګوئ په رسئ د الله باندې ټول او مه تَس نَس کيږئ، ياد کړئ نعمت د الله په تاسو باندې کله چې وئ تاسو دوښمنان د يَو بل، پس مينه ئې واچوله په مينځ د زړونو ستاسو کښې، پس اُوګرځيدئ تاسو په نعمت د الله باندې رونړه رونړه، او وئ تاسو په غاړه د دوغل د اُور باندې، پس بچ ئې کړئ تاسو د هغې نه، دارنګې بيانوې الله تاسو ته خپل دلائل ددې دپاره چې تاسو لار اُومومئ".

پدې آيت کښې الله وائي: په قرآن کريم باندې منګولې اُولګوئ؛ ځکه اختلاف ډير ناکاره شے دے، کله کله خلق وائي: ددې مُليانو خپل مينځ کښې اختلاف دے، يَو مُلا يَو څهٔ وائي، بل مُلا بل څهٔ وائي، يَو ځائے نه يَو شان آواز راځي، او بل ځائے نه بل شان آواز راځي، دين يَو دے، پيغمبر يَو دے، مذهب يَو دے، کتاب يَو دے، اسلام يَو دے، يو بيا ولې دومره اختلاف دے؟ مونږ ورته وايُو: اصل کښې تهٔ د حقيقت نه خبر نهٔ ئې، تا خو صرف ديته وکتل چې دا هم مُلا دے، او دا بل هم مُلا دے، د يَو هم سپينې کپړې دې، او د بل هم سپينې کپړې دې، تا صرف ظاهرې شکل ته وکتل، تا حقيقت ته ونهٔ کتل چې دا يَو مُلا د کوم ځائے نه خبره کوې، او دا بل مُلا د کوم ځائے نه خبره کوې، اتفاق خو د الله کتاب سره راځي، کله چې يَو سړے د الله د کتاب خبره کوې نو دې سره اتفاق راځي، عوام خو نهٔ پوهيږي، نو هغوي وائي: هر

[1] [سورة آل عمران: 103].

مُلا د قرآن کریم نه لکیا دے؛ ځکه مخې ته قرآن کریم پروت وي، چې حقیقت کښې سرے د قرآن نه بیان کوي نو بیا اختلاف نهٔ راځي؛ ځکه الله وائي: "قرآن کریم باندې تول منکولې ولکوئ، او د قرآن کریم بیان کښې د چا لحاظ مهٔ کوئ".

د قرآن پیغام خلقو ته رَسَول

الله رب العزت خپل پیغمبر ته وائي: ﴿يَاأَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ وَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾.(1)

"اے زما پیغمبره! اُورسوه خلقو ته هغه مسئلې کومې چې تاته د الله د طرف نه نازلې شوې دي، او کهٔ تا دا کار اُونکړو، نو تا زما اَحکامات ونهٔ رَسَوَل خپل رسالت دے ونهٔ رسَوَلو". یا الله! دا خو ډیر کران کار دے، الله فرمائي: ﴿وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾ "الله به تا د خلقو نه بچ کوي".

نبي ﷺ فرمائي: «العُلَمَاءُ وَرَثَةُ الأَنْبِيَاءِ».(2)

"علماء د اَنبیاؤ وارثان دي". نو د علماؤ کار به دا وي چې الله کوم اَحکامات نازل کړې دي، دا به خلقو ته رسَوَي، امر بالمعروف او نهي عن المنکر د چا نیته نشي رامخکښې کولے، او نهٔ د چا رزق کمولے شي. ﴿قُلْ لَنْ يُصِيبَنَا إِلَّا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَنَا﴾.(3)

"ورته اُووایه چې هغه تکلیف به رارسي کوم تکلیف چې الله مقرر کړے دے". که پهٔ دین باندې مرګ وے، نو شیخ القرآن علامه محمد طاهر ﷬ به پهٔ خپل مرګ نهٔ وے مړهٔ شوے، څومره ځله قاتلانه حملې پهٔ هغهٔ باندې شوې وي، څومره خلقو د هغهٔ د قتل بندوبستونه کړې دي، لیکن هغه پهٔ خپل مرګ مړهٔ دے. مقصد

---

(1) [سورة المائدة: 67].

(2) [رواه الترمذي، رقم: (2682)، وأبو داود، رقم: (3641)].

(3) [سورة التوبة: 51].

زما د خبرې دا دے: چې انقلاب د قرآن کريم سره راځي.

**نجاشي بادشاه کښې د قرآن کريم د وجې نه انقلاب**

هغه نجاشي بادشاه چې له مسلمان شوے نۀ دے، د قرآن کريم د آوريدو سره خومره انقلاب په هغۀ کښې راځي، کله چې صحابه کرام رضي الله عنهم حبشې ته هجرت اُوکړو، د مکې مشران او کافران راجمع شول، وائي: دا صحابه خو هلته لاړل، دوي به هلته ځان له ملګرې پيدا کړي، او ځان به مضبوط کړي، او بيا به مونږ باندې حملې کوي، ځان سره ئې ډالئ تيارې کړې، او نجاشي بادشاه ته ئې ډالئ اُوليږلې، څۀ کسان ئې مقرر کړل، چې تاسو ورشئ او نجاشي بادشاه ته اُووايئ چې ستا دي ملک ته څۀ کسان راغلي دې، د خپل پلار نيکۀ طريقه او دين ئې پرېښودے دے، او ستا ملک ته راغلي دې، زمونږ دين هم نۀ مني، او د عيسى عليه السلام دين هم نۀ مني، د خپل ملک نه ئې اُوباسه، چې مونږ ئې د ځان سره واپس بوځو، نجاشي بادشاه ورته اووئيل: دا کسان ما ته پيش کړئ، چې دا څنګه خلق دے، صحابه کرام رضي الله عنهم راغلل، سيدنا جعفر طيار رضي الله عنه هم پکښې دے، (دوې چې کله راغلل، نو هغۀ خو نجاشي بادشاه وو، د عيسى عليه السلام مذهب والا وو، خو چونکه دغه وخت کښې خو هغوي د عيسى عليه السلام هغه طريقې هم پريښودې وي، خو عيسايان خو وو، نو هغې بادشاه ته به خلقو سجدې کولې، دغه د عربو کوم خلقو چې تلے وو، هغوي ورته هم سجدې اُوکړې، دغه صحابه کرام رضي الله عنهم چې کله راغلل، نو هغوي نجاشي بادشاه ته سجده اُونکړه، دغه شان نيغ راغلل، او د هغۀ مخې ته اُودريدل، او سجده ئې ورته اُونکړه)، دوي ورته اووئيل: اُوګوره جي! دا خومره بے اَدبه دې، خومره غريبانان دې، او ستا ملک کښې اُوسيږي، او بيا هم تاته سجده نۀ کوي، بادشاه ورته وائي: دا سجده مو ولې اُونکړه؟ هغوي ورته اووئيل: ددې نه مخکښې

زمونږ دا سَر به وُنې ته هم ښکته کیدو، دا سَر به کټې ته هم ښکته کیدو، هر شې ته به ښکته کیدلو، د کټو عبادت مونږ کولو، د وُنو عبادت مونږ کولو، مونږ ته الله پیغمبر رااُولیږلو، او هغه مونږ ته اوونیل: چې د یَو الله عبادت اُوکړئ، بیا هغې سردارانو نجاشي بادشاه ته اوونیل: چې دوي د سیدنا عیسی ﷺ منکر دي، بادشاه ترې تپوس اُوکړو، صحابه کرامو ورته اوونیل: چې مونږ راتلو نو اُوس یَو سورت راغے، سورت مریم: ﴿ كٓهيعٓصٓ * ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهُۥ زَكَرِيَّآ * إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُۥ نِدَآءً خَفِيًّا * قَالَ رَبِّ إِنِّى وَهَنَ ٱلْعَظْمُ مِنِّى وَٱشْتَعَلَ ٱلرَّأْسُ شَيْبًا وَلَمْ أَكُنۢ بِدُعَآئِكَ رَبِّ شَقِيًّا ﴾.[1]

دا ئې شروع کړو، نجاشي بادشاه چې د سورة مریم تلاوت واوریدو، نو د نجاشي بادشاه د سترکو نه اُوښکې رواني شوې، او د هغهٔ د پادریانو د سترکو نه هم اُوښکې رواني دې. (داسې انقلابي کتاب دے). او د مکې هغه مشرکانو ته وائي: چې دوي زما پهٔ ملک کښې کوم ځائے کښې چې ګرځي نو دوي آزاد دي، دوي زهٔ د خپل ملک نه نهٔ اُوباسم، او وائي: زهٔ پوهه شوم چې دا کتاب او کوم کتاب چې پهٔ عیسی ﷺ باندې نازل شوے وو یَو ذات رالیږلي دې. نجاشي بادشاه باندې د قرآن اوریدو انقلاب راوستو، او بیا هغه وروستو مسلمان شوے دے؛ ځکه نبي ﷺ پهٔ هغه بان دې غائبانه جنازه کړې وه.

اوس هم بعضې خلق راپاسي، وائي: مونږ غائبانه جنازې کوو، ولې؟ وائي: نبي ﷺ چې نجاشي بادشاه باندې غائبانه جنازه کړې وه، هغه خو د نبي ﷺ معجزه وه، داسې بل یَو کس اُوښایئه چې نبي ﷺ پهٔ هغه باندې غائبانه جنازې کړې وي، صرف نجاشي بادشاه مړ وو، نورو ځایونو کښې صحابه کرام مړهٔ شوې نهٔ دي؟ هغه نبي ﷺ ته معجزتًا الله مخې ته راوړے وو، دا بغیر د نجاشي نه نبي ﷺ د چا غائبانه

(1) [سورة مریم: 1-4].

جنازه نهٔ ده کړې، غائبانه جنازه عمر فاروق ﷺ نهٔ ده کړې، ابو بکر صدیق ﷺ نهٔ ده کړې، صحابه کرامو کښې چا غائبانه جنازه نهٔ ده کړې.

نو مقصد دا دے کهٔ پو سړے وائي: چې پدې ملک کښې انقلاب راشي، پدې خلقو کښې انقلاب راشي.

لکه اوس خلق نوې نوې ایجادات کوي، خو دا خبره یاد اُوساتئ! چې بغیر د قرآن نه پهٔ بل کتاب انقلاب نهٔ راځي، د انقلاب دپاره واحد د الله کتاب او سنت د نبي ﷺ کافي دې. ددې دپاره خلقو مختلفې طریقې اُوکړې، چا وئیل: چې د حکومت نه به انقلاب راشي، ګُرسو ته اُورسیدل، حکومت ته اُورسیدل، خو لیکن قرآن پاتې شو، انقلاب پهٔ خلقو کښې رانغلے، هغه خلق چې د هغوي د اول نه مشن د قرآن وو، شیخ القرآن علامه محمد طاهر ﷺ چې اول ئې وَړُو ماشومانو ته قرآن شروع کړے وو، او هغوي باندې ئې قرآن کریم یاد کړے وو، اُوس هم د هغوي مشن قرآن کریم دے، ان شاء الله تر مرګه پورې به زمونږه مشن قرآن کریم ئې. الله دې مونږ او تاسو پدې خپل مشن بر قرار اُوساتي.

اوس کوم خلق چې د قرآن کریم نه مخ اَړوي، د قرآن کریم نه اِعراض کوي، قرآن کریم ته شاه کوي، نو د هغه خلقو څهٔ حال دے؟ پدې دُنیا کښې هم ذلیل او رسوا دي، او آخرت کښې خو خود ذلیل او رسوا دي.

نن چې دا مسلمانان دومره پهٔ ذلت او دومره پهٔ ښکته راروان دي، دا ولې؟ یا خو هغه دُور وو، چې درې سوه دیارلس صحابه کرام رضي الله عنهم پهٔ تمامه دُنیا کښې د هیچا نه نهٔ یریږي، د زرو کافرانو سره جنګیږي، او د چا نه نهٔ یریږي، او هغوي ته فتح میلاویږي، یا خو هغه دُور وو، چې د مسلمانانو یَو اَدنیٰ اَمیر بادشاه ته مخامخ ولاړ دے، او هغهٔ ته وائي: "أَسْلِمْ تَسْلِمْ" اسلام رواړه، بچ به شې ګنې مونږ

صحابه کرامو تا باندې حمله کوو، یا خو هغه دور وو، چې مسلمانانو به کافرانو ته خطونه لیږل چې اسلام راوړئ کنې خیر مو نشته، او یا هغهٔ دور راغے چې مسلمانانو باندې غیر مذهبه دباؤنه کوي، چې د خپلې خبرې نه واپس شئ، کنې ستاسو خیر نشته، څوک د قرآن درس بندوي، وائي: ددې نه شر جوړیږي، څوک احادیث بندوي، وائي: ددې نه شر جوړیږي، حق څوک نهٔ شې وئیلے، هر سړے یریږي، وجه څهٔ ده؟ اصل وجه دا ده: چې مونږ د الله کتاب پریښودے دے، دا مونږ یَو رَواجي غوندې کتاب ګرځولے دے، نو زمونږ د زړونو نه هغه انقلاب ختم شوے دے، زمونږ د زړونو نه هغه جذبه ختمه شوې ده، ددې وجې نه غیر مذهبه مونږ باندې غُصې کوي، غیر مذهبه مونږ باندې ځان زُورَور حسابوي، کچرې یَو مسلمان خپله سینه کښې قرآن وردننه کړو، او ددهٔ عقیده او عمل د قرآن کریم مطابق برابر شول، یاد ساتئ! مسلمان به چرته هم د کافرانو نه ونهٔ یریږي. الله رب العزت فرمائي: ﴿وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنْكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَى﴾.[1]

"الله وائي: چا چې زما د کتاب نه مخ واړولو، یقینًا د هغهٔ زندګي به ډیره زیاته تنکه وي"، یَو معنی خو علماء کرام دا کوي چې "د دُنیا دا زندګي به ئې ډیره زیاته تنکه وي"، چرته به ورته سُکون نهٔ میلاویږي، چرته به ورته راحت نهٔ میلاویږي، ولې چې د الله کتاب ئې پریښودو، الله به دهٔ باندې دا توله زندګي تنکه کړي. دُنیا کښې به ورته سُکون نهٔ میلاویږي؛ څکه چې حدیث قدسي دے، نبي ﷺ فرمائي: چې الله فرمائي: «يَا ابْنَ آدَمَ تَفَرَّغْ لِعِبَادَتِي أَمْلأْ صَدْرَكَ غِنًى وَأَسُدَّ فَقْرَكَ، وَإِلاَّ تَفْعَلْ مَلأْتُ يَدَيْكَ شُغْلاً وَلَمْ أَسُدَّ فَقْرَكَ».[2]

---

(1) [سورة طٰهٰ: 124].

(2) [رواه الترمذي، رقم: (2466)].

"اے بني آدمه! ته زما عبادت ته ځان اُوزګار کړه، زما عبادت ته ځان فارغ کړه، زهٔ به ستا سينه د مالدارئ نه ډکه کړم، او ستا فقر او غريبي به ختمه کړم".

کهٔ ظاهرًا درسره مال نهٔ وي، ظاهرًا درسره دولت نهٔ وي خو ستا سينه کښې به ما داسې اِستغناء کيښودې وي، ستا به هيچا ته ضرورت نهٔ راځي، ستا سترګې به مړې وي، ستا زړه کښې به صبر او قناعت پيدا کړم، لږ مال کښې به ستا دپاره ډير خير او برکت واچوم، او کچرې داسې کار دې اُونکړو، نو لاس به دې د کار نه نهٔ خالي کوم، او ستا غريبي به هم نهٔ ختموم، زړهٔ او سترګې به دې دغه شان اُوږې وي.

دا څوک چې دُنيا کښې ډير مُستغرَق (وړډوب) دې، چې نهٔ مونځ ته اُوزګاريږي، او نهٔ قرآن ته اُوزګاريږي، دا ئې الله نهٔ اُوزګاروې، سحر به هم لګيا وي، ماښام به هم لګيا وي، چرې به هم دے موړ نهٔ شي. تهٔ د الله دين ته ځان اُوزګار کړه، الله به رزق درکوې، د دُنيا ګټل ناجائز نهٔ دې، دُنيا ګټه، خو داسې مهٔ کوه چې د دين او دُنيا مقابله راځي، دين پريدې او دُنيا پسې ځې، داسې کوه چې دُنيا هم ګټه، او دين هم ګټه، خو چې کوم ځائے کښې د دواړو مقابله راځي، نو بيا به دُنيا پريدې او دين به اخلې، نو دُنيا به دې هم ښهٔ وي، او آخرت به دې هم ښه وي، او کهٔ چرې دغسې نهٔ وي، نو دُنيا دې هم تباه ده، او آخرت دې هم تباه دے.

قال الشاعر:

نرقع دنيانا بتمزيق ديننا      فلا ديننا يبقى ولا ما نرقع[1]

يو شاعر وائي: مونږ دُنيا ته پيوند اُولګولو پهٔ پيوند کولو د دين باندې چې د دُنيا تقاضا راشي، نو دين نه لږه ټکړه جدا کړو، او دُنيا ته ئې اولګوو، دين مو هم تباه کړو، او آخرت مو هم تباه کړو، نهٔ راسره دين باقي پاتې شو، او نهٔ راسره دُنيا باقي پاتې شوه.

[1] [روح البيان تحت آية سورة الأعراف: 41].

الله رب العزت فرمائي: ﴿وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ﴾.[1]

"نۀ دے ژوند د دُنیا مګر څکه ده دهوکې ده".

## د دُنیا مثال

د دُنیا داسې مثال دے، يَو سړے اُودۀ دے، او پۀ خوب کښې لُوې لُوې بادشاهۍ اوليدلې، اُوچت اُوچت محلّات ئې اُوليدل، کله پکښې ګدا شي، او کله پکښې بادشاه شي، نو چې را وِيخ شي، نو بيا هيڅ شے نۀ وي، نن درسره مال دولت شته، يَو څو ورځې پس به درسره هيڅ شے نۀ وي.

يَو سړي خوب ليدلے وو، غوا ئې لاس کښې نيولے ده، ميله کښې ولاړ دے، يَو سړے ورپسې راغے، او ورته وائي: دا غوا پۀ څو خرڅے؟ نو دۀ ورته اُووئيل: دا پۀ اَتلَس زره خرڅوم، هغۀ ورته اووئيل: نه کۀ پۀ پنځلَس زره ئې راکوې، نو ښۀ ده، کني نۀ ئې اَخلم، دے ورته وائي: نه پوره پۀ اَتلَس زره ئې خرڅوم، د دواړو خبرې شروع دي، پدې کښې د خوب نه راپاسيدو، نۀ غوا شته، نۀ مالک شته، نۀ پيسے شته، ده بيا سترګې پټې کړې، او ځان سره وائي: دغه پنځلَس زره روپۍ راوړه، دغه هم ډيرې دي، نو هغه چرته وي؟ د دُنيا دغه مثال دے، نن به درسره هر څۀ وي، صبا به درسره هيڅ نۀ وي.

## پنځۀ څيزونه غنيمت ګڼکښې د پنځو نه

رسول الله ﷺ فرمائي: «اغْتَنِمْ خَمْسًا قَبْلَ خَمْسٍ» "پنځۀ څيزونه غنيمت اُوګنړه ګڼکښې د پنځو نه":

(1) يَو «شَبَابَكَ قَبْلَ هَرَمِكَ»: "ځوانې غنيمت اُوګنړه ګڼکښې د بوډا والې نه". الله دربانديې داسې دُور راوستے دے، چې لاس دې روغ دي، خپې دې روغې دې، غوږونه

(1) [سورة آل عمران: 185].

دي روغ دي، تول بدن دي روغ دے، پدې ځوانۍ کښې د الله د دین خدمت اُوکړه، هسې نۀ چې بوډا شې، او بیا اَرمانونه کوې، بیا به در نه وخت تلے وي، دا ځواني صرف الله د دُنیا دپاره نۀ ده درکړې، پدې ځوانۍ کښې د الله د دین خدمت اُوکړه.

(2) دویم «وَصِحَّتَكَ قَبْلَ سَقَمِكَ»: "خپل صحت غنیمت اوګنړه مخکښې د بیمارۍ نه"، بدن دي روغ دے، پدې روغ بدن د الله د دین خدمت اُوکړه، بیا به کټ کښې پروت ئې، او اَرمان به کوې چې هائے! الله چې زما بدن کښې دومره طاقت وے چې ستا د دین خدمت مې کړے وے، نو څومره به ښۀ وے، نن درله الله روغ بدن درکړے دے، ددي روغ بدن شکریه اداء کړه.

(3) دریم «وَغِنَاكَ قَبْلَ فَقْرِكَ»: "مالدارې ستا مخکښې غنیمت اُوګنړه د غریبۍ نه"، مال الله درکړے دے، د الله پۀ دین ئې اُولګوه، صبا به بیا غریب ئې، او بیا به وائې: ما سره مال نشته کنې ما به د الله پۀ دین باندې مال لګولے وے، اوس د الله پۀ دین باندې مال اُولګوه.

(4) څلورم «وَفَرَاغَكَ قَبْلَ شُغْلِكَ»: "فارغه ناسته ستا غنیمت اُوګنړه، مخکښې د مشغولتیا ستا نه"، داسې دُور به راشي چې فارغ وخت به درسره نۀ وي، نو بیا به وائې: چې ډیر زړۀ مې کیږي، خو وخت به درسره نۀ وي، ددي وجې نه د عربۍ معقوله ده: "لَا تَدْفَعَنَّ عَمَلًا عَنْ وَقْتِهٖ" "تۀ یَو کار د خپل وخت نه مۀ وروستو کوه"، د بل وخت دپاره ځکه کیدے شې، د هغه وخت دپاره داسې یَو کار وي، چې بیا هغې کښې بل کار وي، او دا کار هم تۀ وروستو کړے، بیا به د ټولو کارونو طاقت نۀ شې لرلے، د دین د کار دپاره خپل وخت مقرر کړه، او د دُنیا د کار دپاره خپل وخت مقرر کړه، نو دواړه به چلیږي.

چې نن زمانه کښې هم یَو سړے ځان جاهل پریدې، نو دا نهایت بدبخته انسان دے، او دا حجت پدې خلقو قائم شو، زنانو به وئیل: چې مونږ څنګه مسئله واورو،

الله رب العزت داسې آلات پيدا کړل چې په هر کور کښې نارينه او زنانه د قرآن درس آوريدے شي، الله د خلقو هغه عذر ختم کړو، چې ځان ته دي په درې ځلور سوه ريډيو واغستو، نو خپل کور کښې پرې د قرآن او حديث درس آوره، قيامت کښې ځوک دا نه شي وئيلے چې الله زۀ ناخبره ووم. نو "فارغ وخت غنيمت اُوګڼړه، مخکښې د مشغولتيا نه".

(5) «وَحَيَاتَكَ قَبْلَ مَوْتِكَ»: "دا خپل ژوند غنيمت اُوګڼړه، مخکښې د مرګ خپل نه".[1]

د مرګ نه مخکښې نيک اعمال اوکړه، د الله کتاب زده کړه، او په هغې عمل اُوکړه، د الله د حکمونو تابعدارې اُوکړه، کنې مرګ به درباندې راشي او بيا به آرمان کوې، چې يا الله! ما دُنيا ته واپس کړ، زۀ به ډير نيک عملونه اُوکړم، خو بيا دُنيا ته راتلل ګران دي.

رسول الله ﷺ فرمائي: «فَإِنَّكُمُ الْيَوْمَ فِي دَارِ الْعَمَلِ وَلاَ حِسَابَ وَأَنْتُمْ غَدًا فِي دَارِ الْآخِرَةِ وَلاَ عَمَلَ».[2]

"نن تاسو د عمل په ميدان کښې يئ، حساب کتاب درسره نشته، صبا به په داسې يَو مقام کښې يئ چې صرف حساب کتاب به کيږي، هلته نور عمل نۀ کيږي". نو کۀ دلته نيک اَعمال اُونکړې نو قبر کښې نيک اعمال نۀ کيږي، ميدان محشر کښې نيک اعمال نۀ کيږي، بيا به آرمانونه کوو، خو آرمان څۀ فائده نۀ ورکوي، د انسان دا ژوند ډير قيمتي دے، خو کۀ انسان پدې پوهه شو.

(2) دويمه معنى: ﴿وَمَنْ أَعْرَضَ عَن ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنكًا﴾

الله وائي: "چا چې زما د کتاب نه مخ واړولو، د هغۀ د دُنيا دا ژوند به ډير زيات تنګ وي،" هيڅ خوشحالي به ورته مۀ ميلاويږي، مال او دولت به ډير وي، ليکن په

(1) [رواه الترمذي، رقم: (2333)].

(2) [رواه البيهقي في "شعب الإيمان"، رقم: (10132)].

هغې مال او دولت کښې به د هغهٔ دپاره څهٔ خوند او سُکون نهٔ وي.

يَو څل ما سره يَو سړے جومات ته راغے، او ماته وائي: چې زهٔ انګليند، دوبئ او کويت ته تلے يم د مال دولت ما سره څهٔ کمے نشته، بچې مې شته ښځه مې شته، جائيداد مې شته، خو حيران پدې يم چې يَوځائے کښې ماته راحت او سُکون ميلاؤ نهٔ شو. نو چې ما د هغهٔ هغې حالت ته اُوکتل، نو يقينې چې د هغهٔ پهٔ هغه خبره ماته ډيره تسلّي ميلاؤ شوه، چې شکر دے، چې زهٔ د الله کور کښې ناست يم، او ښهٔ پهٔ مزو کښې يم.او بيا مې هغهٔ ته اووئيل: تا قرآن وئيلے دے؟ نو هغهٔ اووئيل: نا، نو ما ورته اووئيل: دا يَو کار اُوکړه، چې قرآن شروع کړه، او پابندئ سره مونځ شروع کړه، کهٔ ستا زړه کښې اِطمينان او خوشحالي رانغله نو بيا ماته اُووايه. چا چې د الله کتاب ته شاه کړې ده، د هغهٔ نه اِطمينان ختم شوے دے.

هغه لُوې لُوې مالداران خلق چې مال ئې زيات دے، جائيداد ئې زيات دے، هر حيثيت باندې ښهٔ مارهٔ دي، ليکن سړے چې د هغوي حال اُوګورې، نو چې د شپې اُودهٔ کيږي، نو هغوي د نشې ګولئ اَچوي، زميندار سړے هغهٔ له د ماسخوتن پهٔ مونځ کښې خوب ورځي، د ماسخوتن پهٔ درس کښې خوب ورځي، او کوم چې سرمايه دار خلق دے، او دين سره ئې تعلّق نشته، د شپې دُولسو بجو پورې به کپ لګوي خوب ورله نهٔ ورځي. اِطمينان چې حاصليږي دا د قرآن سره حاصليږي، دا د الله د تابعدارئ سره حاصليږي.

(3) دريمه معنی: ﴿وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنْكًا﴾

الله وائي: "چا چې زما د کتاب نه مخ واړولو، زما کتاب ته ئې شاه کړه، د هغهٔ د قبر زندګي به ډيره تنګه وي". د قبر ژوند به ئې نهايت تنګ وي، دا قبر به پرې تنګ شي، دومره به پرې تنګ شي، تردې پورې چې د هغهٔ دا پوښتئ به يَو بل کښې ننوځي،

د قرآن د نهٔ وئيلو پهٔ وجه باندې قرآن کريم ته پهٔ شاه کولو باندې.

مشکوٰة شريف کښې د عذاب قبر باره کښې احاديث راځي:

رسول الله ﷺ فرمائي: "کله چې يَو انسان وفات شي، او قبر کښې کيخودلے شي، دوه فرشتې ورله هيبت ناک شکل کښې راشي، (يَو ته "نکير" وائي، او بل ته "منکر" وائي) د دغه انسان نه تپوس کوي، ستا رب څوک دے؟ نو چې کله مسلمان بنده قبر کښې پروت وي، نو هغه مسلمان بنده جواب ورکوي، زما رب الله دے، بيا ترې هغه ملائک وائي: چې مونږ ته پته وه، چې تهٔ به مونږ ته داسې جواب راکوې، بيا ترې ملائکِ تپوس کوي: ستا دين څهٔ دے؟ هغه مسلمان بنده جواب ورکوي: زما دين اسلام دے، بيا ترې تپوس کوي: تهٔ د هغې سړي باره کښې څهٔ وائې: چې هغه تاسو کښې راليږلے شوے دے، دے ورته وائي: هغه د الله پيغمبر وو، او د الله بنده وو، هغه ملائک ورته وائي: مونږ ته پته وه چې تهٔ به مونږ ته دغه شان جواب راکوې، (نو ملائک څنګه پوهه شول، چې تهٔ به مونږ ته داسې جواب راکوې؟ ملائکو ته پته دا وه، چې دا ملائک د انسان نه روح اِخلي، او نيک عمله انسان وي، نو د هغهٔ روح علّيين ته ځي، او د بدعمله انسان روح سجين ته ځي، نو ملائکو ته د هغې وخت نه پته وه، کله چې ددهٔ روح علّيين ته ځي، چې دا نيک عمله انسان دے)، نو ددهٔ نه تپوس کوي، چې تا دا دومره ښکلې ښکلې جوابونه چرته زده کړي وو؟ نو دغه مسلمان بنده به وائي: «قَرَأْتُ كِتَابَ اللهِ فَآمَنْتُ بِهِ وَصَدَّقْتُ» "ما د الله کتاب لوستے وو، او ما پهٔ هغې باندې ايمان راوړے، او ما ئې تصديق کړے وو"، دا جوابونه ما د الله کتاب کښې زده کړي وو". نو د قرآن کريم د لوستلو سره انسان د قبر سوال جواب ورکولو کښې کامياببيږي.

"او چې کله يَو بد بخته انسان مړۀ شي، کله يَو کافر او مشرک انسان مړه شي، ملائک ترې تپوس کوي: ستا رب څوک دے؟ دے ورته وائي: ماته خو پته نشته، چې زما رب څوک دے، ملائک ترې تپوس کوي: ستا دين څۀ دے؟ دے ورته وائي: «هَاهْ هَاهْ لَا أَدْرِي» "هائے هائے!!! ماته پته نشته، چې زما دين څۀ دے"؟ ملائک ترې تپوس کوي: چې تۀ ددې پيغمبر باره کښې څۀ وائې؟ دے وائي: ماته پته نشته، چې زما پيغمبر څوک دے؟؛ (ځکه دے د الله د کتاب نه لرې وو، نو کله چې دغه ړومبے درے پوره جوابونه ورکړې)، نو الله ملائکو ته وائي: زما دې بنده رشتيا اوونيل، ددۀ نه چې تاسو کوم تپوسونه اُوکړل، دا بالکل رِشتيا دي، لا ړې شئ او زما بنده له د جنت نه بستره راوړئ، او لاندې ئې ورته اُوغوړوئ، زما بنده د خاورو نه اُوچت کړئ، او د جنت بستره ورته خوره کړئ، دا قبر ورته کهولاؤ کړئ، او قبر ورته دومره کهولاؤ شي، څومره چې ددې مړې نظر لګې. او کله چې بدعمله انسان دے، او جواب ئې ورنکړو، نو الله فرمائي: زما دې بنده دروغ اوونيل، اے زما ملائکو! دۀ ته د جهنم د اُور نه يَو بستره راوړئ، لاندې ئې ورته اُوغوړوئ، نو هغۀ له لاندې د جهنم د اُور بستره اُوغوړولے شي، الله رب العزت فرمائي: اے زما ملائکو! ورشئ ددۀ دپاره د جهنم د دروازو نه يَو کهړکئ راکهولاؤ کړئ، او الله رب العزت وائي: دا قبر پرې راجوخت کړئ، قبر پرې راجوخت شي، تر دې پورې چې پوښتئ ئې يَو بل کښې ننوځي"، او نبي ﷺ فرمائي: "کافر انسان باندې قبر کښې اَويا اژدهاګانې مسلط کړے شي، هغه ئې چيچي، که هغۀ يَوه اژدها دې دُنيا ته رابښکاره شي، او صرف پدې دُنيا باندې پوکے هم اُوکړي"، نو نبي ﷺ فرمائي: "پدې دُنيا کښې به چرې هم

شينكے را زرغون نۀ شي".[1]

د نبي ﷺ د بي بي سيده عائشې رضي الله عنها گره يَو يهودنړه زنانه راغله، سيده عائشې رضي الله عنها ته وائي: الله دي تا د عذاب قبر نه محفوظ كړي، سيده عائشه رضي الله عنها فرمائي: چې نبي ﷺ راغے، ما ترې تپوس اُوكړو، دغې زنانه ماته دُعا اُوكړه، په دُعا كښې ئې راته اُووئيل: چې الله دي تا د عذابِ قبر نه اُوساتې، عذابِ قبر شته؟ نبي ﷺ اوفرمائيل: آؤ، د قبرِ عذاب حق دے.

مسلمان به عذابِ قبر مني؛ ځكه د صحيح احاديثو نه عذاب قبر ثابت دے، نو الله فرمائي: ﴿فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَىٰ﴾.[2]

"يقينًا د هغهٔ زندگي به ډيره زياته تنكه وي، د قبر زندگي به ئې تنكه وي، چا چې د الله كتاب ته شا كړه، او پورته به كړو مونږه دهٔ لره پهٔ ورځ د قيامت ړوند". ﴿قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِي أَعْمَىٰ وَقَدْ كُنتُ بَصِيرًا﴾.[3]

"وائي: به دے، اے زما ربه! ولې دي را پورته كړو ما لره ړوند؟ پهٔ تحقيق سره ووم زهٔ ليدونكے، زما خو ستركې وي". ﴿قَالَ كَذَٰلِكَ أَتَتْكَ آيَاتُنَا فَنَسِيتَهَا ۖ وَكَذَٰلِكَ الْيَوْمَ تُنسَىٰ﴾.[4]

الله به ورته وائي: "اے زما بنده تاته دُنيا كښې زما آياتونه راغلې وو، هغه تا

---

(1) [رواه أبو داود، رقم: (4753)، وأحمد في "مسنده"، رقم: (18534)].

(2) [سورة طه: 124].

(3) [سورة طه: 125].

(4) [سورة طه: 126].

پرېښودي وو، دا رنګه نن ته پرېښودلے شوې زما د رحمت نه"؛ ځکه تا زما آیاتونه پرېښودي وو.

چې چا دُنیا کښې د الله کتاب ته شا کړې ده، دُنیا ئې ذلیله ده، او آخرت ئې هم تباه او برباد دے، او چا چې د الله کتاب باندې خپله زندګي جوړه کړې ده، دُنیا کښې هم نیک بختته دے، او آخرت کښې به هم نیک بخته وي. الله ده د عمل کولو توفیق را کړې.

(وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ)

ادارة الكتابة والتوزيع
كاتب: ابو عبد الله ضياء الرحمن الحنفي
مردان طورو میرو آملان کوټ
رابطه 0307-5134893
ہم سے آنلائن کتاب و فائل کی کتابت، اعلیٰ کمپوزنگ ... وغیرہ کیلئے رابطہ کرسکتے ہیں

اختتام كتابة الحروف: بتاريخ: 2020/01/30ء، بمطابق: 05/جمادى الأول/1441هـ بوقت: 12:30م